# تفسیر ایوبی حنفی

تالیف

علامۃ العصر وحید الدہر ابوالفضل مولانا محمد عبدالشہید الایوبی
القندھاری السیلانی الحنفی النقشبندی عفی عنہ

زیر اہتمام
مکتبۃ القراءۃ والتجوید
کانسی روڈ شالدرہ کوئٹہ

بسم الله الرحمن الرحیم

په پښتو ژبه کښي اولنی او په افغاني تاریخ کښي بې ساری په زرګونو جدیدو مسئلو باندي مشتمل

# تفسیر ایوبي حنفي

وَمَالِيَ (٢٣) ❁❁ فَمَنْ اَظْلَمُ (٢٣)

تالیف او تصنیف


د علامة العصر ابو الفضل شیخ التفسیر والحدیث فقیه دوران مفسر الزمان

## حضرت مولانا محمد عبدالله الایوبي

الکندهاري السلیمانخېلي الحنفي النقشبندي حفظه الله تعالی



مکتبة القراة والتجوید

کاسي روډ شالدره کوټه

# د کتاب پېژندنه

د کتاب نوم ............... تفسير ايوبي پښتو پنځلسم ټوک
مفسر ................ الحاج مولنا محمد عبيد الله الايوبي الکندهاري
السليمانخيلي الحنفي حفظه الله تعالى بفضله الوهبي
کمپوزر ................ حبيب الحق حقاني
ټايپ ................ حقاني کمپيوټر اداره
نشر کوونکې اداره ........... مکتبة القراءت والتجويد کاسي روډ کوټه
د چاپ ځای ................ لاهور
لومړی ځل چاپ ............ ۱۱۰۰ (۱۴۳۲) هجري قمري

# يو نظر دې خوا

هيڅ يو مسلمان هم په قرآن مجيد، احاديثو يا د فقهي په کتابو کې په قصده سره غلطي نه کوي، زموږ اداره تر خپله وسه پورې د کتابو تر ليکلو وروسته تصحيح ته زياته پاملرنه کوي، چې له دې کبله زموږ کتابونه معياري دي، خو بيا هم بنده بنده دی، يو نه يو ځای څه ناڅه غلطي په املاء کې يا په يوه جمله کې ځنې صادره سي، نو زموږ د ټولو ناظرينو څخه دا خواست دی چې که ستاسې تر نظر داسې غلطي تېره سي لطفاً زموږ سره تماس ونيسئ، تر څو د کتاب د دوهم وار په چاپ کې د هغې تېروتنې اصلاح وسي.

په درناوي ستاسې ورور شمس الحق شمس

بسم الله الرحمن الرحيم




الطبعة الاولى

١٤٣٢ هجري - ٢٠١١ ميلادي

**مكتبة القراءة والتجويد**

شارع كانسي كوئته - بلوجستان

رقم الهاتف ٠٣٠٠٣٨٨٥٥٣٥

MAKTABTUL-QIRRAT
WALTAJWEED
KANSI ROAD QUETTA
BALOCHISTAN

ISBN 2-7451-3140-0




اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ وَكَفٰى وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى خَيْرِ الْوَرٰى

**وبعد:** د قرآن مجيد تلاوت، د قرآن مجيد تفسير، د قرآن مجيد حفظ د قرآن مجيد تجويد دا ټولــه كــارونو تــه خــاتم الانبيــاءﷺ بهتـرين او تـر ټولـو كـارونو غـوره كارونـه ويلي دي، يـو ځـاى كـښې فرمايي، هر كله چي له دهﷺ تپوس وسو چي "اى الاعمال افضل" په كارونو كي تر ټولو ښه او غوره كار كوم كار دى؟ و يې فرمايـل "الحـال المرتحـل" يعنـي د كـوچ كـونكي بيرتـه كـوچ كـول، معنـى دا چـي هر كلـه قـرآن مجيـد پـه تـلاوت سـره تكميل كړي او بيرته د قرآن مجيد تلاوت شروع كول.

ځكـه نـو حفـاظ كـرام اكثـره چـي لـه دې حديث څخه باخبره وي نو په اخري شپه د روژې په نولسم ركعت كښې چي څومره سورتونه دي تر والناس پوري ټوله ختم كړي او په شلم ركعت كښې بيرتـه بيرتـه "الـم" تـر المفلحـون پـورې وواييـ، چـي ودې عمل ته الحال المرتحل وايي، ولي چي كله قرآن مجيد تكميل ته رسيږي نو

نو شیطانان خوشحالي جوړه کړي چي دې مؤمن
قرآن مجید ختم کړی بیا یې نه وایي، او هر کله
چي ده بیرته "الم" شروع کړی نو د شیطان هغه
ټولي خوشحالیانې په غم ولړل سي، او نا امیده له هغه ځایه روان سي.
له دې حدیثونو څخه دا په ګوته کېږي چي د قرآن مجید تلاوت ډېر یو
لوی او د ډېر عظمت والا کارونو څخه یو کار دی، خو هر کله چي فهم د
معناهم ورسره وي، نو بیا تر ټولو لوی کار دی.
حضرت ایوبي مدظله العالي ودې کار ته ملا تړلې ده چي الحمد لله
دادی پنځلسم ټوک چي پکښي دروېشتمه او څلورویشتمه پاره موجوده
ده ستاسو په لاسونو کي دی، هیله ده چي و حضرت ایوبي او همدا رنګه
و چاپوونکي ادارې مکتبة القرائت والتجوید ته به هم په خپلو دعاګانو
کښي یو ځانګړی ځای مشخص کړئ.
دا هم تاسي او دا هم تفسیر ایوبي پنځلسم ټوک.

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او
والسلام
pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ ۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

قاري فضل الحق حقاني
بانی مکتبة القرائت والتجوید

مکتبة القرأة والتجوید

بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ

اَلۡحَمۡدُ لِلّٰهِ رَبِّ الۡعٰلَمِيۡنَ وَالصَّلٰوةُ وَالسَّلَامُ عَلٰى سَيِّدِ الۡمُرۡسَلِيۡنَ وَعَلٰى آلِهٖ وَصَحۡبِهٖ اَجۡمَعِيۡنَ.

**درویش وايي:** چي شروع د سورة يٰسٓ مبارک پر (۱۵) للشهر المبارک رمضان يوم الاربعاً سنه (۱۴۳۱) هـ ق قرار يافت.

اَللّٰهُمَّ كَمَا رَئَيْتَنِيْ اِفْتِتَاحَهٗ فَوَفِّقْنِيْ لِاِخْتِتَامِهٖ وَاَرِنِيْ بِالْخَيْرِ وَالصِّحَةِ وَالسَّلَامَةِ وَالْفَرْحِ وَالسُّرُوْرِ. رَاحَةِ الْقَلَمِ وَالْاَصَابِعِ عَنْ تَعَبِ كِتَابَتِهٖ اِنَّكَ يَا اَللّٰهُ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ وَعَلَيْكَ تَوَكَّلْتُ وَاِلَيْكَ الْمَصِيْرُ. وَاِنَّكَ يَا مَوْلَايَ بِالْاِجَابَةِ جَدِيْرٌ.

**ابيات**

**هغه ورځ زما د ژوند به لويه خوشحالي وي**
**چي قلم زما پر والناس باندي راهي وي**
**سرمايه زما د عمر دا تفسير دی**
**که مي وليدی اخير د خدای ج تقدير دی**

سُوْرَةُ يٰسٓ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ ثَلٰثٌ ... بِسۡمِ اللّٰهِ الرَّحۡمٰنِ الرَّحِيۡمِ ثَمَانُوْنَ اٰيَةً وَخَمْسُ رُكُوْعَاتٍ

فوائد هذه السورة المباركة: ددې سورت مبارک يو نوم (معمه) پر صيغه د اسم فاعل دی لکه چي ابن مردوية او خطيب بغدادي او بيهقي رحمهم الله له ابو بکر الصديق رضي الله عنه څخه روايت کړی دی، عن النبی صلى الله عليه وسلم انه قال يٰسٓ تدعی معمة تعم صاحبها خير الدارين (يٰسٓ بلل کېږي معمه، تعم يعني چي عام دی صاحب ته دی يعني چي وظيفه يې کوي يا دائماً يا على الاكثر، خير د دنيا او آخرت) وتسمى الدافعة لانها تدفع عن صاحبها کل سوء (او يو نوم يې دافعه دی يعني لېري کوي هر غم او مرض او فقر وغير ذالک) وتسمى القاضية، لانها تقضى کل حاجة (او يو نوم يې قاضيه دی يعني هر حاجت چي څوک لري په برکت ددې مبارک سورت پوره کېږي)

**درویش وايي:** چي په صحيح روايت د امام احمد، ابو داوُد، نسائي، ابن ماجه

او طبراني رحمه الله له معقل بن يسار رضي الله عنه ځخه چي عليه الصلوة والسلام وويل: يٰسٓ قلب القرآن، او دا هم يو نوم له نومانو ځخه ددې سورت دی، حجة الاسلام ابو حامد محمد الغزالي رحمه الله ددې تسميه وجه داسي بيان کړې ده چي مدار د دين اسلام ايمان دی بالله (يعني بتوحيده) او صحت د ايمان په اقرار سره دی په حشر او نشر سره، او دا امور په سورت يٰسٓ کي په ابلغه وجه بيان سوي دي، نو ځکه دا سورت مُشابه کړل سو د زړه سره په بدن کي د انسان چي زړه مدار د صحت د بدن دی، او دا توجيه د امام غزالي رح امام رازي رح په تفسير کي مختاره کړې ده، او ابو نصر السجزي رح في کتابه الابانة وحسنه (او دا حديث يې حسن بللی دی) عن عائشة رضي الله عنها، قالت قال رسول الله ﷺ ان في القرآن سورة تدعى العظيمة (يعني په دې نامه يادېږي) لعضمتها عند الله (او صاحب ته د دې سورت عند الله ويل کېږي) يشفع صاحبها (يعني چي دا سورت يې ورځ ګرځولی وي د هغه به شفاعت خدای پاک قبلوي تر اکثر د ربيعه او مضر (چي د عربو د دوو قومو نومان دي) او په صحيح اخبار کي راغلي دي چي دا سورت مبارک دي د مړو د قبرو سره وايي، او د چا چي زکندن وي د هغه په مخ کي دې هم وايي، وصح من حديث معقل بن يسار رح لايقرئها عبد يريد الله (اي رضاء الله) والدار الآخرة (يعني دفع د عذاب د آخرت) الا غفر له ماتقدم من ذنبه، او ترمذي او دارمي له انس رضي الله عنه ځخه روايت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام وويل: من قرء سورة يٰسٓ کتب الله له بقرائتها قرائت القرآن (اي ثوابها) عشر مرات.

**پوښتنه**: هر وار چي سړی قرآن ووايي خو سورت يٰسٓ پکښې ويل کېږي، نو په دې حديث کي به تفضيل د شي پر ځان باندي لس واره نه وي؟

**ځواب**: مراد په دې حديث کي دا دی چي په هغو لسو وارو کي سورت يٰسٓ نه ورسره وايي، ونظيره في القرآن لَيْلَةُ الْقَدْرِ خَيْرٌ مِّنْ أَلْفِ شَهْرٍ الآية، نو هورې خو هم په زرو مياشتو کي ډېر وارونه ليلة القدر راځي، نو هورې هم علماء وايي چي يوه ليلة القدر تر زرو مياشتو بالا ده چي په هغو کي ليلة القدر نه وي.

او بل ځواب دادی چي په تفصيل کي پر خپل ځان تغاير اعتباري هم کافي دی فان سورة يٰس من حيث تلاوتها مفردة غير قرائتها في جملة القرآن، دا محاوره د عربو تائيد د تغاير اعتباري کوي، دوی وايي: الحسناء في الحلة الحمراء احسن منها في الحلة البيضاء (ښائسته ښځه په سرو کالو ښه ايسي تر سپينو کالو) ابو نعيم رحمه الله په دلائل کي له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی چي عليه الصلوة والسلام يقرء في المسجد (اى المسجد الحرام حين كونه في مكة) فيجهر بالقرائة حتى تاذى به ناس من قريش (يعني المشركون منهم) نو يو څو کسان د قريشو ور ولاړ سول چي عليه الصلوة والسلام ونسي يعني چي قرائت په زوره مه وايه، دستي د دوی لاسونه تر زنو لاندي بند سول او په سترګو هم ړانده سوه، فجاؤا الى النبي صلى الله عليه وسلم او وه يې ويل ننشدک بالله والرحم يا محمد، يعني چي زموږ لاسونه له غاړو څخه راخلاص کړه او سترګي مو بناء کړه يعني دعاء راته وکړه، عليه الصلوة والسلام دعاء ورته وکړه حتى ذهب عنهم ذالک يعني لاسونه يې هم ايله سوه او سترګي يې هم بناء سوې، فنزلت يٰس الى قوله تعالى: اَمْ لَمْ تُنْذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ، نو له هغو کسانو څخه يو لا هم مسلمان نه سو، فقير وايي: وفي نقل الحديث اختصار قليل.

يٰسٓ ①

**درويش وايي:** چي د اکثرو مفسرينو رحمهم الله مذهب دادی چي يٰس له حروف مقطعه قرآنيه وو څخه دی لکه الٓمٓ وغيره اختلافًا واعرابًا.

**درويش وايي:** چي صحيح مذهب په حروف مقطعات قرآنيه وو کي چي مذهب د حنيفيه رحمهم الله هم دی چي خدای رحمه الله هيڅ چا ته لار نه ده ورکړې د ادارک د معانيو د مقطعاتو في اوائل السور وقالوا ان الله متفرد بعلمها، ونحن نؤمن بما اراد الله تعالى بذالک ونؤمن بانها من القرآن، او سپارل د علم د هغو و خدای جل جلاله ته او موږ يې قرائت تعبدًا وامتثالًا لامر، فاقرؤا ما تيسر من القرآن، او بعض مفسرين وايي: حروف مقطعة سرّ بين الله ورسوله، واخرج ابن ابى شيبة وعبد بن حميد وابن جرير وابن المنذر وابن ابى حاتم عن طرق عن ابن عباس رضي الله عنه چي د يٰس يا انسان في رواية بالحبشة وفي رواية في لغة طي، او مراد د انسان پر دغه تقدير اجماعًا

محمد ﷺ دی، نو اصل يې يا انيسين چې تصغير د انسان دی لکن لپاره د تعظيم کما ثبت في محله ان التصغير قد يجئ للتعظيم وقد يجئ للتحقير، نو يا خو حرف نداء ده او د انيسين نصف راوړی چې سين دی لکثرة النداء به کما في قولهم في اقسم بالله ايمن الله وهذا قول الحسن وسعيد بن جبير وجماعةؒ، او ابو بکر الوراق وايي معنی د يٰسٓ يا سيد البشر ده، او ابن حنيفه وايي چې معنی يې يا محمد (ﷺ) ده، ولې چې وروسته يې مخاطب دی گرځولی دی يعني (انک لمن المرسلين) او په يوه حديث کې چې روح البيان راوړی دی لکن راوي يې نه دی معلوم راغلي دي چې عليه الصلوة والسلام وويل ان الله سماه بسبعة اسماء محمد و احمد وطٰهٰ ويٰسٓ والمزمل والمدثر وعبد الله ﷺ سبعة مرات، حسين کاشفيؒ په تفسير حسيني کې وايي: حقيقت آنست که عرف عرب ان که از کلمه بحر فی تعبير ميکنند کما في قول الشاعر: ع.. فقلت لها قفی فقالت قاف ای وقفت، پس می باشد که يا برائ ندا باشد وسن اشاره بکلمة سيد البشر او يا سيد الاولين والآخرين باشد، کما جاء في الحديث الصحيح انا سيد ولد آدم ولا فخر، وقال الشيخ ابن نور الدينؒ في بعض وارادته ای کشفياته او مناماته سألت رسول الله ﷺ عن اسرار المتشابهات من الحروف فقال هی من اسرار المحبة بيني وبين الله فقلت هل يعرفها احد فقال ولا يعرفها جدي ابراهيم.

وَالْقُرْاٰنِ الْحَكِيْمِ ۝٢

**بوه سه:** چې يٰسٓ چې له حروف مقطعهؤ څخه سي کما هو المختار لاکثر المفسرين، نو والقرآن لپاره د قسم دی، يعني قسم دی په هغه قرآن چې محکم دی په عجب نظم چې په اعلی درجه کې د فصاحت او بلاغت دی او په بديع المعاني سره چې دلائل بينه دي پر حقيقت د دين اسلام او نبوت د نبي ﷺ، ولې چې په قرآن مجيد کې قصې د تيرو امتو د ټېلو انبيا و امثال عجيبه وحکايات صادقه وغيرها مما لا يمکن احاطة انطاق البيان عليهما، ولهذا فصحاء عدنان وبلغاء قحطان عجزوا عن الاتيان بمثل اقصر سورة منه (فالقرآن) نفسه معجزة ظاهرة بينة عادلة على ان القرآن من عند الله وان محمداً رسول الله، ولهذا اورد الله في جواب القسم.

# إِنَّكَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴿٣﴾

په تحقيق ته يا محمد (ﷺ) د خداى ﷻ د رسولانو له ډلې څخه يې على رغم انف المشركين.

**درويش وايي:** چې په مطول كې بلكې په ټولو كتابو كې د معانيو وايي چې يو اخبار چې څوک و چاته ووايي يا به يې غرض افاده د حكم وي يعني چې متكلم مخاطب خبر كړي په هغه حكم چې مدلول د خبر وي، لكه يو سړى چې بل سړي ته ووايي چې زيد خو له حجه راغلى دى، چې مخاطب نه وي په خبر، يا لازم د فائدې يعني مخاطب خو په حكم خبر وي بيا هم ته اخبار په هغه حكم ورته كوې يعني متكلم دا ورته وربنيي چې زه هم په دې حكم خبر وم، چې دې ته په اصطلاح د علم المعاني لازم فائدة الخبر وايي، كقولک لمن حفظ القرآن قد حفظت القرآن په دې خبره خو مخاطب خبر دى چې زما قرآن په ياد دى، ستا په دې كې صرف غرض دا وي چې زه ستا په حفظ القرآن خبريم، اذا علمت هذا القانون، نو دلته دا سوال پيدا كېږي چې په دغه آيت كې يعني (انک لمن المرسلين) څه فائده ده، ولې كفار مكه خو له قرآن څخه منكر دي او له رسالت څخه د عليه الصلوة والسلام هم منكر دي، نو دوى ته په دې اخبار څه فائده ده، او لازم د فائدة الخبر خو بديهي ده په افاده كې څه فائده؟ ددې ځواب دا دى چې په دې اخبار كې اعلان و كفارو ته دى او رد د دانكار ددوى دى چې دوى به عليه الصلوة والسلام ته ويل لست مرسلاً، په انسان العيون كې وايي چې له خواصو څخه د عليه الصلوة والسلام ده چې خداى ﷻ قسم دده پر رسالت واخستى بقوله: والقرآن الحكيم انک لمن المرسلين.

# عَلَىٰ صِرَاطٍ مُّسْتَقِيمٍ ﴿٤﴾

پر سمه لارې، چې واصل و رضا ته د خداى ﷻ ده او و جنت ته په آخرت كې.

**پوهه:** چې دا خبر آخر د ان دى، واختاره الزجاج رح قائلاً انه الاحسن في العربية، او يا على صراط متعلق دى په المرسلين پورې، نو بيا معنى داده: لمن الذين ارسلوا على صراط مستقيم، يعني د ټولو رسولانو يوه لار ده سمه چې توحيد دى، او استقامت پر امورو د دين دى.

**پوښتنه:** صراط مستقيم د انک لمن المرسلين څخه و فهمېده، ولې چې د رسولانو لار خو وي مستقيمه، نو په صراط مستقيم کې څه فائده ده؟

**ځواب:** فائده يې تصريح ده په وصف سره د شرع په استقامت سره او د انک لمن المرسلين څخه التزامًا استقامت فهمېږي.

تَنْزِيْلَ الْعَزِيْزِ الرَّحِيْمِ ۙ﴿۵﴾

**پوه سه:** چې حفص، ابن عامر، حمزة او کسائي رحمهم الله تنزيل په نصب سره وايي يا اعني ورسره محذوف دی، نو بيان د صراط مستقيم دی يا په تقدير د فعل د دغه مصدر، تقديره نزل اى القرآن تنزيل العزيز اى الغالب في ملكه الرحيم بخلقه، نو ځکه يې کتاب نازل کړی او رسول يې هم راواستاوه فحذف الفعل واقيم المصدر مقامه، او نور قاريان يې په رفع سره وايي خبر د مبتداء محذوفي يې بولي، اى القرآن تنزيل آه.

لِتُنْذِرَ قَوْمًا مَّآ اُنْذِرَ اٰبَآؤُهُمْ فَهُمْ غٰفِلُوْنَ ﴿۶﴾

چې ته وېروې هغه قوم يعني له عذابه څخه د خدای ﷻ، حرف جر متعلق دی په تنزيل پورې يا په معنی پورې د المرسلين، کلمه د ما نافيه ده او (ما انذر آه) جمله صفت ده د لقوم يعني چې ته وېروې هغه قوم چې نه دي بېرول سوی پلرونه او نيکه ګان د دوی، ولې چې په مکه کې وروسته تر اسماعيل عليه السلام بل نبي نه دی راغلی، نو دوی و رسول ته ډېر محتاج دي.

**سوال:** تا وويل چې اهل مکه ته وروسته تر اسماعيل عليه السلام بل نبي نه دی راغلی او په آيت کې خو ما انذر آه راغلی دی او انزار خو په دوی پورې نه دی خاص فيجوز ان قد انذرهم من ليس بنبي کزيد بن عمرو بن نفيل وقيس بن ساعدة چې انذار د اهل مکه يې د شرک کاوه مګر انبياء نه وه؟

**ځواب:** د آيت معنی داده ما انذر آبائهم رسول منذر واما مطلق الانذار فلم ينقطع په دې ځواب سره هغه سوال هم دفعه سو چې د دې آيت او د هغه آيت (وان من امة الا خلا فيه نذير) منافات دی، ولې چې په دې آيت کې نفي د انذار ابائهم راغلي دي، او هغه بل آيت اثبات دی د نذير و هر امت ته، وحاصل الجواب چې

مراد په آیت مراد نفي د انذار دی د نبي د خولې څخه او هغه بل آیت اثبات د مطلق انذار دی و هر امت ته، ولا منافات بين نفي الخاص واثبات العام كما لايخفى على اولى النهى فافهم. (فهم غافلون) نو دوی پر غفلت او جهالت دي، نو دوی اشد احتیاج لري وارسال ته د رسول فلهذا ارسل محمد ﷺ ودوی ته.

**درویش وایي:** چي علامه بغدادي رحمه الله په روح المعاني کي او علامه البرسوي رحمه الله په روح البيان کي او علامه ثناء الله رحمه الله په تفسیر مظهري کي دا احتمال په دې آیت کي هم راوړی دی چي کلمه د "ما" په ما انذر آه کي دي موصوله یا موصوفه وي او عائد دې محذوف وي، والتقدیر ح، لتنذر قومًا بالذي (که ما موصوله سي) او بشئ انذر که ما موصوفه سي) به (دا عائد محذوف دی راجع دی و ما ته که موصوله وي او که موصوفه وي) آبائهم الا بعدون (یعني في زمان اسماعيل ؑ ومن بعده الى زمن وقوع عبادة الاصنام في اهل مكة) و یا ما مصدریه دی، والتقدير لتنذر قومًا انذار ابائهم اى مثل انذار آبائهم (اى الابعدون في زمن اسماعيل ؑ وزمن بعده، وعلى هذه الوجوه الثلثة (اى كون كلمة ما موصولة او موصوفة چي عائد محذوف ته ضرورت لري کمامر، او یا مصدریه سي چي عائد ته ضرورت نه لري، البته لفظ د مثل محذوف دی) قوله تعالى فهم غافلون متعلق دی بقوله تعالى انک لمن المرسلين اى ارسلناک الى اهل مكة لتنذرهم فهم اى اهل مكة غافلون من انذار اسماعيل ؑ لمرور ازمنة طويلة عليهم بعد اسماعيل ؑ حتى ظهر فيهم عبادة الاصنام فافهم.

لَقَدْ حَقَّ الْقَوْلُ عَلٰٓى اَكْثَرِهِمْ فَهُمْ لَا يُؤْمِنُوْنَ ⑦

اللام للقسم ای والله په تحقیق ثابت سوی دی قول پر اکثر، تخصیص د اکثریې وکړی له دې سببه چي د دوی یعني اهل مکه لکه خالد بن سنان او ورقه بن نوفل واتباعهما كانوا في دين ابراهيم و اسماعيل عليهما السلام. (فهم لايؤمنون) دغه اکثره ایمان نه راوړي.

اِنَّا جَعَلْنَا فِيْٓ اَعْنَاقِهِمْ اَغْلٰلًا

موږ کړځولي په غاړو کي د دوی، اغلالاً جمع د غل ده چي لاس وغاړي ته په تړل کېږي، بغوي رحمه الله وایي چي دا آیت په شان کي د ابو جهل او دده د ملګرو چي د

بني مخذوم د قبيلې وه چي دوى دا قسم اخستى ؤ چي كه موږ محمد (ﷺ) وليدى چي په حرم كي يې لمونځ كاوه، ابو جهل خو دا وويل چي زه به دى په دغه ډبره چي دده په لاس كي وه دى به پر دا ككرى په ولم، نو ابو جهل وليدى چي عليه الصلوة والسلام پر لمانځه ولاړ ؤ او قرائت يې په جهر سره وايه، ابو جهل چي ډبره پورته كړه چي عليه الصلوة والسلام وولي لاس يې پورته سو دده غاړي ته او ډبره يې په لاس پوري چسپه ومبتل لكه غل، ابو جهل ناكامه ډبره په لاس پوري مبتې ترغاړي لاندي راغلى هغه دوو مخزوميانو ته صورت حال چي يې ورته بيان كړى ډبره ايله سوه، مخزومي ولاړ سو ډبره يې واخستل چي زه به هم په دغه ډبره محمد قتل كوم، دى چي راغلى او عليه الصلوة والسلام يې پر لمانځه ولاړ هم وليدى، نو ده چي په ډبره ويشتى په ستركو ړوند سو، نو د عليه الصلوة والسلام د قرائت اواز يې اورېدى او په ستركو يې نه ليدى، نو دغه مخزومي چي ابو جهل او هغه بل مخزومي ته راغلى هغه يې هم نه ليدل حتى چي هغو ور نارې كړې چي څه دي وكړه؟ هغه ورته وويل چي ما يې اواز اورېدى او په ستركو مي نه ليدى، او ده زياته كړه چي زما او د محمد (ﷺ) تر منځ يو شى پيدا سو لكه مينده د حيوان چي لكى يې پورته او كښته كوله، كه زه ور نژدې سوى واى زه به هغه حيوان خوړلى واى، نو دا آيت نازل سو چي اول يې تېر سو او اخير دادى.

فَهِيَ إِلَى الْأَذْقَانِ فَهُمْ مُّقْمَحُوْنَ ﴿٨﴾

نو هغه اغلال اصل يې داسي ؤ الى اذقانهم چي دوى يې نه پرېښوول چي سرونه كښته كړي، او بغوي وايي چي ضمير د هي راجع دى و ايدي ته.

**سوال:** د ايدي لفظ خو د مخه نه دى ذكر سوى، نو اضمار قبل الذكر به نه وي؟

**ځواب:** لا ولي لفظ د اغلال دلالت پر كوي لان الغُل ما يجمع اليد الى العنق.

**پوښتنه:** په شان نزول كي خو غل يو ازي د ابو جهل په غاړه كي ډبره سول، لكن په دې آيت كي لفظ د اذقان يې جمع راوړى؟

**ځواب:** نعم لكن عرب فعل د يوه و ډېرو كسانو ته كوي نحو بنوا فلان قتلوا لرضاء الكل بفعل ذالک الواحد وههنا كک فافهم.

**پوه سه:** چي په (فهم مقمحون) كي فاء لپاره د سببيت ده ماقبل الفاء يعني فهي الى الاذقان لما بعدها اعني مقمحون فان الاغلال الى الاذقان سبب للاقحام، يعني سرونه يې پورته نيولي وه ستر ګې يې كښته اچولي وې، وهيڅ شي ته يې مخ نه سواى اړولاى.

**پوه سه:** چي بيهقي په دلائل النبوة كي په اسناد متصل تر ابن عباس رض پوري داسي حديث روايت كړى دى چي بعض د بني مخزوم د قبيلې دا اتفاق يې سره وكړى د نبي كريم ﷺ د وژلو په باره كي چي ابو جهل او وليد بن مغيرة هم پكښې شامل وه، نو يوه ورځ يا شپه عليه الصلوة والسلام په حرم محترم كي پر لمانځه ولاړ وُ او قرائت يې هم په جهر وايه چي دوى يې قرائت هم اورېدى، نو دوى وليد بن مغيره ته وويل چي ورسه قتل يې كړه، نو وليد هم هغه ځاى ته ورغلى، نو ده قرائت هم اورېدى او عليه الصلوة والسلام يې نه ليدى خو بيرته ملګرو ته راغلى او ماجرى يې ورته ذكر كړه، نو ټوله راولاړ سول فلما انتهوا الى المكان الذي يصلى فيه سمعوا قرائته نو دوى پر اواز ور روان وه، ولي ليدى خو يې نه، ناګاه اواز ددوى تر شا سو بيا به دوى د اواز پر خوا ور روان سوه بيا به يې اواز د شا د خوا واورېدى، اخير مجبوره ناكامه را روان سول، دا تفسير او مراد ددې آيت دى.

وَجَعَلْنَا مِنْ بَيْنِ أَيْدِيهِمْ سَدًّا وَمِنْ خَلْفِهِمْ سَدًّا فَأَغْشَيْنَاهُمْ فَهُمْ لَا يُبْصِرُونَ ﴿٩﴾

موږ وګرځاوه له مخ ځنې د مخ ددوى سد يعني چي دوى عليه الصلوة والسلام نه ليدى، مراد له سد ځخه سد د قدرت د خداى ﷻ دى، او د شا د خوا هم سد يعني دوى به په صوت پسي د عليه الصلوة والسلام تر شا راتله، نو موږ دوى رانده كړه يعني له ليدلو ځنې د عليه الصلوة والسلام كه ځه هم ظاهراً خو رانده نه وه ددې واقعې د مخه، نو دوى نه ليدى يعني عليه الصلوة والسلام يا هيڅ شى په دغه حال كي چي اراده د قتل د عليه الصلوة والسلام يې درلودل.

**درويش وايي:** چي روح المعاني، روح البيان او مظهري دغه تفسير چي په پښتو ژباړه تاسي ته بيان سو ټولو راوړى دى او مناسب د حال د متعلمانو د تفسير ايوبي سره هم دغه تفسير دى چي عام الفهم تفسير دى، او دوى درې سره دا هم وايي چي انا

جعلنا في اعناقهم تر دې ځایه پورې بیان د مشرکانو د مکې دی بلکې د نفس کافرانو دی په آخرت کې.

**سوال:** جعلنا دوه ځایه چې راغلي دی او اغشینا یو ځای چې په دې آیت کې راغلي دی په صیغه د ماضي دی او احوال د آخرت مستقبل دی؟

**ځواب:** هو! صیغې خو د ماضي دي لکن د آخرت احوال په اعتبار د دې دي چې حسب موعود الله خامخا متحقق دي نو دا احوال متیقن دي لکه ماضي کلمات فلهذا عبر عنهما بالماضي.

**درویش وایي:** چې د دې تفسیر فهم اسان دی، ولې چې تنزیل د امر مستقبل بمنزلة الماضي کثیر في العربیة والقرآن، لکن یو بل تفسیر چې دې درې سرو تفاسیرو راوړی دی، بعض په ډېر طویل بیان سره لکه روح المعاني او روح البیان او بعضو په لنډ ګران تفسیر او بیان سره راوړی دی، لکه مظهري هغه تفسیر دا دی چې دا آیتونه محمول دي پر تمثیل د حال د کافرانو په ورځ د قیامت کې، دوی وایي چې نه په دې دنیا کې غُل سته او نه سد سته نه فهم مقحمون سته، بلکې اراد الله سبحانه انا منعناهم عن الایمان بموانع اختیاریة لهم فجعل الاغلال والسد مثلاً لتلک الموانع فهو تقریر وتثبیتهم علی الکفر والطغیان والطبع علی قلوبهم بحیث لا ینفعهم الآیات والنذر ومثلهم بالذین غلت اعناقهم الی الاذقان فهم مقمحون وبالذین بینهم السد وبین مایریدون رؤیته في انهم لایلتفتون الی الحق ولا یعطفون اعناقهم نحوه، ولا یطاء طؤن رؤسهم له ولو طاء طئو رؤسهم فرضًا یمنعهم السد عن الابصار فهم لایبصرون سبیل الهدی.

**درویش وایي:** چې وهذا اقصر التقاریر الواردة في بیان ان حا في الآیة تمثیلاً.

وَسَوَآءٌ عَلَيْهِمْ ءَأَنذَرْتَهُمْ أَمْ لَمْ تُنذِرْهُمْ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿۱۰﴾

برابره ده پر دوی که ته وبېروې او که نه وبېروې ایمان نه راوړي.

**ترکیب:** د دې عبارت قرآني ءانذرتهم ام لم تنذرهم مبتداء ده، سواء علیهم خبر دی.

**سوال:** دا دوې جملې خو جمله فعلیه دي او استفهام هم ورسره دی، نو څرنګه جمله فعلیه مبتداء واقع کېدای سي؟

**ځواب:** معنی د دې دوو جملو دا ده انذارک وعدم انذارک سواء، یعني په معنی د مصدر مضاف الی الفاعل دي.

**سوال:** مبتداء څو دوه شیه ده یعني انذارک وعدم انذارک او سواء څو مفرد دی؟

**ځواب:** سواء مصدر دی مفرد او تثنیه او جمع پکښې برابر دي.

**سوال:** په آیت کې حرف استفهام سته یعني همزه او ام، او په مذکور تقریر کې یعني انذارک وعدم انذارک سواء، هیڅ د استفهام معنی نسته؟

**ځواب:** حرف الاستفهام منسلخ دی د معنی څخه د استفهام بتجرید هما عنه (ای عن الاستفهام) لمجرد الاستواء.

**سوال:** تأویل د فعل په مصدر سره څو حرف مصدري غواړي لکه ان مصدري وهو مفقود ههنا فکیف یصح تأویله بقوله یعني انذارک آه؟

**ځواب:** قاضي بیضاوي رح وايي چې ګاهي فعل بیله حرف مصدري په معنی د مصدر راځي، واستدل بقول الشاعر: مصرع:.. تسمع بالمعیدی خیر من ان تراه، حیث وقع بغیر الحرف المصدری مبتداء، ای سماعک بالمعیدی، وخیر خبره.

**درویش وايي:** ولهذا المصرع قصة طویلة مذکورة في حواشي البیضاوي وغیرها.

## إِنَّمَا تُنذِرُ مَنِ اتَّبَعَ الذِّكْرَ وَخَشِيَ الرَّحْمَٰنَ بِالْغَيْبِ

ته بېرولای سې یعني داسې بېرول چې فائده پر مرتبه سي. فلا یرد ان رسول الله ﷺ کان ینذر غیر هؤلاء المذکورین في الآیة فکیف یصح حصر الانذار کما هو معنی انما علی المذکورین في الآیة، وجه عدم الایراد چې محصور پر مذکورینو په آیت کې هغه انذار دی چې فائده پر مرتب وي (من اتبع الذکر) چې متابعت د ذکر یعني د قرآن کوي بالتأمل في معانیه وبلاغته والعمل به، ولا یکون کمن قیل في شانه شعر: تروم العز ثم تنام لیلاً ... یغوص البحر من طلب اللألي

(وخشي الرحمن) یعني د خدای ﷻ له عقابه بېرېږي.

**فائده:** داسې یې نه وویل وخشي المنتقم للدلالة ان الخشیة مع ملاحظة صفت الرحمة فیه تعالی کمال الخشیة وعین الایمان (بالغیب) حال دی له فاعل څخه د خشي یعني عن عذابه ای قبل ان یعاینه کما في یوم القیامة، ولي هغه خشیة څو فائده نه کوي، او یا معنی داده غائبًا عن الناس في خلوته یعني چې منافق نه وي او نه ریا کاره، کما قیل:

واعظان که این جلوه در منبر ومحراب میکنند
چون بخلوت میروند آن کاری دیگران میکنند

فَبَشِّرْهُ بِمَغْفِرَةٍ وَّاَجْرٍ كَرِيْمٍ ⑪

ته زېرې وکړه دوی ته په مغفرت د خدای ج د بعض ګنهو، او مراد له اجر کريم څخه يعني اجر حسن څخه جنت دی.

**فائده:** تنوين د واړه ځايه لپاره د تعظيم دي.

اِنَّا نَحْنُ نُحْيِ الْمَوْتٰى وَنَكْتُبُ مَا قَدَّمُوْا وَاٰثَارَهُمْ ط

په تحقيق موږ ژوندي کوو مړي (يعني په ورځ د قيامت يا ژوندي کوو جاهل په علم سره يا ضال په هدايت سره) او موږ نوشته کوو چې دوی د مخه يعني په دنيا کي کوم ښه کارونه چې يې کړي او د هغو ښو عملو اثار حسنه. لکه يو سړي چي تعليم يې ورکړی وي، او د علم دين کتاب يې تصنيف کړی وي، او مسجد يې جوړ کړی وي، يا د سنت حسنه تأسيس يې کړی وي لکه يو مدرسه وعلی هذا القياس سنت سيئة کاشاعة باطل، وتأسيس ظلم وتائيد کفر، لکه په افغانستان کي چي د ا اوس تائيد د امريکايانو د افغانستان اکثره کسان کوي تر سنه (١٤٣١) هـ ق پوري.

قال النبي ﷺ من سن في الاسلام سنة حسنة يعمل بها من بعده فله اجرها ومثل اجر من عمل بها من غير ان ينقص من اجورهم شيئ (اى اجور العاملين بتلک الحسنة) ومن سن في الاسلام سنة سيئة يعمل بها من بعده (لکه شراب خانه يا د قمار وغير ذالک ځايونه) فله وزرها و وزر من عمل بها من غير ان ينقص من اوزارهم شيئ، رواه مسلم، وفي الحديث الصحيح الذي رواه البخاري عليه الصلوة والسلام وايي: چي هر څو مره قتلونه يعني ناحقه چي په اسلام کي کېږي پر ابن اول د آدم ؏ يعني قابيل د هغه قتل عذاب سته، لانه اول من سنى القتل ظلمًا، او بعض مفسرين وايي چي مراد له اثارو څخه په دې آيت کي خطائهم (کامونه د دوی دي) الى المساجد، عن ابى موسیٰ الاشعري رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ اعظم الناس اجرًا في الصلوة ابعدهم فابعدهم مشيا (يعني په لار کي هر څو لېري وي ثواب يې ډېر دی. الحديث متفق عليه) او د جابر بن عبد الله رضي الله عنه روايت دی چي شاوخوا سرايونه نژدې و مسجد نبوي ته خالي سوه (يعني يهودان پکښي او سېدل هغه ولاړل) نو د بنو سلمه چي کورونه يې د مسجد نبوي څخه لېري وه اراده يې وکړه

چي دغو ټولو ته ووايي چي ما ته راکړه سي، نو دا خبره يو ځل و عليه الصلوة والسلام ته ورسول، عليه الصلوة والسلام دوی را وغوښتل چي تاسي رښتيا دا اراده لرئ چي دې ټولو کورو ته رانقل سئ. هغو ورته وويل نعم. يا رسول الله قد اردنا ذالک. فقال "يا بني سلمة ديارکم (اي الزموا ديارکم) تکتب اثارکم، دوه واره مکرر يې ورته وويل (رواه مسلم) وروی البغوي رح عن انس رض نحوه.

**درويش وايي:** چي روح المعاني وايي چي ددې احاديثو دا معنی نه ده چي په دې آيت کي فقط دغه خطأ المساجد مراد دي، بلکي مراد له دې احاديثو دا دی چي په اثارهم کي خطأ المساجد هم داخل دي وان کان الآية شاملاً لغيرها کما مر عنقريب، نو ځا چي دغه حديث دليل ددې کړځولی دی چي آيت مدني دی ولي قصه د بني سلمة خو په مدينه منوره کي پېښه سوې ده، دا استدلال يې غلط دی، ولي چي مونږ آنفاً وويل چي د احاديث مبارکه وُ دا معنی نه ده چي دا آيت په کثرت الخطأ الی المساجد کي نازل سوی يعني چي مدني سي، بلکي آيت مکي دی او په مامر موضوعاتو کي نازل دی، د حديثو معنی دا ده چي اثارهم محمول پر معنی عام دی چي کثرت الخطاء يې هم له افراد څخه فافهم والله اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

## وَكُلَّ شَىْءٍ اَحْصَيْنٰهُ فِىْٓ اِمَامٍ مُّبِيْنٍ ﴿۱۲﴾

**پوه سه:** چي لفظ د کل منصوب علی شريطة التفسير دی، يعني د مخه تر کل شيئ احصينا مقدر دی، والاصل احصينا کل شيئ ثم حذف العامل المذکور وفسره بعده باحصيناه المذکور بعده.

**درويش وايي:** چي منصوب علی شريطة التفسير خو فرځه لمن لري په عربي لغت کي.

**پوښتنه:** ددې حذف او وروسته بيرته تفسير کول فائده يې څه ده؟

**ځواب:** علماء د نحوي وايي چي سړی چي مثلاً لفظ د کل منصوب ويني په عامل د نصب کي متفکر سي، وروسته چي يې تفسير ويني ذهن يې اضطراب دفع سي او اهل علم المعاني وايي چي هر علم چي وروسته تر طلب او انتظار حاصل سي هغه علم الذ (خوندور) وي واضبط (او ذهن يې ښه ټينګ ساتي) عارف جامي قدس سره وايي:

چه خوش باشد که بعد از انتظاری ....... با امید رسد امیداوری

﴿أَحْصَيْنَاهُ فِيٓ إِمَامٍ مُّبِينٍ﴾ هر شي موږ ليکلی دی په هغه کتاب کي چي ښکاره کونکی د هر شي دی، يعني په دې کتاب کي نوشته دی چي مشهور نوم يې لوح محفوظ دی، چي د هغه نوشته تغير او تبديل نه لري.

**وَاضْرِبْ لَهُمْ مَّثَلًا أَصْحٰبَ الْقَرْيَةِ إِذْ جَآءَهَا الْمُرْسَلُونَ ﴿۱۳﴾**

او مثال بيان کړه يا محمد (ﷺ) و کفارو ته د مکې.

**پوښتنه:** د ضرب معنی په مثل سره له څه درکه ده؟

**ځواب:** دا ترجمه له دې محاورې څخه د عربو مأخوذ ده، دوی وايي هذه الاشياء على ضرب واحد اى مثال واحد.

**پوه سه:** چي واضرب آه يا عطف دی پر مجموع ماقبله من قبيل اعطف القصة على القصة يا معطوف دی پر مقدر اى فانذرهم واضرب لهم آه.

**فائده:** روح المعاني او مظهري وايي چي اضرب متعدي دی و دوو مفعولو ته لتضمنه معنى الجعل، ګويا داسي وويل سول اجعل لهم (اى للكفار مكة) (مثلاً) مفعول اول دی (اصحٰب القرية) مفعول ثاني دی.

**پوه سه:** چي له قريه څخه مراد انطاكية، رواه الفريابي عن ابن عباس رضي الله عنه وابن ابى حاتم عن بريدة وعبد بن حميد وابن جرير وابن المنذر عن عكرمة، وفي البحر انها انطاكية بلا خلاف، وحاصل المعنى قل يا محمد مثال حال اهل مكة مثال حال اهل انطاكية (اذ جآءها) چي ورغله و دې قريې ته.

**فائده:** اذ جآئها بدل اشتمال دی من اصحاب القرية كما في قولهم اعجبني زيد علمه وسلب زيد ثوبه (المرسلون) يعني رسولان او استولي خلک د عيسیٰ ؑ، البغوي رحمه الله وايي قال العلماء باحوال العلماء چي عيسیٰ ؑ اول وار واستول دوه کسه حواريين دده د مخلصينو اصحابو څخه وښار ته د انطاکيه (نو له صيغې څخه د جمع لغوي معنی مراد ده اى مافوق الواحد) نو دوی چي ښار ته ورنژدې سول يو شپين ږيری يې وليدی چي پسونه يې پوول چي نوم يې حبيب ؤ، دوی چي سلام ورواچوه شيخ ورته وويل من انتما؟ تاسي څوک ياست، هغو ورته وويل رسولا لرسول الله يعني عيسیٰ ؑ چي هغه تاسي منع کوي له عبادت څخه د بتانو او

رابولي مو و عبادت ته د رحمٰن ﷻ، نو سپين ږيري شپانه ورته وويل چي تاسي يو دليل پر دغه دعوت لرئ؟ قالا نعم! نشفي المريض ونبرئ الاكمه والابرص باذن الله، يعني زموږ په دعاء خدای ﷻ مريض جوړوي يعني هر ناجوړی چي وي، او زموږ په دعاء خدای ﷻ مورزاده ړوند بنا کوي، او د پس په مرض مبتلا جوړيږي.

**درويش وايي:** چي ما چي ترجمه وکړه دا مي ښکاره کړی چي په نبرئ الاكمه والابرص ونشفي المريض کي اسناد مجازي دی و سبب ظاهري ته چي دعا ده فافهم، شپانه ورته وويل: درځئ زما يو زوی دی دوه کاله کيږي چي مريض دی، هغو دوو رسولانو ورته وويل چي درځه چي موږ يې وګورو، نو سپين ږيري کور ته بوتله، هغو چي مريض وليدی دعاء يې ورته وکړه او لاس يې پر تېر کړی. نو په حکم د خدای ﷻ مريض فوراً جوړ سو، تاريخ وايي رفته رفته په ښار کي دا خبر خپره دی او قسم قسم مريضان راوستل کېدل او ددوی پر لاس خدای پاک شفأ ورکول. نو ددوی په دعاء سره ډېر مريضان خدای ؒ جوړ کړه، نو د انطاکيه سلطان ته (چي نوم يې په قول د وهب ؒ انفطس ؤ من ملوک الروم يعبد الاصنام) دا خبر ورسېدی، نو دا دوه کسان رسولان يې ور وغوښتل او پوښتنه يې ځني وکړه چي تاسي څوک ياست؟ دوی ورته وويل رسولان د عيسىٰ ؑ يو. باچا ورته وويل چي تاسي دلته زما پايتخت ته د څه غرض لپاره راغلي ياست؟ دوی ورته وويل چي موږ تا رابولو له عبادت څخه د هغه شيانو چي بتان دي چي نه اوري او نه ويني او نه يې په عبادت کولو کي نفع سته او نه يې په نه کولو کي د عبادت ضرر سته و هغه معبود بالحق ته چي هم سميع دی او هم بصير او هم ضار دی هم نافع دی وعلى كل شيئ قدير. باچا ورته وويل چي تاسي وايا ست معبود سته غير زموږ د معبود اتو څخه چي بتان دي؟ هغو ورته وويل نعم، هغو ورته زياته کړه چي معبود بالحق هغه ذات دی چي ته او ستا خدايان يې پيدا کړي دي، باچا ورته وويل چي تاسي ولاړ سئ زما له دربار څخه زه به ستاسي په حال کي غور وکړم، دوی چي ولاړ سول سلطان عسکر په دوی پسي واستول چي په بازار کي يې مضبوط ه ووهئ چي بيا دا خبري ونه کړي، خير عسکرو هم هغسي وکړه، او وهب بن منبه ؒ بيا دا قصه داسي بيان کړې ده چي عيسىٰ ؑ چي دا دوه کسه انطاکيه ته واستول، نو دوی چي هوري ورغله سلطان ته

د انطاکیه یې رسیدګي مشکل وه تا چي دوی تبلیغ ورته کړی وای، نو باچا یوه ورځ بازار ته سره د باډي ګاډانو (ساتندویانو) راوتلی ؤ، نو دې دوو کسانو په بلند اواز الله اکبر او کلمه توحید وویل چي باچا واورېدل، باچا ته درد ورغلی عسکرو ته یې امر وکړی چي دا دوه کسان ونسئ بندي خانې ته یې واستوئ او هر یوه دوه سوه دُرې ووهئ، نو عیسیٰ علیه السلام چي خبر د ضرب و کوب او بندي کولو د هغه دوو کسانو واورېدی، نو رئیس الحواریین شمعون الصفار یې ورپسي را واستاوه چي ددوی د خلاصون په باره کي کوشش وکړي، نو شمعون ښار ته د انطاکیه داخل سو ځان یې د یو ساده سړي پر ډول کر ځولی ؤ نو د باچا د باډي ګاډانو او خپلوانو سره یې کرار کرار ځان شناخته کړی چونکه شمعون ډېر پوه سړی او په خبرو کي هم ډېر چالاک او فهمیده سړی ؤ، نو د باچا د خپلوانو دده سره ډېر انس او الفت پیدا سو، نو د باچا خپلوانو د شمعون د هوښیاری او د عقلمندی خبر سلطان ته بیان کړی، نو سلطان دی خپل مجلس ته وغوښتی، باچا چي د شمعون خبري واورېدې د هغه ډېر الفت ورسره پیدا سو، شمعون د بت پرستی او د توحید په باره کي د سلطان سره هیڅ ګفت و شنید نه ورسره کاوه فقط د سیاسة السلطنة او د رعیت پروری په باره کي بحث ورسره کاوه د باچا په عقیده ډېر حق ګویه سړی معلوم سو، او دی یې ډېر نازاوه او په احترام یې ورته کتل. او مکلف یې کړی چي ته به هره ورځ دربار ته راځې، رفته رفته ورځ په ورځ د ملک په زړه کي محبت د شمعون زیاتېدی، نو یوه ورځ یې و باچا ته وویل چي زه خبر سوم چي تاسي دوه کسان بندیان کړي دي او په درو مو هم وهلي دي چي تا ته یې دعوت د بل دین یعني توحید المعبود در کړی ؤ، باچا ورته وویل نعم، نو شمعون ورته وویل چي تا خبري ورسره وکړې او ددوی مطلب دي واورېدی چي دوی څه وېل، ملک وویل چي یا ما خبري نه دي ورسره کړي خو دوی په بازار کي د الله اکبر نارې وهلې ما ته ډېر درد راغلی هیڅ پوښتنه مي نه ده ځني کړې بلکې فوراً مي حکم د جلد او بند صادر کړی، شمعون ورته وویل چي که د باچا خوښ وي چي راغوښتي مو وایي چي دوی څه وایي خبري به مو اورېدلي وای، ملک فوراً د بندي خانې هغه بندیان را وغوښتل، بندیان چي راغلل نو شمون ورته وویل چي تاسي له کومه راغلي یاست او چا راستولي یاست؟

دوی ورته وویل: الله الذی خلق کل شیئ ولیس له شریک، شمعون ورته وویل چي تاسي ستاسي د خدای ﷻ بیان راته وکړئ او ډېر صاف بیان او په عین حال کي ډېر کوتاه، نو هغو دوو چي په حقیقت کي خو دوی سره پېژندل چي زموږ خدای ﷻ یفعل ویحکم مایرید، او زموږ خدای زموږ په دعاء مورزاده ړوند جوړوي.

**سوال معترض:** شمعون چي هغه دوو خلکو ته وویل چي تاسي چا را استولي یاست دوی ورته وویل الله الذی آه دا به دروغ نه وي، ولي چي دوی خو عیسیٰ ؑ را استولي وه، او که څرنګه؟

**ځواب:** عیسیٰ ؑ خو په امر د خدای ﷻ را استولي وه کما یدل علیه قوله تعالی اذ ارسلنا الیهم اثنین آه، حیث اسند الارسال الی نفسه، نو رسول د رسول الله په امر د خدای ﷻ هم رسول الله دی. (القصه) باچا امر وکړی یو غلام چي دواړي سترګي یې ړندي وې بلکي بچې وې را یې وستی دوی خدای ﷻ ته زاری وکړې شمعون په زړه کي آمین وایه. حتی چي هغه د سترګو ځای یې سره څیري سو دوی د ختو دوې مرغتاني پکښي کښېښولې د سترګو د کسی په ځای کي غلام لیدل پیدا کړه فتعجب الملک، نو شمعون و ملک ته وویل که ته ستا له خدای ؓ څخه چي ورته سوال وکړي نو ستا به لوی شرف وي. ملک ورته وویل چي زه ستا څخه هیڅ راز پټ نه ساتم ان الهنا الذی نعبده لایسمع ولایبصر ولایضر ولاینفع.

**پوښتنه:** ملک شمعون ته ولي دومره خوشبین ؤ چي هیڅ راز یې له ده څخه پټ نه ساتی؟

**ځواب:** شمعون به هغه وخت چي ملک به بتخانې ته د بتانو د عبادت لپاره تلی، نو دی به هم ورسره ؤ، نو شمعون به ډېر لمونځونه کول او ډېري زاری به یې کولې (په پټه و خدای ؓ ته نصرت پر اهل انطاکیه خصوصًا ملکهم) نو د ملک او دده سره ورسره خلکو به دا خیال سو چي شمعون زموږ په دین دی. بیا ملک و هغو دوو کسانو ته وویل چي که چېري ستاسي خدای چي تاسي یې عبادت کوئ پر احیاء د میت قادر دی آمنا به یعني ستاسي پر خدای موږ ایمان راوړو. دوی ورته وویل زموږ خدای ﷻ قادر دی پر هر شي، نو ملک ورته وویل چي دلته یو مړی دی د اوو ورځو را اېسته چي د یو غټ تاجر زوی ؤ او پلار یې غائب ؤ نو ما یې

دفن وځنه اوه څو پلار يې راسي، ملک خلکو ته وويل چې ورسئ هغه ميت راوړئ، ميت چې يې راوړی بدن يې تغير کړی ؤ او بد بوی يې هم تلی، نو هغو دوو کسانو تضرع او زاري، خدای ﷻ ته شروع کړې. راوي وايي چې هغو دوو کسانو خو علانيه خواست کاوه چې ملک هم اوريدی او شمعون يدعو ربه سرًا، نو هغه مړی راژوندی سو او داسي يې وويل چې زه د اوو ورځو څخه پر شرک مړوم او په اوو شپلو کې د اور داخل کړه سوی وم او زه تاسي بېروم له شرک څخه چې تاسي يې کوئ، فآمنوا بالله، وروسته مړي وويل چې ما وليدلې دروازې د اسمانو خلاصي سوې ما چې وکتل يو ځوان ؤ حسن الوجه دوه کسه نور ورسره وه زه يې له اوره را وه ايستلم، ملک ورته وويل چې هغه درې کسه په حاضرو خلکو کې سته؟ ځوان مړي شا وخوا وکتل وه يې ويل چې هغه حسن الوجه سړی دادی (شمعون ته يې اشاره وکړه) او هغه دوه کسان چې ورسره وه هغه دا دوه کسه دي (رسولانو ته يې اشاره وکړه) نو ملک په درياب کې د تعجب غرق سو، نو شمعون چې په دې پوه سو چې د ملک رايه د خپلو خدايانو بتانو څخه بدله سوه، نو يې خپل ځان ورته معرفي کړی چې زه هم د خدای ﷻ د رسول عيسىٰ ﷺ رسول يم وتاسي انطاکيه والو ته، فآمن الملک وآمن معه قوم وکفر آخرون ای اصروا على كفرهم، او بعض راويان وايي چې مړی د ملک لور وه چې په قبر کې له ډېره عمره څخه دفن وه، نو شمعون ملک ته وويل چې ته دا دوو کسانو ته ووايه چې ستا لور را ژوندی کړي، نو ملک هغو دوو کسانو ته د لور د ژوند په باره کې وويل، نو هغه دوه کسان پر لمانځه ودريدل او شمعون سرًا دعاء کوله چې قبر وچاودی او د ملک لور کفن په غاړه راووتل دا خبره يې وکړه خپل پلار او خلکو ته چې زه دغه سړي (شمعون ته يې اشاره وکړه) تر لاس ونيولم له قبره يې را وه ايستلم، دوه کسان نور ورسره وه (رسولانو ته يې اشاره وکړه) او دا يې هم وويل چې دا خلک صادق دي چې خدای ﷻ يو دی شريک نه لري بايد تاسي اسلام راوړئ ولا اطنكم تسلمون. بيا ښځي دوی ته وويل چې ما بيرته خپل قبر ته رد کړئ، دوی خدای ﷻ ته خواست وکړی ښځه بيرته په قبر ننوتل.

**درويش وايي:** چې ملک د انطاکيه ايمان نه راوړی بلکې ده او قوم يې قصد د

قتل د رسولانو وکړي، نو دا خبر و حبیب النجار ته ورسېدی کما سیئاتي (وجاء من اقصی المدینة رجل) وسیئاتي بیانه (بیان د ښار د انطاکیه پر طور د جمله معترضه)

**پوه سه:** چي انطاکیه چي انتاکیه بالتاء هم ورته وایي پای تخت دی د ښارو د روم چي عواصم یې بولي، پر دې ښار لوی دېوال راګرځېدلی دی د ډېرو چي دور یې دوولس میله دی کما في القاموس، او په دې ښار کي دننه پنځه غرونه دي او د اوبو چینې دي او رنګارنګ تعمیرات دي او په داخل کي د دې ښار ډېر انسانان اوسېږي چي حساب یې خدای ج ته معلوم دی او ملک مذکور سره د لوی فوجه په دې ښار کي اوسېږي، پښتانه وایي: د مرچو د کراره یې اټکل کړه.

یعني د انطاکیه د ښار د ېوال دوولس میله اوږد ؤ، نو د ابادی حساب او اټکل یې ته کوه! ولایعلم خلق ربک الا هو، انتهی البیان المعترض.

## اِذْ اَرْسَلْنَآ اِلَیْهِمُ اثْنَیْنِ

(اذ ارسلنا) بدل دی د اذ اول څخه چي مو ږ استولي وه.

**درویش وایي:** چي که څه هم ظاهراً استونکی عیسٰی ؑ ؤ لکن په حقیقت کي مرسل رب ﷻ دی ولهذا نسب الی نفسه (الیهم اثنین) یعني اهل انطاکیه ته. د دې دوو کسانو په نومانو کي اختلاف دی (یونا و بولس) او مقاتل رح وایي (دومان و بولس) او شعیب الجبائي رح وایي: شمعون و یوحنا، وهذا ضعیف لان شمعون هو الثالث لهما دی، او وهب او کعب رح وایي (صادق و صدوق) او بعض مفسرین وایي (فاروس و ماروس) او مظهري رح وایي (یحیٰی و یونس)

## فَکَذَّبُوْهُمَا فَعَزَّزْنَا بِثَالِثٍ

دوی تکذیب وکړی د دې دوو کسانو یعني په توحید کي د خدای ج، نو موږ تقویه د هغو دوو وکړه په دریم سره چي پر مشهور او صحیح روایت شمعون الصفار من الحواریین لعیسٰی ؑ کذا ذکر سعید بن جبیر وابن المنذر.

**پوه سه:** د عززنا چي متعدي دی مفعول یې پرېښو یعني هما لان المقصود الاصلي ذکر المعزز به وهو الثالث دون المعزز وهما الاثنان.

فَقَالُوْٓا اِنَّآ اِلَيْكُمْ مُّرْسَلُوْنَ۝۱۴

نو وويل اى كلهم يعني درو سرو وويل و اهل انطاكيه ته كه څه هم دا وينا په صورت اجتماع نه وه اول وار بلكې اولاد دوو كسانو په اخير كي په صورت اجتماعي وګرځېدل كمامر.

قَالُوْا مَآ اَنْتُمْ اِلَّا بَشَرٌ مِّثْلُنَا ۙ

وويل (اى اهل انطاكيه) تاسي نه ياست مګر مثل زموږ يعني بشر، نو تاسي پر موږ څه فضيلت لرئ چي تاسي د رسالت دعوې كوئ پر اول تقدير، يا ستاسي مرسل عيسىٰ د رسالت دعوې كوي، او بعض مفسرين وايي چي دوى چي دا وويل انا اليكم آه يعني دا قيد يې نه وو ايه من جانب عيسىٰ؏، نو د اهل انطاكيه زعم دا سو چي دوى په خپله د رسالت من الله دعوې كوي، نو ځكه يې ورته وويل ما انتم الآية.

**سوال:** په نحو كي وايي چي خبر د ما منصوب دى، نو په دې آيت كي بشر چي خبر د ما دى ولي مرفوع دى په اتفاق د قراء؟

**ځواب:** په نحو كي دا هم وايي چي ما چي عمل كوي په سبب د مشابهت د ليس په نفي كي او په دخول كي پر جمله اسميه، نو په دې آيت كي نفي د ما له منځه ولاړې په سبب د الّا چي حرف استثناء او منفي مثبت ګرځوي، نو مشابهت د ليس سره ضعيف سو، نو ځكه يې عمل د نصب په خبر كي ونه كړى خلافًا ليونس.

**بوه سه:** چي مثلنا صفت د بشر دى.

**سوال:** مثلنا خو په سبب د اضافت و ضمير متكلم ته چي معرفه دى مثلنا هم معرفه وګرځېد، نو څرنګه صفت د بشر چي نكره دى كېداى سي؟

**ځواب:** په نحو كي وايي چي مثل او غير متوغل يعني ډوب په ابهام كي دى په اضافت و معرفه ته نه معرفه كېږي كذا في روح المعاني.

وَمَآ اَنْزَلَ الرَّحْمٰنُ مِنْ شَيْءٍ ۙ

او نه نازلوي خداى ﷻ يعني پر بشر هيڅ شى، من زائده ليپاره د استغراق د نفي دى.

**بوه سه:** چي له دې قول څخه د دوى دا معلومه سوه چي اهل انطاكيه له الوهيت

څخه د خدای ﷻ منکر نه وه له رسالت څخه منکر وه، خپل اصنام بتان يې واسطه و
خدای ﷻ ته ګڼل، روح المعاني وايي چي تخصيص د اسم الرحمن چي دوی
وکړی په منع کي د نومانو د خدای ج چي ددوی په زعم کي دا وه چي رحمت تأبی
انزال الوحي لاستدعائه تکليفًا للعباد بالاوامر والنواهي چي په تکليف د عبادو
کومه فائده خدای ﷻ ته نه راجع کېږي، او د ثواب ورکول د خدای ﷻ له خوا څخه
پر تکليف موقوف هم نه دی لانه رحمن فافهم.

إِنْ أَنتُمْ إِلَّا تَكْذِبُونَ ﴿١٥﴾

نه یاست تاسي مګر درواغ وایاست په دعوی کي د رسالت من الله.

قَالُوا رَبُّنَا يَعْلَمُ إِنَّا إِلَيْكُمْ لَمُرْسَلُونَ ﴿١٦﴾

وويل ای الرسل لاهل انطاکيه، زموږ خدای خبر دی، په تحقيق هرومرو موږ
وتاسي ته را استول سوي يو.

**فائده:** رسولانو د خدای ﷻ په علم سره استشهاد وو ايه چي په فقه شريفه کي
وايي چي استشهاد په علم سره د خدای ﷻ جاري مجری القسم دی حتی که يو چا
وويل چي الله يعلم انی فعلت کذا او دی کاذب ؤ دا يمين غموس چي کفارة في
الدنيا نه لري مګر عذاب د دوږخ لري لانه کبيرة.

**مسئله:** که يو سړي و بل ته وويل چي زه درباندي ګران يم او زما سره محبت
لري هغه بل سړي ورته وويل چي خدای ج شاهد دی چي ته پر ما ګران او زه ستا
سره محبت لرم او درواغ يې ويل دا سړی کافر ګرځي، ولي ده په خپلو خبرو
خدای ج شاهد د خپلو درواغو وباله.

**پوښتنه:** اول رسل و انطاکيه والو ته ساده خبره وکړه يعني انا اليکم مرسلون،
وروسته په دې آيت ربنا يعلم انا اليکم لمرسلون دومره ډېر تاکيدات وکړه (۱) ربنا
يعلم چي جاری مجری القسم دی کما مر (۲) تاکيد د انا دی (۳) تاکيد د لام
ابتداء دی په لمرسلون کي.

**نکته:** پوښتنه د دې تاکيداتو او باعث يې څه دی؟

**ځواب:** د رسل په اول جواب کي اهل انطاکيه مبالغه په رد کي د قول د رسل

وکړه حيث قالوا ما انتم الا بشر مثلنا تاکيد د نفي د رسالت يې په ما او الا سره وکړي، او وروسته يې بيا وويل ما انزل الرحمن من شيئ په اخير کې ددوی خبري حصر پر کذب وبوللې، نو ځکه رسل هم داغسې مؤکد بالتاکيدات جواب ورکړی کذا في المطول شرح التلخيص.

## وَمَا عَلَيْنَآ إِلَّا ٱلْبَلَٰغُ ٱلْمُبِينُ ﴿١٧﴾

او نشته زموږ په ذمه کې مګر رسول د رسالت د خدای ﷻ چې هغه هم ظاهره سوه تاسې ته بالآيات الشاهدة لصحته. لکه جوړيده د مور زاده ړونند، او جوړيدل د پس د مرض او احياء الموتى من القبور يعني زموږ په دعاء د خدای په قدرت چې دادرې سره کار د طوق البشر څخه خارج دی، غرض د رسولانو دادی چې ستاسې انکار موږ ته ضرر نه دی، ولې چې موږ خپله وظيفه ادا کړه بلکې ضرر يې چې عقاب ابدي دی وتاسې ته راجع دی.

## قَالُوٓا۟ إِنَّا تَطَيَّرْنَا بِكُمْ

راوي وايي چې په سبب د تکذيب د انطاکيه د رسولانو د عيسىٰ ؑ خدای ؐ پر دوی بارانونه بند کړه، نو اهل انطاکيه وويل و رسولانو ته چې موږ بد فالي او شوم کوو په تاسې سره يعني چې تاسې راغلي ياست پر موږ قحط د بارانو مسلط سي کما هو عادة الجهال في کل زمان چې مکروه خلاف الطبع شيئ ووينې نو نسبت ويو مېلمه يا مسافر يا هم جواره ته کوي، د اهل انطاکيه غرض دا ؤ چې تاسې زموږ له منځ ووځئ، نو دا يو له قحط او مصائب چې پر موږ مسلط سوي ستاسې د راتګ له سببه خپلو وطنو ته ولاړ سئ سالمين او منع سئ زموږ د دعوت او تبليغ څخه.

**مسئله شرعيه:** په حديث شريف کې راغلي دي چې عليه الصلوة والسلام تفاول (يعني نېک فالي خوښه وه) او د تطير (يعني سوی فالي يې نه وه خوښه).

**پوښتنه:** فرق يې څه دی محبوب موافق الطبع او مکروه خلاف الشهوة دواړه د خدای ؐ د خوا دي؟

**ځواب:** فرق يې دادی چې نېک فالي له جهته څخه د حسن ظن پر خدای ؐ منځ ته راځي، او تطير يعني بد فالي له جهته د اعتماد پر غير الله يعني چې د سړي

مکروه لیدلو څخه پیدا کېږي، په احادیثو کي د هجرت نبوي ﷺ مع ابی بکر رضي الله عنه و مدینې منورې ته یو سړی په مخه ورغلی چي نوم یې بریدة بن اسلم و علیه الصلوة والسلام ورته وویل من انت؟ ته څوک یې؟ هغه ورته وویل بریدة! نو علیه الصلوة والسلام و ابوبکر رضي الله عنه ته وویل سلمنا من کیدهم موږ سالم سولو له چمو او له ضرر څخه د کفارو د مکې، په حدیث شریف کي راغلي دي چي هیڅ انسان داسي نسته چي په زړه کي بلا اختیار بد فالي پیدا کېږي، نو که د سړي په زړه کي د یو شي له سببه بد فالي پیدا سوه، نو داسي دي ووایي: انا عبد الله ما شاء الله لاقوة الا بالله لایأتی بالحسنات الا الله ولا یذهب بالسیئات الا الله اشهد ان الله علی کل شیئ قدیر، نو که یې د سفر نیت وُ او دا شوم ورته پیدا سو، هغه مذکوره کلمات دي ووایي او سفر ته دي دوام ورکړي، نو له کراهت څخه د تطیر خلاص سو او که یې سفر قطع کړی په دام کي د تطیر ولوېدی، کذا في عقد الدرر.

د فقهي شریفي په کتابو کي وایي چي که په یوه کور کي مریض وُ ماښام د هغه پر دېوال هیا درخته بوم ناره وکړه د کور له خلکو څخه سړي دا وویل چي دا مریض مري، دا سړی کافر سو.

لَئِنْ لَّمْ تَنْتَهُوْا لَنَرْجُمَنَّكُمْ وَلَيَمَسَّنَّكُمْ مِّنَّا عَذَابٌ اَلِيْمٌ ﴿۱۸﴾

که تاسي منع نه سئ خپل د تبلیغ څخه موږ به په ډبرو تاسي سنګسار کړو او مړه به مو کړو، او تاسي ته به ورسېږي زموږ له خوا عذاب درد ورکونکی.

**سوال:** د رجم تفسیر په ډبرو ویشتلو قتل دی کما في المحصن والمحصنة اذا زنیا، نو وروسته تر مرګ نور عذاب الیم به د دوی څه شی وي؟

**ځواب:** د رجم معنی دلته ما هو المتعارف في الفقه نه ده بلکې معنا یې مطلق په ډبرو ویشتل دي، نو د دوی مراد دا وُ چي په یوه یا دوو یا درو مثلاً ستاسي په ډبرو ویشتلو سره موږ اکتفاء نه کوو بلکې تر هغو به مو په ډبرو ولو چي مرئ، وهذا هو العذاب الالیم، او بعض مفسرینو د رجم ترجمه په شتم یعني ښکنځلو سره کړې ده، نو د دوی مراد دا وُ چي یوازي په ښکنځلو موږ اکتفاء نه کوو بلکې ایلام جسمي په ضرب و کوب سره هم درکوو، والله اعلم بمراده في کتابه.

قَالُوْا طَٰٓئِرُكُمْ مَّعَكُمْ ؕ اَئِنْ ذُكِّرْتُمْ ؕ بَلْ اَنْتُمْ قَوْمٌ مُّسْرِفُوْنَ ﴿۱۹﴾

رسولانو ورته وویل چي ستاسي سبب د شوم ستاسي سره دی، وهو کفرکم. او ابن عباس رض وايي حظکم (برخه ستاسي د تاسي سره ده من الخير والشر لاينفک عنکم)

**پوه سه:** چي په (ائن ذکرتم) دوه همزه دي، يو لپاره د استفهام انکاري دی او بل لپاره د شرط دی د جواب محذوف دل عليه ماقبله، يعني ائن وعظتم تطيرتم (وهذا جواب الشرط) ای تطيرتم بنا وتوعدتمونا (موږ ته پيش راکوي يعني په رجم سره) ولاينبغي ذالک وهذا هو معنی همزة الانکار بلکې بايد تاسي پند اخستی وای او ايمان مو راوړی وای، او زموږ مو احسان منلی وای.

(بل انتم قوم مسرفون) بلکې تاسي يو قوم ياست چي عادت ستاسي تجاوز دی تر حد په عصيان کي چي يو له اسراف څخه ستاسي تسائتم (تاسي بد فالي کوئ په رسل د خدای ﷻ بايد چي تاسي په هغو سره تبرک کولای.

وَجَآءَ مِنْ اَقْصَا الْمَدِيْنَةِ رَجُلٌ يَّسْعٰى

او راغلی له اخيره څخه د ښار د انطاکيه چي چابک چابک را روان ؤ، يعني هغه وخت چي ده واوريدل چي قوم دده قصد يې کړی دی چي رسل عيسٰی ؑ قتل کړي.

**فائده:** مشي عادي تګ ته د سړي وايي او عدو ځغاستي ته وايي او سعي ميانه تګ فوق المشي و دون العدو.

**فائده:** تنوين د رجل لپاره د تعظيم دی ای رجل عند الله کامل الرجونية.

**فائده:** نوم ددې سړي په روايت د ابن عباس رض وابی مجلز و کعب الاحبار مجاهد و مقاتل" وايي حبيب "چي مشهور په حبيب النجار ؤ" او د پلار نوم يې اسرائيل ؤ.

**فائده:** کسب دده بعض وايي چي نجاري وه، او بعض وايي کښته ګر ؤ، او بعض وايي دوبي ؤ او بعض وايي موچن دوز ؤ، او بعض وايي بتان به يې جوړول د ډبرو يا د لرګيو نه د عبادت بلکې د ښائست لپاره چي په هغه وخت کي روا وه، ولا منافات بين هذه الروايات لامکان کونه جامعًا لهذه الاکساب.

**فائده:** وفي الحديث الذي نقله الزمخشري صاحب تفسير الکشاف انه عليه الصلوة والسلام قال سباق الامم يعني چي سبقت يې و ايمان ته کړی وي ولم يکفروا

قط طرفة عين لكه علي بن ابی طالب رضي الله عنه وصاحب يٰسٓ (يعني حبيب) ومؤمن آل فرعون.

**فائده:** وهب بن منبه رحمه الله وايي چي حبيب د ورېښمو کار کاوه او مريض هم د جزام په مرض ؤ (چي آتشک يې بولي او ډېره بېکاره ناجوړي ده چي تر علاج د اطباؤ لوره ده) او کور دده په پای کي د ښوې دروازې د انطاکيه ؤ وکان مؤمنًا ذا صدقة، مابنام به يې د ورځي ګټلي روپۍ سره جمع کړې نيمی به يې خيرات کړې او نيمی به يې پر عيال نفقه کړې وکان هذا عادته دائمًا.

قَالَ يٰقَوْمِ اتَّبِعُوا الْمُرْسَلِيْنَ ﴿۲۰﴾

وويل (حبيب النجار) ای قومه زما متابعت وکړئ د را استول سوو خلګو يعني د رسولانو.

اتَّبِعُوْا مَنْ لَّا يَسْـَٔلُكُمْ اَجْرًا وَّهُمْ مُّهْتَدُوْنَ ﴿۲۱﴾

متابعت وکړئ د داسي کسان چي ستاسي څخه نه غواړي مزدوري پر تبليغ د رسالت (دا تاکيد دی د اول لپاره)

**سوال:** په دې تکرار کي د اتبعوا څه فائده وه؟

**ځواب:** دغه يې فائده زائده ده چي ستاسي څخه سوال د مزدوری نه کوي (وهم مهتدون) او دوی پر هدايت دي يعني الی خير الدارين.

**درويش وايي:** چي پر هم دې ځای تفسير د جزء (۲۲) پای ته ورسېدی بالخير والعافية والصحة بتوفيق رب العزت، ورځ د پنجشنبې ۲۳ شهر المبارک رمضان سنة (۱۴۳۱) هـ ق وېتلوه تفسير جزء ۲۳ بتاريخ المذکور



بِسمِ اللهِ الرَّحمٰنِ الرَّحِيمِ

# الجزء الثالث والعشرون

## وَمَالِيَ ٢٣

# تفسير البابي حنفي


حضرت مولانا محمد حبيب الله البابي

الحنفي النقشبندي القندهاري



مكتبة القرآءة والتجويد

كاسي روڈ كوئٹه بلوچستان

# وَمَا لِيَ لَآ أَعۡبُدُ ٱلَّذِي فَطَرَنِي وَإِلَيۡهِ تُرۡجَعُونَ ﴿٢٢﴾

او څه سبب دی چې زه به عبادت نه کوم د هغه بې همتا چې زه یې پیدا کړی یم.

**پوهه:** چې کلمه د ما استفهامیه مبتدا ده او جار و مجرور یې خبر دی، او لا اعبد حال دی له ضمیر څخه د متکلم یعني په مالي کي، او تپوله جمله عطف ده پر یا قوم اتبعوا آه باندي.

**پوښتنه:** حبیب نجار خو قوم ته نصیحت کاوه په باره کي د رسولانو چې قوم ددوی د قتل قصد کړی ؤ کما یدل علیه یا قوم ابتعوا المرسلین او هغه نصیحت خو پای ته نه دی رسېدلی، نو عبارت قرآن چې داسي وای وما لکم لا تعبد الذی فطرکم، نو د مقام سره د تبلیغ و قوم ته به مناسب نه وای او که څرنګه؟

**ځواب:** په مذکوره عبارت کي تلطف او نرمي د قوم سره په وعظ کي چې دی لکه خپل ځان ته نصیحت کوي او تنبیه پر دې چې زما غرض خالص نصیحت دی حیث اراد لهم ما ارد نفسه، پښتانه وايي: د خدای ؐ خپل سه لکه پر ځان داسي پر بل سه. او په حقیقت کي تعریض او سرزنش ددوی دی چې دوی عبادت د خالق خپل و عبادت ته د بتانو پرې ایښی دی، نو چونکه غرض د متکلم صیغه راوړو کي تعریض پر دوی ؤ په اخیر کي یې بیرته دوی مخاطب کړه بقوله (والیه ترجعون) او خاص خدای ﷻ ته به تاسي راجع کړل کېږئ یعني په ورځ د قیامت. ویدل علیه الحصر تقدیم المعمول علی العامل.

**پوښتنه:** مطابق د ماقبل آیت سره داسي ویل به مناسب نه وای والیه ارجع؟

**ځواب:** د خطاب په عبارت راوړلو کي مبالغه په تهدید کي د قوم چې دوی یې وبېرول په رجوع وسخت عذاب ته یعني مخامخ یې وبېرول او که یې لکه سیاق سابق داسي ویلي وای والیه ارجع نو قوم ته تعریضًا تهدید به وای، والتصریح بالتهدید ابلغ من التعریض به کما لایخفی فافهم.

# ءَأَتَّخِذُ مِن دُونِهِۦٓ ءَالِهَةً

آیا زه اخلم معبود خپل (والهمزة للاستفهام الانکاري) یعني ماسوی د من فطرني څخه معبودان چې اصنام دي.

**پوه سه:** چي اکثره مفسرين پر دې دي چي حبيب النجار په دې ځاى کي بير ته سياق اول ته ولاړى چي په تفسير کي د مالي لا اعبد يې بيان تېر سو، او ابن المنذر او ابن ابى حاتم له قتاده رحمه الله څخه روايت کړى دى چي حبيب په غار کي ؤ من اقصى المدينة د خداى جل جلاله په عبادت مشغول ؤ. نو ده ته چي د قوم او د رسولانو خبر ورسېدى، نو راغلى قوم ته او خپل دين يې ښکاره کړى. وقال يا قوم اتبعوا المرسلين الآية. دا خبره چي حبيب وکړه قوم ورته وويل وانت مخالف لدينا ومتابع دين هؤلاء الرسل فقال ومالي اعبد الذي فطرني اى خلقني.

**درويش وايي:** چي پر دې تقدير کلام پر خپل ظاهر دى.

**سوال:** کلام د حبيب چي پر خپل ظاهر سي، نو بايد ده داسي ويلي واى واليه ارجع او ده نسبت د رجوع ودوى ته ولي کاوه واليه ترجعون. مظهري ددې سوال په ځواب کي داسي ويلي دي فطرة يعني خلق اثر د نعمت الهي دى نو پر ده اظهار لازم ؤ وفي الرجوع معنى الزجر فکان اليق بهم. پښتانه په مقام کي د زجر مخالف ته وايي خو يا بير ته راځي يعني عذاب به درکړم. نو پر بيان د قتاده دا آيت. ءاتخذ الآية هم پر خپل ظاهر دى. لکن روح المعاني وايي چي نظم جليل ددې توجيه سره موافقت نه لري. ده ويلي دي چي ءاتخذ مساق اول ته رجوع ده يعني التلطف في الارشاد کما مر عنقريب.

إِن يُرِدْنِ الرَّحْمَٰنُ بِضُرٍّ لَّا تُغْنِ عَنِّي شَفَاعَتُهُمْ شَيْئًا وَلَا يُنقِذُونِ ﴿٢٣﴾

دا جمله صفت د الهه ؤ ده يعني داسي معبودان که اراده وکړي و ما ته رحمن يعني خداى جل جلاله (پوه سه: چي کسره د نون دليل د ياء محذوفي دى) (بضر) په يو ضرر سره (يا فقر، يا مرض وغير ذالک، نو فائده نسي کولاى ما ته په دفع کي د هغه ضرر) شفاعت د بتانو د هيڅ شي لکه ستاسي چي زعم باطل يعني هؤلاء شفعائنا عند الله (ولا ينقذون) او نه دوى ما خلاصولاى سي له عذابه د خداى جل جلاله يعني ان عذبني.

إِنِّي إِذًا لَّفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴿٢٤﴾

په تحقيق زه که داغسي وکړم (چي معبود وګڼم ما لا ينفع ولا يضر من دون من فطرني مع انه تعالى يقدر على ايصال النفع ودفع الضرر) زه په ظاهره ګمراهي کي يم چي هر ذى عقل په پوهېږي.

**پوه سه:** چي جمله د ان يردن الرحمن الآية دليل د انكار پر اتخاذ الآلهة چي د استفهام انكاري څخه د اتخذ وفهمېدی.

إِنِّيٓ ءَامَنتُ بِرَبِّكُمْ فَٱسْمَعُونِ ﴿٢٥﴾

په تحقيق ما ايمان راوړی دی پر رب ستاسي ايها القوم.

**سوال:** ده داسي ولي نه وويل بربي، بلكې ده نسبت د رب ودوی ته وكړی؟

**ځواب:** دا نسبت د رب و قوم ته په حقيقت كي دعوت د ايمان وقوم ته دی چي ستاسي رب دی لكه زما (فاسمعوني) يعني تاسي واورئ زما ايمان، نو دا آيت له تتمة څخه د نصيحت دی، ولې قوم ته چي حبيب دا وويل اتبعوا المرسلين. نو ګويا دوی ورته وويل چي ايا تا ايمان راوړی دی په قول د رسولانو، حبيب ورته وويل آمنت بربكم فاسمعوا ايماني نو ګويا ده نصيحةً دوی ته وويل كه دا ايمان خير نه وای، نو ما به د ځان لپاره نه وای غوره كړی، نو تاسي هم بايد دا ايمان قبول كړئ، بغوي رح وايي چي دا خبره چي حبيب وكړه قوم يې په يوه وار لكه يو سړی ور وغورځېدل او حبيب يې شهيد كړی، او ابن مسعود رض وايي چي تر پښو يې لاندي كړی پكښي ختل ختل چي كلمې يې تر دبره را ووتلې، او سدي رح وايي چي سنګ باران يې كړی، او حبيب رح به دا ويل اللهم اهد قومي فانهم لايعلمون حتى اخير شهيد سو، او حسن رح وايي چي په حلق كي يې سوری وركړی تناوُ يې ورواچاوه د انطاكيه په دېوال پورې وځړاوه، فادخله الله الجنة وهو فيها يرزق، يعني حيوة الشهداء، او بعض مفسرين وايي چي د فاسمعوني خطاب و رسولانو ته د عيسٰیؑ دی يعني د حبيب چي دا يقين سو چي ما خو قتل كوي، رسولان پر ځان شاهدان كړه يعني خپل پر ايمان قبل موته، والتقدير فقال للرسل اني آمنت الآية.

**درويش وايي:** هذا ليس بشيئ لان حضور الرسل في وقت قتله غير معلوم نصًا بلكې اهل انطاكيه چي دومره ظالمان وه چي خپل سړی يې په سبب د ايمان بالله په داسي سخت قتل سره مړ كړی، نو رسل كه حاضر وای هغه به يې هم وژلي وای د دوی څه باك په كېدی. ولي چي سبب د حبيب د وژلو خو ايمان وُ، نو رسل خو هم داعي و ايمان ته وه، الا ان يقال چي اهل انطاكيه له رسل څخه بېرېدل په سبب د هغو معجزاتو

چي اهل انطاکیه ولیدلې کمامر. او روح البیان وایي چي حبیب چي د قوم سره خبرې اوږدې کړې ددې لپاره چي رسل ولاړسي نجات به پیدا کړي، والله اعلم.

**فائده:** عروة بن مسعود الثقفي رض چي راغلی د علیه الصلوٰة والسلام مخ ته یې اسلام راوړی، نو د علیه الصلوٰة والسلام څخه یې اجازه وغوښتل چي زه به قوم ته ولاړسم، رسول الله ﷺ ورته وویل که ته اظهار د ایمان وکړې قوم دې وژني، عروه ورته وویل چي نه مي وژني زه پر قوم دومره ګران یم چي بیده یم له خوبه مي نه باسي، خیر قوم ته ورغلی. او قوم ته یې د اسلام دعوت شروع کړی، هغو نافرماني وکړه بلکې دده په ازاریې لاس پوري کړی، راوي وایي چي سپېدې راوچاودې عروه رض پر یوه بالاخانه ودرېدی آذان یې وکړی یعني اشهد ان لا اله الا الله واشهد ان محمدًا رسول الله، نو د ثقیف د قبیلې یو سړي په غشي وویشتی او شهید یې کړی، نو رسول الله ﷺ ته چي د عروه رض د قتل خبر ورسېدی داسي یې وویل مثل عروة مثل صاحب یس چي مراد یې حبیب رح دئ، وقال ۴ دعا قومه الی الله فقتلوه وکذا عروة دعا قومه فقتلوه.

## قِيلَ ادْخُلِ الْجَنَّةَ ؕ

وویل سول (یعني له جانبه څخه د خدای ﷻ وحبیب النجار رح ته چي دی شهید سو اکرامًا و اذنًا بدخول الجنة کسائر الشهداء) داخل سه و جنت ته، او بعض مفسرین وایي چي دا خبره خدای ج ورده ته وکړه قبل (یعني بواسطة الملک) موته، یعني ادخل قبرک الذي هو روضة من ریاض الجنة.

**سوال:** څه حکمت دی چي خدای ﷻ قیل مطلق ووایه یعني داسي یې نه وویل قیل له؟

**ځواب:** غرض دلته بیان د مقول دی چي دخول د جنت دی دون المقول له لانه معلوم لان سیاق الکلام في حبیب النجار.

**بوه سه:** چي قیل آه جمله متسأنفه في جواب سوال یقتضیه المقام چي هغه دادی چي حبیب په دین کي دومره سرګرم ؤ چي خپل شیرین روح یې تر قربان کړی، نو خدای ﷻ دده ته کوم انعام ورکړی، قیل ادخل الجنة یعني دا کرام بدخول الجنة یې انعام ؤ د جان قربان.

قَالَ يٰلَيْتَ قَوْمِيْ يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۶﴾

حبيب ؒ ووېل (يا حرف نداء ده منادى يې حذوف دى، دلته تقدير دادى) يا رب كاشكي زما قوم خبر واى.

بِمَا غَفَرَ لِيْ رَبِّيْ وَجَعَلَنِيْ مِنَ الْمُكْرَمِيْنَ ﴿۲۷﴾

په هغه شي يعني چي ماته بخښنه وكړه رب زما او زه يې وګرځولم د مكرم يعني نېک او كامياب بندګانو څخه.

**پوه سه:** چي ما يا مصدريه دى، نو يې معنى داده اى بغفران ربي اياى چي زه يې وبخښلم. يا ما موصوله دى، والتقدير بالذي غفرلي ربي او كلمه د ما متعلق ده په يعلمون پوري.

**فائده:** دا خبره حبيب ؒ هلته وكړه چي جنت ته دى ورسېدى او خداى ﷻ دده د قول حكايت وكړى، درحديث مرفوع آمده نصح (يعني حبيب) قومه حيًا و ميتًا، او بعض مفسران وايي چي كلمه د ما استفهاميه ده، والباء متعلق بغفر اى باى شيئ غفرلي ربى يريد الايمان، او كلک صبر كول پر ايذاء د كافرانو.

**سوال:** حبيب ؒ دا تمنى ولي اظهار كړه؟

**ځواب:** ددې لپاره چي قوم باعثه كړي پر اكتساب د ايمان او طاعت. ولي ددوى به هم د جنت دخول په نصيب سي.

**سوال:** قوم خو دده سره څومره بېوفايي، نامردي او ظلم وكړى، ده سره يې لا غم ورسره دى؟

**ځواب:** د اهل الله عادت دى چي غصه نوشه وي او پر دښمنانو ترحم لري، او په دې تمنى كي يې بل غرض داؤ چي كه دوى زما په حال خبر سوي واى، دوى به په دې پوه سوي واى چي موږ پر لويه خطاء يو په كار كي د حبيب چي دى مو مړ كړى او دى پر حق ؤ، شايد دا خبرتيا او علم په حال زما به يې سبب د ايمان ګرځېدلى واى. البغوي ؒ وايي چي قوم چي حبيب ؒ په ډېر بد قتل سره مړ كړى كما مر خداى ﷻ دوى ته په غضب سو. جبرئيل ؑ يې ورواستاوه، يوه چغه چي يې پر وكړه دوى ټول له كنفس واحدة مړه سوه، اعوذ بالله من غضب الحليم.

وَمَآ أَنزَلْنَا عَلَىٰ قَوْمِهِۦ مِنۢ بَعْدِهِۦ مِن جُندٍ مِّنَ ٱلسَّمَآءِ

او مونږ نه دی نازل کړی پر قوم د حبیب ؒ وروسته تر اهلاک دده د قوم لہ خوا، یو لښکر له اسمان د خوا څخه یعني الملائکة لکه چي په بدر کي چي نازلي کړي وې، وفي غزوة الاحزاب یعني بل کفینا اهلاکهم بصیحة ملک، وفیه استحقار لاهلاکهم او تنبیه ده پر عظمت د شان د رسول الله ﷺ، ولي د هغه په غزواتو کي په زرو ملکي راواستولې.

**پوه سه:** چي من اول زائد دی لپاره د تاکید د نفي او من ثاني لپاره د ابتداء دی.

وَمَا كُنَّا مُنزِلِينَ ﴿٢٨﴾

خدای پاک وايي نه دی شان زما چي د قوم د اهلاک لپاره دي اسماني لښکر نازلوم بلکې د کفارو د اهلاک مشیت زما کافي دی.

**پوښتنه:** د علیه الصلوة والسلام په غزواتو بدر او خندق کي هم ملائکه وو ته ضرورت نه ؤ بیا هم خالق نازل کړې؟

**ځواب:** هغه انزال اکرامًا لرسول الله ﷺ او لپاره د تسکین د زړه دده کما قال الله تعالی وما جعله الله (ای انزال الملائکة) الا بشرٰی به قلوبکم و لتطمئن به قلوبکم وما النصر الا من عند الله.

إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَٰحِدَةً فَإِذَا هُمْ خَٰمِدُونَ ﴿٢٩﴾

نه ؤ عذاب ددوی مګر یوه چغه وه د جبرئیل ؑ ټول یې د اهلاک و کندي ته وغورځول.

**پوښتنه:** ضمیر د کانت چي مؤنث ؤ څه شي ته راجع دی؟

**ځواب:** عقوبت ته چي له ماقبل وفهمېدی.

**فائده:** جمهور قراء صیحة په نصب سره خبر د کان یې بولي او ابو جعفر یې په رفع سره وايي چي کان تامه بولي، والمعنی ماوقعت الا صیحة واحدة، بغوي ؒ وايي چي مفسرین وايي چي جبرئیل دواړي پلې د دروازې د مدینه د انطاکیه ونیولې او لویه ناره یې وکړه (فاذا هم خامدون) پس نابیره ټول اهل مدینه مړه سوه.



Scanned by CamScanner

**فائده:** حرارت طبعي د بدن انساني چي د هغه په حيوة د بدن ساتل کيږي مشابه يې کړى له اور سره، نو ځکه يې زوال ته حرارت غريزي په سبب د ناري د جبرئيل ته خمود ووايه چي په اصل کي د اور مړه کېدو ته وايي، قال المظهري وجملة وما انزلنا عطف على قوله وجاء من اقصى المدينة رجل يسعىٰ وجملة ماكنا منزلين معرضة بين المعطوفين وجملة ان كانت الا صيحة واحدة تعليل، والفاء في قوله فاذا هم خامدون للمفاجاة انتهىٰ.

## يٰحَسْرَةً عَلَى الْعِبَادِ

**پوه سه:** چي راغب اصفهاني رح وايي (الحسرة) الغم على ما فات والندم عليه، او كلمه د ياء لپاره د نداء ده او حسرة يې منادى ده.

**سوال:** حسرة خو معنى ده او منادى خو بايد ذات وي او له ذوى العقول څخه به وي، نو څرنګه حسرة منادى وګرځېدل؟

**ځواب:** دا منادى والى د حسرة مجازي دى بتزيل الحسرة منزلة العقلاء كانه قيل يا حسرة حاضر سه چي دادي وخت دى چي دا حالت عجيبه ووينې او واورې، وهي المذكورة في قوله تعالىٰ.

## مَا يَأْتِيهِمْ مِنْ رَسُولٍ إِلَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ ۝

نه راځي و دوى ته يو رسول (كلمه د من زائده ده لپاره د استغراق د نفي) مګر دوى وه چي په رسول پسخند وهي.

**پوه سه:** چي مراد له عباد څخه هغه كسان دي چي مصرين على العناد وي، او جمله د ما يأتيهم آه علت ده حسرة پر حال د دوى ده، ولي پسخند وهونكي په خبرو د اخيار الناس چي رسولان دي او خلګ و خداى ج ته رسوي اجرت هم نه غواړي، او دوى په نصيحت پوري د خير الدارين مربوط دي، بايد دوى پر خپلو ځانو حسرت وکړي او بل څوک هم د دوى پر حال حسرت وكړي كه ملائكه دي او كه مؤمنان د انس او جن دي.

**درويش وايي:** چي روح المعاني او مظهري دواړو دا احتمال راوړى دى چي مراد د تحسر د خداى د خوا دى على سبيل الاستعارة لتعظيم جنايتهم على انفسهم انتهى. لكن فقير له نسبت څخه د تحسر چي انفعال دى و خداى جل جلاله ته ولو

کان على سبيل الاستعارة دلاوري نسي کولای لعظم شان الباري ﷻ، او هم مظهري او هم روح المعاني يو قرائت شاذه غاية الشذوذ سند ګرځولی دی د مذکور احتمال الذي تقشعر منه الجلود والله اعلم.

او بعض مفسران وايي چي منادی محذوف ده او حسرة منصوب دی په فعل مقدر سره، والتقدير يا ايها المخاطبون تحسروا حسرة والحسرة شدة الحزن والندامة انتهى، او بغوي رح وايي چي په دې آيت کي دوه قوله دي، يو قول دادی يقول الله يا حسرة وندامة فكابة على العباد يوم القيامة، ولي چي دوی ايمان پر رسولانو نه راوړي، او بل قول دادی انه من قول الهالكين قال ابو العالية لما عاينوا العذاب قالوا يا حسرة على العباد، بغوي رح وايي چي لام د تعريف په عباد کي لپاره د عهد دی، والمراد بهم اهل انطاكيه او كل من لم يؤمن بالرسل واستهزاء بهم چي په اول صف اهل انطاكيه دي لان سياق الكلام فيهم، لکن په عين حال کي تعريض پر اهل مکه هم دی ولي چي په دې فعل منحوس د تکذيب او استهزاء پر رسول الله ﷺ دوی ملوث وه.

## اَلَمْ يَرَوْا كَمْ اَهْلَكْنَا قَبْلَهُمْ مِّنَ الْقُرُوْنِ

آيا دوی يعني اهل مکه علم نه لري.

**پوښتنه:** رؤيت چي علمي دی نو معمولين يعني مفعولين يې څه شي دي؟

**ځواب:** په نحو کي وايي چي يروا له عمل څخه بند دی په وروسته قول کي يعني (كم اهلكنا قبلهم من القرون) ولي چي په كم کي ماقبل فعل عمل نسي کولای، ولي چي كم استفهاميه دی صدر د کلام غواړي.

**سوال:** کلمه د كم خبريه مفيد د کثرت وي، نو بيا خو مانع د عمل د ماقبل نه دی؟

**ځواب:** بيا هم كم مانع د عمل دی وان كانت خبرية لان اصلها الاستفهامية.

## اَنَّهُمْ اِلَيْهِمْ لَا يَرْجِعُوْنَ ۝۳۱

هغه مهلکين و دوی ته رجوع نسي کولای.

**پوښتنه:** چي انهم آه بدل اشتمال دی له كم څخه على المعنى اى الم يروا كثرة اهلاكنا من قبلهم الم يروا انهم غير راجعين اليهم.

**درویش وایي:** چي چونکه ددې آیت څخه یعني انهم الخ دا توهم کېدی چي مړي به ابدًا رجوع ژوند ته نه کوي کما یزعمه المشرکون رفع اللهﷻ ذالک بقوله.

وَإِن كُلٌّ لَّمَّا جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ ۝

یعني یوم القیامة.

**پوه سه:** چي لما په دېرو سورتونو کي د قرآن مجید راغلی دی، بعض قراء یې په تشدید وایي، نو پر دې تقدیر ان نافیه دی، او لما په معنی د الا دی او څوک چي لما په تخفیف وایي، نو ان مخفف د مثقل اسم یې ضمیر شان محذوف دی، والتقدیر انه ای ای الشان، لام په لما کي لپاره د فرق دی د ان النافیة والمخفف من المثقل او ما زائد دی د تاکید د مابعد او جمیع پر وزن د فعیل دی په معنی د مفعول، او لدینا ظرف دی د جمیع یا د محضرون.

**فائده:** په هغه آیت کي انهم الینا لایرجعون رد دی پر اهل الرجعة چي دوی وایي چي بعض مړي به تر قیامت دمخه دنیا ته بیرته راژوندي سي کما حکی عن ابن عباس رضی الله عنه چي چا له ده څخه پوښتنه وکړه چي یو قوم اوس ظاهر سوی دی چي هغه وایي چي علي کرم الله وجهه ژوندی کېږي دمخه تر ورځي د قیامت؟ ابن عباس رضی الله عنهما وویل بئس القوم چي موږ ښځي په نکاح کړې او میراث مو ووېشی، غرض یې دا وُ که علي رضی الله عنه راجع کېدای نو خو به ژوندی یو ځای وای، او د ژوندي مال خو نه وېشل کېږي او نه یې مایینه په نکاح کېږي.

**مسئله:** په دغه آیت سره کفر د روافضو ثابتېږي چي دوی وایي (ان علیًا واصحابه یرجعون الی الدنیا فینتقمون عن اعدائهم) دوی به انتقام واخلي د خپلو دښمنانو څخه ویملأون الارض عدلاً کما ملئت جورًا، لان ذالک القول مخالف للنص المذکور فافهم.

انعام الهي با امة النبي العربي ﷺ: بدانکه خداوند متعال این امت محمدیه را اخیر الامم گردانیده فضلاً وکرمًا منه تاکه ایشان عبرت گیرند از کفار امم ماضیه وایشانرا عبرت دیگر امت نه گردانیده اند واز هر امت خداوند متعال شکایت وگیله نموده واز امت مصطفی ﷺ شکایت بگوش دیگران رسانده از امم

ماضيه، كريمه: كنتم خير امة اخرجت للناس الى اخير الآية، نوازش گرانمايه ايشان است، هان شكايت ايشان الى نبيهم المصطفى ﷺ درليلة المعراج كرده قرار ذيل (١) اني لم اكلفهم عمل الغد وهم يطلبون مني رزق الغد (٢) مانميدهم رزقهاى شان بديگران وايشان اعمال خود را بغير ما ميدهند مثلاً بت پرستي وريا كاري ميكنند (٣) يأكلون رزقي ويشكرون غيرى (۴) همراه ما خيانت مينمايند وباغير يعني باخلق بصلح (۵) ان العزة لي وانا المعز وهم يطلبون العزة من سواى (۶) ما دوزخ را براى كافران افريده ام وايشان كوشش ميكنند كه بدوزخ بيايند:

**ابيات**

**فغان از بديها كه درنفس ماست .... به فعل نكوهست ونه گفتار است**

**او خواهنده بودن بمحشر فريق .... نه دانيم كدامين دهندم طريق**

**خدايا دوچشم زباطل بدوز .... بنورم كه فردا نيارم بسوز**

وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الْاَرْضُ الْمَيْتَةُ ۖ اَحْيَيْنٰهَا

**پوه سه:** چي (احييناها) خبر دى د الارض، والجملة خبر آية لهم، او دا دليل پر حقيقت د بعث بعد الموت دى مځكه ده چي مړه وي يعني نباتات نه وي باندي.

**فائده:** دې ته موت مجازًا وايي چي زه يې ژوندى كړم په نباتاتو چي هغه د مطر (باران) په ذريعه پيدا كېږي.

**فائده:** اطلاق د احياء پر سرسبزي مځكي هم مجاز دى، يعني د احياء الموات د قيامت په ورځ هم ورته نقشه ده فالقادر على احياء الارض بعد الموت قادر على احياء الاموات من القبور. فيا للعجب لكفار مكة يرون احياء الارض بعقدرة الخالق المعبود وينكرون احياء الاموات عند البعث والنشور.

وَاَخْرَجْنَا مِنْهَا حَبًّا فَمِنْهُ يَاْكُلُوْنَ ﴿۳۳﴾

او موږ پيدا كړي دي له مځكي څخه دانې غنم، جواري اوريشي (فمنه) له هغه حب څخه (يعني يا بالذات يا بالواسطة) خلك خورك كوي.

**فائده:** جار او مجرور يعني منه د مخه پر متعلق به يعني يأكلون لپاره د افادې ددې چي لويه حصه د ژوندانه دانې پوره كوي، يعني لا للحصر حتى يرد السوال.

وَجَعَلْنَا فِيهَا جَنّٰتٍ مِّنْ نَّخِيلٍ وَّاَعْنَابٍ

او موږ پيدا کړي دي په مځکه کي باغونه د خورما د درختو على كثرة انواعها او د انګرو باغونه مع کثرة انواعها.

**درویش وايي:** چي په کندهار کي د انګورو پنځه ويشت (۲۵) قسمه ماليدلي يا خوړلي دي.

**عجيبه:** په تاريخ کي راغلي دي چي يو عالم چي د لغت د کتاب په تصنيف بوخت ؤ، او نوبت چي نخيل ته ورسېدى ده غوښتل چي په کتاب کي د خورما د اقسامو نومان ضبط کړي، يو بل عالم چي دده دوست ؤ او په خيبر کي اوسېدى چي د خورما تقريبًا مرکز دی نوشته کړه چي ته ماته د خورما د اقسامو نومان نوشته کړه چي زه يې د لغت په کتاب کي نوشته کړم، د خيبر عالم د هر قسم څخه د خورما يو يو دانه سره جمع کړه، او په بوجۍ کي يې واچولې ډکه بوجۍ يې ورواستول، او ورته نوشته يې کړه چي دا خو ماته معلومي وې والعلم عند الله، تنبيهًا على ان درج جميع انواع التمور لا يسعها الكتاب.

**فائده:** چونکه انواع د نخيل او اعناب ډېر دي کما مر آنفًا، نو ځکه يې دواړه جمع راوړه يعني نخيل چي جمع د نخلة ده او اعناب چي جمع د عنب ده، او د حب انواع چونکه دومره ډېر نه وه، نو ځکه يې حب مفرد راوړی.

**سوال:** د حب انواع خو هم ډېر دي لکه بارتنګ، ايږدن، شکمپاره، ريحان وغيرها؟

**ځواب:** مراد له حب څخه هغه دانې دي چي خوراکي على الاغلب شيان ځني پخېږي تأمل.

وَفَجَّرْنَا فِيهَا مِنَ الْعُيُونِ ﴿٣٤﴾

او موږ جاري کړي په مځکه کي يو شی د چينو، نو اصل يې شيئًا من العيون، نو موصوف يې ځني حذف کړی او په نېز د اخفش کلمه د من زائده ده.

لِيَاْكُلُوْا مِنْ ثَمَرِهٖ

تاچي خلګ خورک وکړي له مېوو څخه د جناتو په تأويل د مذکور فلايرد السوال چي د ثمره ضمير خو مفرد دی او جنات جمع ده فافهم.

**فائده:** لیأکلوا متعلق دی په فجرنا پوري، او بعض مفسرین وایي چي ضمیر د ثمره راجع و خدای ج ته دی علی طریقة الالتفات من التکلم الی الغیبة ووجه الاضافة الیه تعالی لان الثمار کلها یخلق الله تعالی، په تفسیر بحر العلوم کي وایي قال علیه الصلوة والسلام اکرموا الخبز فان الله تعالی اکرمه فمن اکرم الخبز اکرمه الله. وفي حدیث آخر اکرموا الخبز فان الله سخر له برکات السموٰات ای الامطار، والارض ای النماء، والحدید چي تېش ځني جوړیږي چي مځکه په قلبه کشي کېږي، یا په اوسنی زمانه کي زراعتي آلات د اوسپنې، او مسخر کړي يې دي غوایي د یوي او غوبل لپاره، یا قائمقام د غویو لکه پو اوسنی زمانه کي زراعتي آلات د اوسپنې د نامبرده کارو لپاره، او ابن آدم یې هم مسخر گرځولی دی چي بني آدم سراسیمه دی د خبز، ډوډۍ، تیکله، مړۍ په تحصیل او لاس ته راوستلو په باره کي، په روح البیان کي وایي چي دغه ډوډۍ چي انسان یې خوري درې سوه شپېته (۳۶۰) صانعان لري چي اول یې میکائیل ؑ دی الی اخیره، شیخ سعدی قدس سره السامی چه خوش میفرماید دین باب:

ابـــر وبـاد مـه وخـــورشید وفـلـک در کارند
تـا تـونـانی بکف آری وبغـفلت نـخـوری
همه از بهر تو سـر گـشته وفـرمـــان بـردار
شـرط انصـــاف نباشد که تو فـــرمـــان نبری

**فائده:** پوښتنه! خدای پاک په دمخه آیت کي په بیان کي د جناتو د اسي عبارت راوړی من نخیل واعناب، نو پوښتنه داده چي اعناب خو انگور و ته وایي چي خوړل کېږي، او نخیل خو د خورما درختو ته وایي چي غیر مأکول دي، نو ځکه حکمت الهي دی چي په ځای کي د نخیل یې تمور نه وویل چي میوه د نخیل ده او خوړل کېږي لکه انگور فیتناسب المعطوفان؟

**ځواب:** د انگور درخته چي تاک یې بولي بېل (علحده) خواص ډېر نه لري، نو ځکه خدای جل جلاله د تاکانو میوه ذکر کړه چي انگور دي بخلاف النخیل ولي چي دا درختي د خورما خواص عجیبه کثیره لري د تعجب وړ (۱) دا درخته اوله درخته ده چي پر مځکه یې قرار درلودلی دی (۲) دا درخته زموږ انسانانو عمه ده، ولي چي

دا د هغه ختو څخه جوړه سوې ده چي د آدم ابو البشر ﷺ بنيه او صورت پوره سو، يو څه فضله ئې پاته سوه، نو د خورما د درختي ماده خداى پاک وګرځول (۳) بل د انسان سره مشابهت لري په استقامت کي د قامت وطولها على الاغلب (۴) دا درخته لکه انسان نر او ښځه لري، چي هر کال به نر مند که د ښځي درختي په ذريعه د سکنه (پيوند) ورا يږدي، نو حمل اخلي او خورما کوي (۵) که باغ والا وغواړي چي يوه زړه درخته د خورما دي له منځه ولاړه سي، نو نه دې پيوند وي، نو په باغ کي د خورما د نر درخت چي هر ځاى وي دا بې پيونده درخته د نر درختي چي وقت د حمل يې راسي ور کږيږي حتى اخير غځاره سي (۶) اول چي وابښکى د خورما راوړي چي طلع يې بولي د مني بوى يې ځي (۷) پر طلع يو نازک پوښ او ار دى لکه شيمه د د مورزاده کوچني د انسان (۸) په دې کي د انسان سره مشابهت لري چي د انسان سر چي پرې کړل سي د حيوة امکان يې قطع ګرځي، دغه رنګه د خورما د درختي سر چي پرې کړل سي بيا مېوه نه کوي، او که څه هم کلونه پر تېر سي او په مځکه کي ولاړه وي (۹) په باغ کي د خورما چي نر او ښځي د پرې سره ولاړي وي ښه مېوه کوي، لانها تستأنس بالمجاورة، او نوري خواصي هم لري.

وَمَا عَمِلَتْهُ أَيْدِيهِمْ ۖ أَفَلَا يَشْكُرُونَ ۝

(وما عملته آه، عطف على ثمره) او هغه شيان چي ستاسي لاسو يې عمل کړى وي، و کلمة ما موصولة.

**يوه سه:** چي مراد د ما عملته څخه دوښا يا سرکه يا ماء العنب يا نبيذ التمر ونبيذ العنب ونحوها، او بعض راويان وايي چي کلمه د ما نافيه ده، والمعنى ان الثمر بخلق الله لابفعلهم (افلا يشكرون) الهمزة للاستفهام الانكاري والفاء للعطف على مقدر، تقديره اينكرون انعام الله فلا يشكرون وانكار ترک الشكر يدل على الامر بالشكر التزامًا.

سُبْحَانَ الَّذِي خَلَقَ الْأَزْوَاجَ كُلَّهَا مِمَّا تُنْبِتُ الْأَرْضُ

پاکي ده يعني له هر نقص څخه هغه ذات بې همتا لره چي پيدا کړي يې دي اصناف انواع، ټول د هغه مواد و څخه چي مځکه يې شنه کوي من النباتات والاشجار المثمرة وغيرها.

وَمِنْ اَنْفُسِهِمْ وَمِمَّا لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿۳۶﴾

او ستاسي د ځانو څخه يعني نر او ښځي، او هغه شيان يې پيدا کړي دي يعني په بر او بحر کي چي تاسي علم نه پر لرئ، کريمه: ولايعلم جنود ربک الاهو.

وَاٰيَةٌ لَّهُمُ الَّيْلُ ۚۖ نَسْلَخُ مِنْهُ النَّهَارَ فَاِذَا هُمْ مُّظْلِمُوْنَ ﴿۳۷﴾

او دليل دی پر قدر د خدای ج شپه چي مونږ وکاږو او پوست کړو له دې څخه ورځ.

**بوه سه:** چي اصل خو ظلمت دی ورځ په طلوع د شمس پر دې يعني پر شپې داخل سي، نو ګويا شپه په پوست کي د ورځي راغله چي لمر ولوېږي ګويا له شپې څخه پوست د ورځي وختی نو بيرته شپه ښکاره سي.

**بوه سه:** چي دا کلام الهي استعاره ده من سلخ الجلد عن الحيوان فيظهر لحمه. (فاذا هم مظلمون) عطف دی پر نسلخ منه النهار، نو ناببره دوی داخل سي په ظلمت کي د شپې، والحاصل يذهب بالنهار ويجيئ بالليل.

وَالشَّمْسُ تَجْرِيْ لِمُسْتَقَرٍّ لَّهَا

**بوه سه:** چي والشمس عطف دی على الليل، والتقدير وآية لهم الشمس وجملة تجري مستأنفة لبيان كون الشمس آية ويجوز انيكون الشمس مبتداء وتجري خبرها والجملة عطف على الليل، والتقدير وآية لهم الشمس تجري.

**بوه سه:** چي جريان د لمر په خپل فلک کي داسي دی لکه ماهی چي په اوبو کي روان وي يعني فلک يې ساکت دی او لمر او نور ستوري په خپلو خپلو افلاکو کي روان دي لکه ماهيان په اوبو کي. وهذا عند اهل الاسلام ويدل عليه ظاهر القرآن والاحاديث، وعند اهل الهيئة الكواكب ساكنة والحركة لافلاكها.

**بوه سه:** چي لمستقرلها مستقر يا مصدر ميمي دی يا ظرف دی. والمعنى تجري لاستقرار لها على نهج مخصوص كما تراه الاعين (يعني استقرار په معنى د سکون نه دی بلکې په معنی د سير على النهج المخصوص) او لموضع استقرارها چي منتهي د يوې دورې شبانه روزي ده، او يا مستقر د شمس مابين د اسمان دی دمخه تر زوال ولي چي په دغه وخت کي حرکت دده بطئي سي بحسب

رؤية اهل الارض حتى چي د اهل الارض دا گمان کېږي چي لمر وقفه وکړه وليس
وقفة بحسب الواقع ولابطو ، حرکتها في نفس الامر، او يا مستقر دده نهايت
ارتفاع دده، ده په دوبي کي يعني حين کونها في المنقلب الصيفي، او نهايت
کښته والی د لمر دی په ژمي کي يعني عند المنقلب الشتوي، او يا تر منتهی
مقدر پوري د هري ورځي من المشارق والمغارب ولي لمر چي يوه دوره پوره کوي
يعني يو کال شمسي درې سوه پنځه شپېته (۳۶۵) مشرقه ستته او درې سوه پنځه
شپېته (۳۶۵) مغربه ستته، چي لمر هره ورځ په يوه مطلع کي د بلي ورځي جلا
راخېژي، وهكذا تغرب کل يوم في مغرب علحدة، بل کال بيا دا غسي رفتار د لمر
په خپلو مشارقو او مغاربو کي، او يا د مستقر د لمر قطع د جری دده عند خراب
الدنيا، کريمه: يوم نطوى السماء کطى السجل للکتب.

**فائده:** دا ټوله بيان مبني پر دې دی چي لمر په هيڅ حال کي قرار او سکون نه
لري في وقت من الاوقات، ويدل عليه قرائة ابن مسعود رضي الله عنه وما رواه البغوي عن
عمر بن دينار عن ابن عباس رضي الله عنه (چي ابن مسعود رضي الله عنه او ابن عباس رضي الله عنه دا آيت داسي
وايه) والشمس تجري لا مستقرلها، او روح البيان وايي چي لام په لمستقرها لام
عاقبة دی (نحو لدوا للموت وابنوا للخراب) او مستقدر مصدر ميمي دی
والمعنى تجري (اى الشمس) بحيث يترتب على جريها (وهذا معنى اللام
للعاقبة) استقرارها في کل برج من البروج (۱۲) على نهج مخصوص يعني چي په
هر برج کي قرار لري يوه مياشت او دا هم نهج مخصوص د لمر د جری دی چي شپه
کرار کرار د ورځي ساعات په ځان کي داخلوي لکه په مني او ژمي کي چي نيم کال
سي او دا غه رنګه ورځ د شپې ساعات کرار کرار په ځان کي نغاړي لکه په پسرلي
او دوبي کي چي نيم کال سي، او دا هم د لمر د جرى نهج مخصوص دی چي دی
ځان نهايت ارتفاع ته رسوي په دوبي يعني په منقلب صيفي چي اطول د ورځو ده
او نهايت الخطاط ته رسېږي په ژمي کي، يعني په منقلب شتوي کي چي شپه يې
اطول د شپو ده ويترتب على جريها اختلاف الفصول الاربعة يعني پسرلی، دوبی،
مني او ژمی. فمن الاعتدال الربيعي الى المنقلب الصيفي چي درې مياشتي سي
پسرلی دی ومن المنقلب الصيفي الى الاعتدال الخريفي چي هم درې مياشتي دي

دوبی دی، ومن الاعتدال الخريفي الى المنقلب الشتوي چي هم دري مياشتي دي منی دی، ومن المنقلب الشتوي الى ان ينتهى الاعتدال چي هم دري مياشتي دي ژمی دی، وحينئذ يتم دورها يعني يو كال شمسي پای ته ورسېږی ثم وثم يعود هذه الدورات الى ماشاء الله تعالى يعني يختم هذا النظام في يوم القيام، والله تعالى اعلم بالصواب واليه المرجع والمآب.

وروى البغوي رح الشافعي المذهب المشهور بمحى السنة عن ابى اذر رضي الله عنه عن النبي ﷺ انه قال حين غربت الشمس اتدري اين تذهب الشمس هذه؟ قلت الله ورسوله اعلم، قال عليه الصلوة والسلام فانها (اى الشمس، مؤنث ضمير يې ورته راجع كړی له دې سببه چي لفظ د شمس مؤنث سماعي دی) تذهب حتى تسجد تحت العرش فتستأذن (يعني في الطلوع من المشرق) فيؤذن لها ويوشک (اى قريبه ده) ان تسجد ولاتقبل منها وتستأذن (اى للطلوع من المشرق) فلا يؤذن لها ويقال لها ارجعي من حيث جئت فتطلع من مغربها (دا علامه د قرب القيامة ده او په دې وخت كي د توبې دروازه بنده سي فلايقبل ايمان كافر لم يؤمن من قبل ولا توبة العاصي)

**سوال**: مدار د شپې له وخت څخه د غروب د لمر تر وخت پوري د طلوع په اعتبار د اقاليم د كرة الارض خو فرق ډېر بدهي او ظاهر فرق راوړی حتى چي تر قطب شمال من وراء بلغاريا (چي د يو وطن نوم دی چي قطب شمال د دوی پر سرو برابر دی چي لمر په رأس السرطان كي وي يعني نقطة المنقلب الصيفي يكون الليل بحيث لايكون لها وقت العشاء ولي چي لمر پر دوی په مقدار د ميل كلي غائبيږي، نو چي لمر ولوېږي چي شفق د مغرب د خوا غائب سي د ستي سپېدی راچوي، نو دومره وخت له كومه دی چي لمر دي غروب وكړي بيا دي تر عرش لاندي سجده كوي او بيا دي اذن د طلوع من جانب المشرق غواړي؟

**ځواب**: د دې سوال په ځواب كي مظهري رح وايي چي د حديث دا معنى نه ده چي لمر همېشه پر سجده وي له وخته څخه د غروب تر وخته پوري د طلوع بلكې په داسي وخت پوري مخصوص دی چي تاريكه د شپې ټولو اقاليمو ته شامله وي، يعني هغه وخت چي د لمر رفتار پر وسط د ټولو اقاليمو وي، نو په دې وخت كي

هغه ملکي چي پر لمر مسلطي دي لمر ورسوي ما تحت العرش ته فتخر ساجدة ثم يؤذن لها بالطلوع او مقدار د شپې په اختلاف د اقاليمو باختلاف مبدء الليل ومنتهاه انتهى قول المظهري. په پښتو ژباړه.

**درويش وايي:** چي دا جواب د لفظ سره د حديث برابر نه دی، ولي سوال د عليه الصلوة والسلام له ابو ذر رضي الله عنه څخه اتدري اين تذهب آه. او ابو ذر رضي الله عنه خپله لا ادري ورته ښکاره کړه او علم د دې پوښتنې یې خدای او رسول ته وسپاری. او عليه الصلوة والسلام ځواب ورکړی فانها تذهب حتى تسجد آه. دلالت پر دې کوي چي على الدوام د لمر د غروب او د طلوع دغه کار دی الا ان يقال ان لفظ الحديث يعني قوله عليه الصلوة والسلام فانها تذهب حتى تسجد تحت العرش الخ.

قضية مهملة لعدم وجود لفظ الايجاب الكلي فيه، واتفق العلماء عن اخرهم ان القضية المهملة في قوة الجزئية فافهم. ويمكن الجواب بان سوال النبي ﷺ عن ابي ذر رضي الله عنه وجوابه بتفويض العلم الى الله ورسوله وجواب رسول الله ﷺ وبما اجاب كان وقت يكون الاقاليم سواسية الاقدام في شمول ظلمة الليل لها كلها فتدبر والعلم عند الله.

**درويش وايي:** چي پر جزئيت د جواب د عليه الصلوة والسلام يعني على ان قوله ﷺ قضية جزئية يدل هغه بيان د اهل هيئت چي په عرض تسعين کي يعني هغه ځای چي د استوا څخه عرض د شمال و خوا ته (۹۰) ورځي وي نو په هغه ځای کي چي لمر په بروج شماليه وو کي وي همېشه طالع وي غروب نه لري لكون تلك البروج فوق الافق ابداً او چي لمر و بروج جنوبيه ؤ ته نقل سي بيا طلوع نه لري لكون تلك البروج تحت الافق ابداً. حرکت د فلک دلته رحوي دی يعني لکه په ژمي کي، نو شپږ بروج شمالي ټوله ورځ ده او شپږ بروج جنوبيه یې شپه ده، نو کل د دغه ځای یو شبانه روز دی نصفها نهار ونصفها ليل.

**پوښتنه:** په قرآن کريم کي به وروسته راسي (كل في فلک يسبحون) چي په دې آيت کي نسبت د فعل جمع ته د عقلاؤ دی يعني يسبحون کړی دی، او داغه رنګه په سورت يوسف کي في قوله تعالى اني رئيت احد عشر كوكبا والشمس والقمر رئيتهم لي ساجدين، چي په دې آيت کي هم ضمير د عقلاؤ راغلی دی، او داغه

رنګه په حدیث د ابی ذر رضي کي راغلي دي انها تسجد وتستأذن، فان الظاهران الاستیذان بلسان القال دون لسان الحال، نو حاصل د پوښتنې دادی چي لمر او سپوږمۍ او ستوري د ذوی العقول څخه دي او که له جماداتو څخه دي؟

**ځواب:** ددې سوال په ځواب کي علامه آلوسي رحمه الله په روح المعاني کي یو په زړه پوري ځواب راوړی دی ولفظه ان الله تعالی بقدرته خلق الادارک والتمیز فیها حالة السجود والاستیذان.

**سوال:** دا ادارک او تمیز وروسته تر سجود والاستیذان ددوی څخه بیرته سلبوي او که څرنګه؟

**ځواب:** سید آلوسي رحمه الله وایي چي بیرته یې سلب د ادراک او تمییز ددوی څخه بعید غایة البعد، ولي چي شواهد د کتاب الله او د سنت نبوي او اقوال د اهل هیئت علی کونها ذات ادراک وتمییز مما لا تکاد تحصٰی کثرة وبعض الشواهد یدل علی علی ذالک ای الادارک والتمیز للشمس وبعضها یدل پر ثبوت د ادارک او تمییز لمر لره باعتبار دخول الشمس في عموم الادراک والتمیز په اثبات کي و تولو کواکبو ته، او یا نور ستوري پر لمر قیاس دي اذ لا قائل بالفرق بین الشمس وبین سائر الکواکب في ذالک ومتی کان کذالک فلا یبعد انیکون لها ای للشمس نفس ناطقة کنفس الانسان بل صرح بعض الصوفیة رحمه الله چي لمر نفس ناطقه کاملة جدًا لري، والحکماء اثبتوا النفس للافلاک و بعضهم باثبات النفس الناطقة للکواکب جمیعًا وقالوا کل ما في العالم العلوي من الکواکب والافلاک الکلیة والجزئیة کخارج المرکز والحوامل والتداویر ناطق دي، سید محمود آلوسي رحمه الله زیاته کړې ده چي نفس انساني چي د غایة تقدس و مقام ته ورسیږي یعني د خپل بدن څخه ووځي، او په صورت متمثله سي ظاهرة بصور ابدانها او بصور اخری کما یتمثل جبرئیل علیه السلام بصورة دحیة بن خلیفة رضي الله عنه ویجیٔ الی رسول الله صلی الله علیه وسلم ویتکلم بالوحي کما في البخاري وغیره، دا معنی نه ده چي جبرئیل علیه السلام چي شپږ سوه (۶۰۰) وزره یې په صورت اصلي کي درلودل هغه نیست او نابود سي، بلکي دا تمثیل صورت په صورت د دحیة د خپل اصلي صورت سره علاقه لري چي خپل آثار او افعال په صورت اصلي پر ځای ساتي، او بعض وخت جبرئیل علیه السلام په

صورت د يوه اعرابي متمثل عليه الصلوة والسلام ته راغلی كما جاء في صحيح البخاري و كما يحكى عن بعض الاولياء قدست اسرارهم انهم يرون في وقت واحد في عدة مواضع كالغوث الاعظم قدس سره، كما هو المشهور و المثبت بالروايات الصحيحة وانما ذالك ذالك لغاية تجرد انفسهم وغاية تقدسها عن العلائق البدنية فتمثل بصورته الاصلية في عدة مواضع وبدنها الاصلي في موضع اخرى. وهذا امر مقرر عند سادة الصوفية وهو غير لقطع المسافة البعيدة في ادنى وقت وزمان، محمود آلوسي رح وايي چي انكار د دغو دوارو خبرو چي تمثيل په خپل صورت سره بل ځای او طي د مسافة بعيده في ادنى زمان يعني چي څوک انكار د دغو خبرو پر صوفية كرامو كوي مكابرة لاتصدر الا من جاهل او معاند.

او تعجب كړی دی علامه سعد الملة والدين التفتازاني رح وه بعض فقها، ته د اهل السنة لكه ابن مقاتل چي حكم د كفر يې كړی دی پر معتقد د ماروی عن ابراهيم بن ادهم قدس سره چي خلكو دی په بصره كي وليدی په ورځ د اتم د ذوالحجة او په عين داغه ورځ كي نورو دی په مكه كي وليدی، ابن مقاتل وايي چي له معجزات كبارو څخه ده ولي كرامت نسي كېدای، علامه تفتازاني رح وايي چي معتمد په نېز د اهل السنة داده ثبوت د كرامت د ولي الله ده مطلقًا الا فيما ثبت بالنص عدم امكانه من ولي، كالاتيان بمثل سورة من القرآن، كريمه: ان كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فأتوا بسورة من مثله (سورة البقرة)

**درويش وايي:** چي سيد محمود آلوسي علامه بغداد رح وايي قد رایٔ غير واحد تمثيل د نفس انور لنبينا ﷺ بعد الوفات وادعى انه عليه الصلوة والسلام في عدة مواضع في وقت واحد يقظة لا منامًا مع كونه في قبره الشريف يصلى مع ان القبر الانور مكان ضيق لايصلح للصلوة قيامًا فما ذالك التمثيل ذاته الشريف وقبره الانور، وقد صح ان النبي ﷺ ریٔ موسیٰ ؑ يصلي في قبره عند الكثيب الاحمر بيا عليه الصلوة والسلام وليدی وریٔ في السماء او د عليه الصلوة والسلام او د موسیٰ ؑ خبري په فرضي لمونځو كي چي په شپه كي د معراج (۵۰) پنځوس لمونځونه پر عليه الصلوة والسلام خدای ﷻ فرض كړه، او موسیٰ ؑ ورته ووييل ان امتک لاتطبق تلک الصلوات، څو واره يې عليه الصلوة والسلام رد

کري د درخواست د تخفيف الحديث، کما رواه البخاري وغيره وقد رئ النبي ﷺ ليلة الاسراء جماعة من الانبياء غير موسى ؑ مع ان قبور هؤلاء الانبياء عليهم السلام في الارض ولم يقل احد من علماء الامة المرحومة چي دغه انبياء ؑ له قبرو څخه اسمانو ته يوړل سول، نو ليدل په اسمانو تمثيل او قطور دى د خپلو ځانو په اسمانو مع ثبوت طورهم الاصلية في قبورهم في الارض، حکماء که څه هم وايي چي دا محال ده چي يو نفس دي مشغول کي اکثر تر بدن واحد لکن دا تمثيل د دوى تر عقلو لوړ دی کما لايخفى على من نور الله تعالى بصيرته.

والحاصل في تفسير الآية المذکورة ان للشمس نفسًا مثل تلک الانفس القدسية وانها تنقل عن الجرم المعروف المشاهد للناس مع بقاء نوع التعلق بها فتعرج الى العرش فتسجد تحت العرش بلا واسطة وذالک التمثيل تستقر هناک وتستأذن في الطلوع ولاينافي ذالک الاستقرار والتأذين في الطلوع د سير سره د جرم معروف په خپل اسمان وعدم سکونه لکه اهل هيئت چي هم مدعيان دي د عدم سکون د لمر ويکون ذالک اذا غربت الشمس وجاوزت عن الافق الحقيقي او قطع سي ليدل دده من مکان المعمورة من الارض ولا يضر طلوعها اذ ذاک في عرض (٩٠) ونحوه لان ما ذکرنا من السجود وانيکون باعتبار النفس المنسلخة المتمثلة بما شاء الله تعالى لاينافي سير الجرم الاصلي للشمس المعروف، وروسته بيا الوسي رح د شيخ محى الدين ابن العربي قدس سره خبري په فتوحات مکيه (چي د ابن عربي د کتاب نوم دی) رانقل کړي دي چي زموږ تر عقولو لوړ دي.

**درويش وايي**: چي پر ده علامه بغداد السيد محمود آلوسي رح په روح المعاني کي د کش ماکش چي مظهري کړی ؤ او وړاندي تېر سو چي وروسته تر غروب هغه ملائکه چي خداى ﷻ پر لمر مسلطه کړي دي دوی لمر له يوه اسمان څخه بل ته له بله څخه بل ته وهکذا حتى چي عرش ته يې ورسوي او هوري لمر سجده وکړي او استيذان د طلوع وغواړي د شرق د خوا کما في حديث ابى ذر رض چي راغلي وه، موږ د کش ماکش څخه خلاص سوو، ولي چي دا معروف لمر خو د خپل ځايه نه ځي د سجدي لپاره او د استيذان لپاره بلکي هغه متمثل لمر هوري ځي فتدبر غاية التدبير (درويش وايي: چي دا ؤ تفسير قوله والشمس تجرى لمسترها)

ذٰلِكَ تَقْدِيرُ الْعَزِيزِ الْعَلِيمِ

(ذالک) اشاره ده مصدر ته د تجري ای الجری المتضمن لحکمته تعالی چي عقول عاجزه دي و پای ته د رسېدو د هغه حکمت) اندازه د هغه غالب خدای پر هر مقدور قادر دی، لایعجزه شيئ فیما قدره او چي خبر دی په هر معلوم سره.

وَالْقَمَرَ قَدَّرْنَاهُ مَنَازِلَ

ای قدرنا لمسیره منازل او قدرنا مسیره في المنازل.

**پوه سه:** چي القمر منصوب دی په اضمار د فعل فسره مابعده، یعني قدرنا چي دې ته منصوب علی شریطة التفسیر وایي چي فائده یې داده چي څوک چي په اول هیئت نصب د قمر ووینې په ناصب کي متردد او منتظر سي، وروسته چي تفسیر ووینې انتظار یې دفع سي. . جامي قدس سره وایي:

چه خوش باشد که بعد از انتظاری .... با امید رسد امیداوری

او داسي علم چي وروسته تر انتظار پیدا سي الذ او اوقع په ذهن کي وي (منازل) وهي (۲۸) منزله دي، ینزل القمر في کل واحد لیلة واحدة لایتخطاه ولایتقاصر عنه. فاذا کان في اخر منازله دق نری سی واستقوس لکه کمان په سبب د غایت قرب وده ته یعني لمر ته، ولي چي نور د قمر مستفاد له نور څخه د شمس دي. نو پر دغه قدر نور د لمر یې پر برابري مورېږي وینو او نوره نوراني خوایې لوره وي.

حَتَّىٰ عَادَ كَالْعُرْجُونِ الْقَدِيمِ

حتی چي وگرځي لکه لرگی د خورما د ښاخ چي زوړ وي، تخمینًا یو کال پر تېر سوی وي چي داسي لرگی ډېر کوږ او دقیق وي حتی تحت شعاع د لمر لاندي پټه سي چي په عربي یې محاق بولي او پښتانه وایي چي سپوږمۍ لمر واخستل.

لَا الشَّمْسُ يَنْبَغِي لَهَا أَنْ تُدْرِكَ الْقَمَرَ

نه لمر لره ښایي.

**پوه سه:** چي عبارت چي حرف نفي یې پر شمس داخل کړی ابلغ دی تر داسي عبارت لاینبغي للشمس. کما قالوا انت لاتکذب بتقدیم المسند الیه ابلغ دی

لاتكذب انت، ولي چي په اول كي دوه اسناد سته بخلاف الثاني كما تقرر في علم
النحو فالمعنى لا الشمس يصح لها ويتسهل (ان تدرک القمر) چي و دي رسيږي په
سپوږمى پسي، قال البيضاوي وروح البيان اى في سرعة سيره، وهذا مبني على ما
قال الفلاسفة ان القمر اسرع سيرًا من الشمس، ولي چي سپوږمى دوره په يوه مياشت
كي قطع كوي، او دوره د لمر په يوه كال كي، والاولى ان لايقيد السير بالسرعة بل
يقال الشمس لاتدرک القمر في سيره المخصوص يعني چي سر د دواړو پر يوه دول
وي فان ذالک يخل تبكون النباتات وتعيش الحيوانات وذالک لان الباري ﷻ
بحكمته جعل لكل واحد من الشمس والقمر سيرًا مخصوصًا وربط به منافع
الحيوانات والنباتات، مثلاً لمر چي دى كاملة النور دى نو كه لمر بطئ السير واى
لدامت في بقعة واحدة زمانًا كثيرًا، نو د هر شي چي لمر مسامت وي هغه سوځي او
كه سريعة السير واى لما حصل لها لبث في بقعة واحدة بقدر ما يخرج النبات من
الارض والاوراق والثمار من الاشجار وما ينفع الثمار والحبوب نو كه لمر ورسيږي
په سپوږمى پسي في سرعة سيره فكان في شهر واحد صيف وشتاء، فيختل احكام
الفصول الاربعة وتكون النباتات وتعيش الحيوان، او دا هم احتمال سته چي معنى د
آيت دي داوي چي نسته لمر لره چي و دي رسيږي درجه ته د سپوږمى في آثاره
ومنافع چي هغه په هر يوه پوري خاص دي، وليس الآخر ان يدركه فى تلك المنافع
والآثار، مثلاً د ميوو پخوالى په لمر پوري اړه لري ولونه بالقمر وطعمها بالكواكب،
او دا هم روا ده چي معنى د آيت دي داوي چي نسته لمر ان تدرک القمر في مكانه ولا
يجتمعان في موضع واحد، ولي سپوږمى په اول اسمان كي ده او لمر په څلورم
اسمان كي دى، نو جمع يې ممكنه نه ده او يا معنى داده چي لمر د سپوږمى ادراک
نسي كولاى په سلطنت كي د سپوږمى يعني نور د سپوږمى چي دليل د وجود د
سپوږمى دى، ولي چي نور د سپوږمى خو د شپې وي نو لمر نسي كېداى چي د
سپوږمى سره دي يو ځاى سي بان تطلع الشمس ليلاً، ولي چي سلطان د قمر محو
کېږي او داغه رنګه ورځ پر شپه غالبه ګرځي.

**دروېش وايي:** چي دا ټول احتمالات چي ذكر سوه روح البيان راوړي دي، او
بعضو نورو تفاسيرو هم راوړي دي، او مظهري وايي چي بعضو علماؤ چي ويلي

دي چي حديث د ابو ذر رضي الله عنه له متشابهاتو څخه دی، يا بعض وايي چي مراد له سجود څخه نفس انقيادي د سياق سره د حديث منافي دی والله اعلم.

**درويش وايي:** چي مظهري په حواله د بغوي رحمه الله نه وايي چي دا هم روا ده چي د شمس څخه ورځ مراد وي (بعلاقة ان الشمس تكون بالنهار) او د قمر څخه دي شپه مراد وي (اى مجازًا المذكور آنفًا) نو د دې وروسته آيت مقابله برابرېږي اذ المعنى لاينبغي للنهار ان يدرك الليل اى يسبقها.

وَلَا الَّيْلُ سَابِقُ النَّهَارِ

او نه شپه د مخه کېږي تر ورځي، يعني شپه او ورځ يو په بل پسي متصل راځي او نه ورځ او شپه تر خپل وخت د مخه راځي.

وَكُلٌّ فِيْ فَلَكٍ يَّسْبَحُوْنَ ﴿۴۰﴾

(وكل) تنوين عوض د د مضاف اليه څخه دی اى كل واحد من الشمس والقمر.

**سوال:** پر دې تقدير ضمير د يسبحون چي جمع دی و چا ته راجع دی، بلکې بايد يسبحان ويل سوي وای؟

**ځواب:** د دې سوال په ځواب کي قاضي ناصر الدين البيضاوي وايي چي ضمير د جمع راجع دی و شموس او اقمار ته.

**سوال:** شمس او قمر خو يو يو دي، قاضي بيضاوي وايي چي په اعتبار د تعدد د احوالو د دې دوو يا په اعتبار د مطالع او مغارب او يا په اعتبار د نورو احوالو تغاير اعتباري او تعدد په لمر او سپوږمی کي پيدا کېږي وهو يكفى لا رجاع ضمير الجمع اليها؟

بل ځواب قاضي بيضاوي رحمه الله دا سي ورکړی دی چي ضمير د جمع راجع و کواکبو ته دی.

**سوال:** کواکب خو د مخه نه دی ذکر سوی نو اضمار قبل ذکر المرجع به نه وي؟

**ځواب:** قاضي رحمه الله وايي چي ذکر د لمر او سپوږمی مشعر دی په ذکر د کواکبو لانهما اشهر الكواكب وانفعهما لاهل الارض وهذا القدر من الذكر يكفى لارجاع الضمير.

**بوه سه:** چي مظهري وايي چي مراد له فلک څخه يو فلک دی، يعني تنوين لپاره

د وحدت دی نو مراد ځني سماء الدنیا دی او دلیل یې دا آیت ګرځولی دی، انا زینا السماء الدنیا (ای القربی) بمصابیح (یسبحون) سبح چابک تګ ته وایي یا په اوبو کي یا په هوا کي بیا استعارةً په سیر د سترو في فلک کي مستعملېږي، ولهذا فسره المظهري بقوله کما یسبح السمک في الماء روح المعاني وایي ولا مانع عندنا ان یجری الکواکب بنفسه في جوف السماء او اسمانونه ساکن پر خپل ځای وي لاتدور اصلاً، او حکماء چي وایي چي جرم د اسمان صلب او سخت او خرق والتیام یې روا نه دی لم یردوا علیه دلیلاً، او یا دي داسي وي چي جوف د فلک دي ډک وي له هوا څخه یا د بل جسم لطیف څخه ستوري دي په سهولت سره په هغه کي رفتار کوي لکه ماهی په اوبو کي، او یا دي تجویف د فلک له هر قسم جسم څخه که لطیف وي او که غلیظ وي خالي وي ستوري په هغه ځای کي رفتار کوي، وما ذکره الحکماء ان الخلاء ممتنع لیس لهم دلیل علی ذالک حتی روح المعانی وایي و اقوی ما ذکروا في امتناع الخرق والالتیام او امتناع الخلأ مطلقًا اوهن من بیوت العنکبوت.

**فائده:** دا آیت صریح په دې کي دی چي لمر او سپوږمۍ په فلک کي روان دي یا په قسر د ملکو که دوی اراده ونه لري او که په خپله اراده که له ذوی العقول څخه وي کما هو التحقیق، وقد مر ذالک او د حکماؤ او د اهل هیئت مذهب دا دی چي لمر یا سپوږمۍ یا نور ستوري په اسمانو کي لکه مېخونه دي چي په خپله هیڅ حرکت نه لري، بلکي په حرکت د اسمانو حرکت کوي، حرکت وضعیه چي پر محکه شاو خوا راګرځي اصلاً ددوی د مذاهبو مبنی دا ده که د سباحت معنی حرکت د ستورو وي نو په اسمانو کي خرق او التیام وهو ممتنع عندهم وقد مر ذالک، نو چونکه حرکات د ستورو یا په جهت یعني شرقًا او غربًا سره مختلف یا په سرعت او بطوء، نو دوی وایي چي تعدد د حرکاتو د کواکبو مستلزم دی تعدد لره افلاکو او دوی وایي چي اسمانونه نهه (۹) دي، او دوی وایي چي اسمانونه یو په بل پوري متصل دي لکه د پیاز پوستکي او پاڼې، والا یلزم الخلاء الی غیر ذالک من خرافاتهم المذکورة في علم الریاضي.

**یوه سه:** چي نصوص قطعیه چونکه صراحةً دلالت کوي پر دې اسمانو چي اووه دي کما جاء في مواضع من القرآن العزیز لامزید علیه فکیف جاحدها، او

دغه نصوص قطعيه خرق والتيام پر افلاکو روا بولي بحيث يکفر جاحدها ايضًا بل النصوص دالة على وقوع الخرق عليها، قال الله تعالى اذا السماء انشقت، اذا السماء انفطرت، وانشق القمر، ونحو ذالک، والاحاديث الصحيحة المتواترة المعنى دلت على ان السموٰت غير منطبقة بعضها على بعض بل بين كل سمائين مسافة كثيرة بحيث يفسق جاحدها.

**بوه سه:** چي احمد او ترمذي د ابو هريره رضي الله عنه حديث مرفوع روايت کړی دی چي دېر طويل دی ذکر د رسول الله ﷺ بعد مابين الارض والسماء و بعد مابين كل سمائين (٥٠٠) سنه مسافت.

**بوښتنه:** په بل حديث مرفوع کي راغلي دي ذکر رسول الله ﷺ ان مابين الارض والسماء وبين كل سمائين اما اثنتان او ثلاث وسبعون (ترديد شک د راوي چي کوم عبارت عليه الصلوٰة والسلام ووايه) فما وجه الجمع بين ذينک الحديثين، مظهري وايي چي وجه د جمع يې اختلاف دی په منځ کي د سير د سائرينو سرعة وبطوء، حاصل د کلام دادی چي د علم هيئت و علم ته اعتبار نشته، او په بعض مسائلو کي بېره د کفر شته، والله اعلم.

## وَاٰيَةٌ لَّهُمْ اَنَّا حَمَلْنَا ذُرِّيَّتَهُمْ فِى الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ﴿٤١﴾

او دليل د قدرت د خدای ﷻ دادی چي موږ بار کړي دي اولاد ددوی په کښتی کي چي هغه ډکه وه.

**بوه سه:** چي آية لهم خبر مقدم دی او انا حملنا يې مبتداء ده.

**فائده:** لفظ د فلک دلته مفرد دی لان المشحون صفته وهو مفرد.

**فائده:** راغب اصفهاني رحمه الله وايي چي ذرية په اصل کي صغار ته د اولاد وايي وان يطلق على الصغار والكبار في العرف ويستعمل في الواحد والجمع واصله الجمع انتهى، ويطلق على النساء لاسيمًا مع الاختلاط مع الرجال مجازًا كما في حديث عمر رضي الله عنه حجوا بالذرية، يعني النساء وايضًا في الحديث الصحيح نهى النبي ﷺ عن قتل الذرارى يعني النساء (في الغزوات) والمعنى ه انا حملنا اولادهم الكبار الذين الى تجاراتهم في الفلک المشحون اى المملو، وقيل حملنا صبيانهم ونسائهم چي

تاسي يې د ځانو ملګري کوئ چي هغو لره نفقه د سفر نه وي پر خشکي باندي.

**فائده:** مراد له فلک څخه کوچني او لويي کښتئ دواړي دي وتخصيص الذرية بالذكر لان استقرارهم في السفن اشق وابعد وتماسكهم فيها اعجب. بغوي رح وايي چي مراد له فلک څخه کښتۍ د نوح عليه السلام ده او پر دې تقدير مراد له ذرية څخه الاباء لان اسم الذرية يطلق على الاباء كما يطلق على الاولاد، قاضي بيضاوي رح وايي چي که مراد له فلک څخه سفينه د نوح عليه السلام سي، نو معنی د آيت داده ان الله تعالى حمل آبائهم وحمل ذريتهم في اصلابهم، بيضاوي وايي چي تخصيص د ذرية پر دې تقدير په ذکر سره لانه ابلغ في الامتنان (يعني اظهار المنة والاحسان عليهم) مع الايجاز في العبارة.

وَخَلَقْنَا لَهُمْ مِّنْ مِّثْلِهٖ مَا يَرْكَبُوْنَ ﴿٤٢﴾

پيدا کړي دي موږ د خلکو لپاره په مثل د مطلق فلک يا مثل د فلک نوح[۴] (ما يركبون) چي په قرآن مبارک کي مراد ځني اوښان دي چي د هغې زمانې عربو به اوښان سفائن البر بلله، والتسمية لاجل ان الابل ډېر بار وړلای سي. او په تنګ کي ژر نه ستړي کېږي او خورک يې هم اسانه دی چي په صحراء کي ځوزان خوري او اوبو ته هم ضرورت ژر نه لري. ولي اوښان پر يوه ځای ډېري اوبه څيښي، واطلاق السفائن على الابل شائع كما قيل الابل سفائن البر والسراب بحارها.

**درويش وايي:** چي دا بيان د نزول القرآن د وخت ؤ، په اوسنۍ زمانه کي د سفن البحر په ځای کي آب ګوټونه په درياب کي د متعارف شيانو په ذريعه چلېږي او د اوښانو په ځای کي غټ غټ موټران بارونه وړي، لکن بيا هم د عربو په دورو دراز و علاقو کي سفن البحر او سفن البر چي اوښان دي وجود لري.

وَاِنْ نَّشَاْ نُغْرِقْهُمْ فَلَا صَرِيْخَ لَهُمْ وَلَا هُمْ يُنْقَذُوْنَ ﴿٤٣﴾

او که زموږ اراده وي يعني خلق په غرق په درياب کي سره د کښتيو لان الله يتصرف في ملكه كيف يشآء. (فلا صريخ لهم) جزاء د شرط محذوف ده، يعني ان نغرقهم؛ فرياد رس د دوی به نه وي چي له غرق څخه دې خلاص کړي (ولاهم ينقذون) عطف دی پر لاصريخ لهم اى لاينجون من الغرق.

إِلَّا رَحْمَةً مِّنَّا وَمَتَاعًا إِلَىٰ حِينٍ ﴿٤٤﴾

**پوهه سه:** چي دا استثناء مفرغ ده (يعني مستثنى منه يې محذوف دى) منصوب ده على العلية اى لاينقذون لشيئ (دا مستثنى محذوف ده) الا لرحمة منا (دا معنى د عليت ده) والمعنى د وى نجات له غرق څخه نسي پيدا كولاى په سبب د هيڅ شي مگر په سبب د رحمت زموږ او نفع ورکول د وى ته تر يو وخت پوري چي اجل الموت پر راځي.

**حكايت:** شيخ سعدي قدس سره در كتاب گلستان آورده: بادشاهى باغلام عجمى در كشتى نشته بود، غلام دريا را هرگز نديده بود ومحنت كشتى نه كشيده بود، گريه وزارى آغاز نمود ولرزه بر آنداش افتاد، بادشاه هرچند ملاطفت نمود آرام نگرفت، ملك را عيش ازو منغض شد هيچ چاره نداشتند، حكيمى در آن كشتى بود، ملك را گفت اگر فرمان دهى من اورا بطريقى ساكت كنم، ملك گفت لطفى باشد، حكيم امر كرد غلام را بدريا انداختند بارى چند غوته خورد حكيم مويش گرفت وسوى كشتى آوردند چون بر آمد گوشه در كشتى بآرام نشست وقرار گرفت، ملك را عجب آمد واز حكيم پرسيد درين چه حكمت بود؟ حكيم گفت اى خداوند، اول محنت غرق شدن نچيده بود، وقدر سلامت كشتى نمى دانست، همچنان قدر عافيت كشتى كسى داند كه بمصيبت غرق مبتلا گردد ... ابيات:

اى پسر ترا نان جوين خوش ننمايد ... معشوق منست آنكه بنزديك توزشتست
حوران بهشتى را دوزخ بود اعراف ... از دوزخيان پرس كه اعراف بهشتست

**تفريع:** فلابد من مقابلة النعمة بالشكر والعطاء بالطاعة والانفاق.

وَإِذَا قِيلَ لَهُمُ اتَّقُوا مَا بَيْنَ أَيْدِيكُمْ وَمَا خَلْفَكُمْ لَعَلَّكُمْ تُرْحَمُونَ ﴿٤٥﴾

هغه وخت چي وويل سي (يعني كفارو ته د مكې) چي تاسي وېرېږئ له هغه شي څخه چي په حضور كي ستاسي دى او له هغه شي څخه چي وروسته تر تاسي دى.

ابن عباس رض وايي چي د ما بين ايديهم څخه مراد آخرت دى (يعني په دې سبب چي ستاسي ورته مخ دى، گويا حاضر دى، ولهذا قيل ما ابعد ما فات وما اقرب ماهو آت) مراد له پېري څخه يې دا دى چي عمل د اخرت لپاره كوئ، او مراد له

ماخلفکم څخه دنیا ده (یعني ستاسي ورته شا ده) والمراد بالتقوی من الدنیا الانهماک بشهواتها والاغترار بلذائذها، وقال قتاده المراد بما بین ایدیکم وقائع الله تعالی فیما قبلکم من الامم (مراد له وقائعو څخه عذابونه د خدای دي چي پر دوی نازل سوي وه لکه عاد، ثمود، قوم فرعون وغیرهم) او د ما خلفکم څخه عذاب د آخرت مراد دی، وقیل المراد به عذاب الدنیا وعذاب الآخرة، وقیل عکسه وقیل ماتقدم من الذنوب وما تأخر.

**درویش وایي:** چي والکل صحیح والاعتماد الکلي علی ما قال رئیس المفسرین .

(لعلکم ترحمون) ای لتکونوا راجین رحمة الله، د اذا جواب محذوف تقدیره اذا قیل لهم اتقوا اعرضوا بقرینة.

**وَمَا تَأْتِيهِم مِّنْ آيَةٍ مِّنْ آيَاتِ رَبِّهِمْ إِلَّا كَانُوا عَنْهَا مُعْرِضِينَ ﴿٤٦﴾**

**پوه سه:** چي من اولی زائد دی لاستغراق النفي ومن ثاني لپاره د تبعیض دی، والمعنی او نه راځي یعني نه نازلیږي یو آیت د آیاتو څخه د رب د دوی یعني الآیات القرآنیة لکه په دې سورت کي چي بیان سوه (الا کانوا عنها معرضین) مګر دوی له هغو څخه مخ اړونکي وه یعني پر وجه د تکذیب او استهزاء.

**فائده:** الا مستثنی هـ مفرغ ده (یعني مستثنی منه یې محذوف دی) من اعم الاحوال، والتقدیر وما تأتیهم من آیة من آیات ربهم في حال من الاحوال الا حال اعراضهم عنها، او یا مراد له آیاتو څخه آیات تکوینه وي یعني په عالم کون او وجود په علویاتو او سفلیاتو بلکي په ټولو ذراتو دلائل د وحدانیت او د قدرت او د علم شامل د خدای  دي لکن کفار مکه وغیرهم په هغو کي صحیح غور نه کوي حتی چي ایمان یې پر وحدانیت د خدای  راوړی وي... شاعر مغربي وایي:

مغربی آنچه عالمش خوانند .... عکس رخسار تست در مرآت
وآنچه او آدمش همی دانند .... نسخه عالمست مظهر ذات

وقال الشیخ السعدی قدس سره:

برگ درختان سبز درنظر هوشیار ..... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار

وَإِذَا قِيلَ لَهُمْ أَنفِقُوا مِمَّا رَزَقَكُمُ اللَّهُ

يعني چي مؤمنانو به کفارو ته د مکې وویل (عطف علی الشرطية السابقة) تاسي صدقه وکړئ بعض د هغو مالو څخه چي په رزق درکړي دي الله ج.

**پوه سه:** چي کلمه د من په مما رزقكم الله کي لپاره د تبعيض ده)

قَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لِلَّذِينَ آمَنُوا

وايي هغه کسان چي کافران دي، و هغه چاته چي ايمان يې راوړی وي.

**سوال:** چي ضمير يې راوړی وای يعني قالوا عبارت به اخصر نه وای؟

**ځواب:** ترک د اضمار وان کان فيه اختصار للتصريح بكفرهم والحكم عليهم بالكفر.

أَنُطْعِمُ مَن لَّوْ يَشَاءُ اللَّهُ أَطْعَمَهُ إِنْ أَنتُمْ إِلَّا فِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ

آيا موږ به رزق ورکوو و هغه چا ته چي که د خدای ج اراده وای هغو ته به يې طعام او رزق ورکړی وای.

حاصل د کلام د دوی دادی چي خدای جل جلاله چي دوی ته رزق نه دی ورکړی، نو موږ هم موافق د مشيت سره د خدای رزق نه ورکوو، دا خبره به اغنياؤ د قريشو کوله چي فقراؤ د مؤمنانو به له دوی څخه طلب د طعام وکړی له دوی څخه لکن دا خبره او جواب د مشرکانو د مکې بلکې هر څوک چي ورته خبري کوي باطلي دي، ولي خدای جل جلاله موافق د حکمت سره بعض اشخاص غنيان کړي او بعض يې فقراء کړځولي امتحانا لشكر الغني ولصبر الفقير، يعني منع د فقير په سبب د بخل يا د قدرت د خدای جل جلاله نه ده، او امر د غني په اتفاق سره د دې سببه نه دی چي خدای ج دده مال ته محتاجه دی، ولا اعتراض لاحد على مشية الله يفعل ما يشاء ويحكم مايريد في الدارين.

(ان انتم الا في ضلال مبين) نه ياست تاسي ای مؤمنانو چي موږ امر کوئ په مخالف سره د مشيت د خدای ج نو دا قول تتمه د قول د مشرکانو ذ مسلمانانو، او يا دا جواب د خدای ج له خوا و مشرکانو ته دی.... ابيات:

درويش را حذر بتوانگر حواله گرد .... تاکار او بسازد وفارغ کند دلش
از روی بخل اگر نشود ملتفت باو .... فردا بود ندامت واندوه حاصلش

وجاء في الحديث الصحيح لو شاء الله لجعلكم اغنياء لافقير فيكم، ولو شاء الله لجعلكم فقراء لاغنى فيكم، ولكنه ابتلى بعضكم ببعض لينظر كيف يعطف الغنى (يعني على الفقير) وكيف يصبر الفقير.

**درويش وايي:** چي معنی د لينظر چي ضمير چي ضمير يې وخدای ﷻ ته راجع دی داده چي ظاهر کړي خلکو ته، فلايرد ان الله عالم الغيب والشهادة فافهم.

## وَيَقُولُونَ مَتَىٰ هَٰذَا الْوَعْدُ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ ﴿٤٨﴾

او وايي کفار مکه کله ده دا وعده چي تاسي يې موږ ته بيانوئ (اى القيامة والبعث بعد الموت، عطف دی پر شرطيه سابقه، استفهام لپاره د انکار دی) (ان کنتم صادقين) في الاخبار باتيانه وجواب الشرط محذوف دی يعني خو موږ هم خبر کړئ په وخت د راتګ وبالعربية فانبؤنا عن وقت اتيانه.

**پوهه:** چي ضمير د کنتم راجع دی و عليه الصلوة والسلام او مؤمنانو ته، مولی جلال الدين الرومي رح د آخرت احوال د انسانانو داسي بيان کړی دی، مثنوي رح:

خلق در بازار يکسان ميروند ..... ان يکی در ذوق ديگر درد مند

همچنان زنده ميرويم ..... تم در خسران ونيمی خسرويم

## مَا يَنظُرُونَ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً

(ماينظرون) دا جمله حال ده له فاعل څخه د يقولون، يعني يقولون في حال ماينتظرون (اصل د ما ينظرون ما ينتظرون ؤ تاء يې څني حذف کړه للتخفيف) الاصيحة: مګر يوې نعرې يعني د اسرافيل ؑ، ابن عباس رض وايي چي مراد له دې څخه صيحة اول نفخه ده چي نفخة الصعق والموت يې هم بولي.

**پوښتنه:** مشرکان له نفخة څخه منکر دي فکيف هذا الانتظار انماهي الحيوة الدنيا نموت ونحيٰى، يعني دوی وايي چي ژوند دغه ژوند دی د دنيا بعض خلک مري، او بعض نوي پيدا کېږي؟

**ځواب:** دا آيت کنايه ده د عدم ترک المعاصي والشرک، ابدًا حتى يموتون اوتأتيهم الساعة بغتة وهم لايشعرون، يعني دوی چي له معاصيو څخه نه منع کېږي قبل ذالک فکانهم ينتظرون لاجل ترک المعاصي صيحة اى نفخة الموت.

تَأۡخُذُهُمۡ وَهُمۡ يَخِصِّمُونَ

(تأخذهم) صفت د صيحة دى وضمير الجمع راجع الى الناس المفهوم مما سبق وكذا جميع الضمائر الآتية (وهم يخصمون) دا جمله حال ده له ضمير منصوب څخه في تأخذهم کي، والمعنى چي ددوى په بازارو کي سره دعوى وي او خبري اتري به سره کوي په امورو کي د دنيا او په معاملاتو د بيع او شرا لايخطر ببالهم شيئ من اتيان الصيحة.

**پوه سه:** چي اصل د يخصمون يختصمون و د كلمه د تأ ساكنه کړه و ادغمت في الصاد وروسته يې خاء ته كسره ورکړه لالتقاء الساكنين على غير حده.

بخاري او مسلم له ابو هريرة رضي الله عنه څخه روايت کړى دى، قال قال رسول الله ﷺ اتقوا من الساعة (اى نفخة الموت) وقد نشر الرجلان ثوبًا بينهما فلا يتبايعان ولا يطويانه (سره خلاصه کړې به وي دې دوو کسانو يوه جامه كه د اغوستلو وي او كه د اوارېدلو وي يعني لپاره د بيع او شراء، نه به سودا سره وکړي او نه به هغه جامه کت کړي) او عليه الصلوة والسلام زياته کړه چي يو سړى به شيدې د اوښې يا د مېږې د خورک لپاره هغه شيدې لويشي، نو هغه شيدې به ونه خوري چي نفخة د قيامت به پر راسي، او داغه رنګه قيامت به قائم سي چي يو سړى يوه ګوله ډوډى وغيره و خولې ته پورته کړي او به يې خوري.

فَلَا يَسۡتَطِيعُونَ تَوۡصِيَةٗ وَلَآ إِلَىٰٓ أَهۡلِهِمۡ يَرۡجِعُونَ

دوى به طاقت ونه لري د وصيت او نه خپل كور و او عيال ته تلاى سي يعني ان كانوا خارجي البيت فافهم، ولي چي هر ژوندى كه انسان وي او كه حيوان ځاى پر ځاى دفعةً واحدةً مړه کېږي.

**پوه سه:** چي (فلا يستطيعون) عطف دى پر (تأخذهم) باندي.

**سوال:** تأخذهم خو صفت ؤ د صيحةٌ نو په اعتبار د عطف خو فلا يستطيعون هم صفت دى د صيحةٌ نو عائد و موصوف ته په دې جمله معطوفه کي څه شى دى؟

**ځواب:** عائد يې محذوف دى والتقدير فلا يستطيعون بعدها اى بعد الصيحة فكلمة ها عائد يې محذوف دى فافهم.

# وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ

درویش وايي: چي مراد له دې نفخه څخه نفخة ثانيه ده لاجل احياء الاموات لپاره د حساب او جزاء.

**سوال:** نفخ خو ماضي صيغه ده او نفخه ثانيه خو په مستقبل بعيد كي راځي؟

**ځواب:** يو كار چي متيقن الوقوع وي كه څه هم په مستقبل كي وي لكه ماضي وي، ومثله في القرآن قد جاء في غير موضع.

**فائده:** دا جمله عطف ده پر مضمون د قوله تعالى فلا يستطيعون، يعني يموتون في ساعة وينفخ في الصور مرة ثانية وبين النفختين اربعون سنة كذا روى ابن ابى حاتم رح عن ابن عباس رض، او له ابو هريره رض څخه حديث مرفوع منقول دى چي په منځ كي د دوو نفختينو څلوېښت كاله دي.

**پند:** علماء د امت مرحومه وايي چي انسان ته مرګ ژر راځي او د انسان تول خواهشات نه پوره كېږي بلكې په زبان حال وايي هل من مزيد، فعلى العاقل ان يتدارك ويقصر الامال. صوفي بايد ابو الوقت وي ابن الوقت نه وي. شيخ سعدي رح په باب كي د داسي خلكو داسي خوا ږه بيتونه ويلي دي:

| | |
|---|---|
| تو غافل در اندیشه سود و مال | که سرمایهٔ عمر شد پایمال |
| غبار هویٰ چشم عقلت بدوخت | سموم هوس کشت عمرت بسوخت |
| خبرداری ای استخوان قفس | که جان تو مرغیست نامش قفس |
| چو مرغ از قفس رفت وبگست قید | دگر ره نگردد بسعی تو صید |
| نگه دار فرصت که عالم دمیست | ادمی پیش دانا به از عالمیست |
| سکندر که بر عالمی حکم داشت | دراندم که بگذشت عالم گذاشت |

# فَإِذَا هُمْ مِّنَ الْأَجْدَاثِ إِلَىٰ رَبِّهِمْ يَنسِلُونَ ﴿٥١﴾

نو ناببره دوى له قبرو څخه و حكم ته د خداى جل جلاله چابک راووځي (اجداث جمع د جدث ده په معنى د قبر)

**پوهه:** چي چابک تګ ددوى اجباراً دى لا اختياراً.

**پوښتنه:** دنيا وال خو تول له مري په قبرو كي نه ښخوي، بلكې بعض كافران

مشرکان خپل مړي په اور سوځي لکه د لوی وچي د هند هندوان وهکذا؟

**ځواب:** عبارت د اجداث مبني پر اصطلاح د مشرکانو د عربو دی چي هغو خپل مړي په قبرو کي ښخول. ورنه مراد ادی چي هر ځای چي د مړو اجزاء وي په قدرت د خدای ﷻ به جمع کېږي و ميدان ته د حساب به حاضرېږي ولو اکلوهم الحيتان في البحر، دا د عقل موضوع نه ده بلکې د قدرت کامله د خالق مقتدر موضوع ده.

**سوال:** مړي چي په قبرو کي ښخ سوي هم وي، نو په دې وخت کي قبرونه به چېري وي، ولي نفخه اولی غرونه هباء (يعني لکه ګرز) وګرځوي؟

**ځواب:** خدای ﷻ اجزاء د هر ميت د هغه ځای څخه چي هوري د هغه قبرو سره يې جمع کړي.

**پوښتنه:** په بل آيت کي خدای ﷻ داسي ويلي دي: فاذا هم قيام ينظرون، او دلته يې داسي وويل: فاذا هم من الاجداث الی ربهم ينسلون، او قيام خو غير د نسلان څخه ده او په دواړه ځايه کي اذا مفاجات ويلی دی فيلزم ان يکونا ای القيام والنسلان معًا في زمان واحد؟

**الجواب:** من وجهين الاول القيام لاينافي المشي السريع لان الماشي ايضًا قائم ولاينافي النظر ههنا وههنا، والثاني ان الامور المتقاربة بحيث لايتخلل ههنا زمان..... کانها واقعة في زمان واحد.

## قَالُوا يٰوَيْلَنَا

وويل (ای الکفار) ای هلاک زموږ احضر فان هذا اوانک.

**فائده:** د ماضي صيغې د راوړلو هغه د مخه وجه ده.

**درويش وايي:** چي د عربو دا دستور دی چي په وخت کي د ډېري سختی. د يا ويلاه او يا حسرتا نعرې وهي، حقيقت يې مراد نه وي.

**بوه سه:** چي ويل د خپل لفظ څخه فعل نه لري، او بعض محققين وايي چي ويل د يوې شېلې نوم دی په جهنم کي لما روی احمد والترمذي وابن جرير وابن ابی سعيد الخدري رضی الله عنه، وابن حبان والحاکم او نورو ګڼ شمېر راويانو، عن رسول الله ﷺ چي عليه الصلوة والسلام وويل: يو شېله ده په جهنم کي چي کافر کښته

پکښې ځي ځلوښت کاله د مخه تر دې چې پیای ته د شپلې دي ورسېږي، او د ابن مسعود رض څخه ګڼ شمېر روایانو روایت کړی دی چې ده ویلي دي چې "ویل" یوه شپله ده په جهنم کي چې د اهل النار صدید (نوونه) هورې جمع کېږي، دا شپله د مکذبینو لپاره ده، او ابن جریر رح له عثمان بن عفان رض څخه روایت کړی دی چې علیه الصلوة والسلام وویل چې "ویل" یو غر دی په اور کي (یعني چې دوږخیان پورته ورخېژي او بیرته کښته راشوه کېږي ابدًا)

**پوښتنه:** د هغه روایت چې ویل یې د شپلې نوم دی او د هغه روایت چې ویلي یې دي د غره نوم دی په جهنم کي، منافات به نه وي؟

**ځواب:** یا منافات نشته، ولي دواړه دي وي یو د یو قسم کافرانو لپاره بل د بل قسم لپاره، والله اعلم بالصواب.

## مَنۢ بَعَثَنَا مِن مَّرْقَدِنَا

چا و پاځولو موږ له خوب څخه یا د خوب له ځای څخه (نو لفظ د مرقد یا مصدر میمي دی یا ظرف مکان دی)

**پوهه:** چې حفص رح پر مرقدنا باندي سکته لطیفه کوي یعني چې ساه نه کاږي چې وقف ځني جوړ سي، والوقف عند غیره احسن.

**پوښتنه:** غرض په دې سکته یا وقف کي څه دی؟

**ځواب:** د دې لپاره تا چې توهم ونه کړل سي چې وروسته اسم اشاره به صفت د د مرقدنا وي، بلکې په قف سره یا سکته سره به دا معلومه سي چې وروسته اسم اشاره جمله مستقله ده، فافهم.

**پوښتنه:** چې معتزله په دغه آیت سره دلیل وایي چې عذاب القبر هیڅ چا لره که څه هم کافر وي نشته، ولي چې خوب خو یکلخته راحت دی؟

**ځواب:** ابن عباس رض او قتاده رح وایي چې په منځ کي د نفختینو عذاب د کافرانو څخه پورته کېږي فیرقدون حیث کانوا، نو بیا چې دوی وروسته تر نفخه ثانیه بیداره سي او عذاب وویني د یاویلنا نعرې شروع کړي، او بعض محققین وایي چې کفار چې جهنم وویني په ډېرو انواعو سره د عذاب عذاب القبر داسي

ورته معلوم سي لکه خوب، فيقولوا من بعثنا من مرقدنا.

**سوال:** کافران خو ډېر دي کما يدل عليه قوله تعالى قالوا ياويلنا، او مرقد خو مفرد دی، نو مراقدنا به لائق نه وای؟

**ځواب:** مرقد که مصدر ميمي وي په مصدر کي مفرد او جمع برابر دي او که ظرف مکان وي په اعتبار د اضافت و نون ته د متکلم مع الغير پر مراقد د دلالت کوي فتدبر، روايت کړی دی الفريابي وعبد بن حميد وابن جرير وابن المنذر وابن ابی حاتم رح عن ابی بن کعب رض انه قال ينامون ای الکفار قبل البعث نومة.

هٰذَا مَا وَعَدَ الرَّحْمٰنُ وَصَدَقَ الْمُرْسَلُوْنَ

دا هغه شی دی چي رحمن ج يې وعده کړې وه او رسولان په دې رشتيا ګويوه (البعث بعد الموت).

**فائده:** هذا مبتداء ما وعد الرحمن يې خبر دی او کلمه د ما مصدريه په معنی د مفعول ده (ای موعود الرحمن) او يا کلمه د ما موصوله ده عائد يې محذوف دی، والتقدير هذا الذي وعد به الرحمن.

**درويش وايي:** چي مفسرين رح وايي چي دا آيت ځواب دی له جانب څخه د ملائکه وُ لقولهم من بعثنا من مرقدنا، او مجاهد رح واي چي دا ځواب دی د مؤمنانو له خوا څخه و دوی ته يعني الکفار.

**پوښتنه:** کافرانو خو سوال د دې کړی چي موږ چا د خوب څخه راويښ کړو، نو د دوی د جواب خو دا کافي وه چي خدای ج راويښ کړاست، نو دا جواب هذا ما وعد الرحمن الخ يې ولي ووايه؟

**ځواب:** دا جواب دی په غرض سره او په باعث سره.

**سوال:** د کافرانو سره دا جواب برابر دی او که څرنګه؟

**ځواب:** روح المعاني، روح البيان، مظهري، بيضاوي او نور مفسرين وايي چي په مذکور ځواب کي تذکير د کفر د دوی دی او سرزنش د دوی دی، او تنبيه پر دې چي دوی بايد سوال د بعث څخه کړی وای دون الباعث، يعني خبره داسي نه ده لکه تاسي چي ګمان کوئ لکه چي بعث النائم دی چي تاسي يې سوال د باعث وکړی بل هو البعث الاکبر ذوالاهوال او المخاوف الذی کفرتم به في الدنيا.

إِن كَانَتْ إِلَّا صَيْحَةً وَاحِدَةً فَإِذَا هُمْ جَمِيعٌ لَّدَيْنَا مُحْضَرُونَ ﴿٥٣﴾

كلمه د ان نافيه ده، ضمير راجع دى و بعث ته په تأول د فعلة (الاصيحة واحدة) اى النفخة الآخيرة (فاذا هم جميع) اى مجموعون (لدينا) متعلق دى په جميع پوري (محضرون) حاضر به کړل سي، خبر بعد الخبر د ضمير د هم دى.

درويش وايي: چي په دې آيت سره تنبيه پر دې ده چي بعث الخلق جميعًا و خداى ج ‌دومره اسانه ده چي په صحية د اسرافيل ؑ ټول‌ه د کتم ځخه د عدم وميدان ته وجود راباسي... ابيات:

همه فيلسوفان يونان وروم .... ندانند کرد انگبين از زقوم
زوحشي نيايد که مردم شود .... بسعى اندر وتربيت گم شود
بکوشش نرويد گل از شاخ بيد .... نه زنگي بگرمابه گردد سفيد

**لغات ابيات:** انگبين عسلو ته وايي، زقوم: يوه ډېره ترخه درخته ده، وحشي: هغه حيوان دى چي د انسانو سره علاقه نه لري لکه ګيدړه، چغال، بيد: د ولي درختي ته وايي، زنگي: حبش ته وايي، گرمابه: حمام بولي.

فَالْيَوْمَ لَا تُظْلَمُ نَفْسٌ شَيْئًا وَلَا تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٥٤﴾

دا حکايت د هغه قول د خداى ﷻ دى چي محشر والو ته يې کوي، د خپل موعود کړه وړه ورته بيانوي تا چي د دوى په زړو کي ښه تمکين پيدا کړي.

ترجمه: ننه ورځ (يعني يوم القيامة والحساب) ظلم نه کړل کېږي د هيڅ نفس سره د هيڅ شي، او جزاء به نه مومي مګر د هغه شي چي تاسي يې عمل کړى وي يعني په دنيا کي، کلمه د ما موصوله ده او عائد يې محذوف دى اى الذى تعملونه. دا خطاب و کافرانو ته دى هغه وخت چي دوى عذاب معد لهم ويني، نفس چونکه په سياق کي د نفي راغلى، نو مراد ځني عام دى که مؤمن وي او که کافر (شيئًا) مفعول مطلق دى اى شيئًا من الظلم بنقص الثواب او بزيادة العقاب.

**درويش وايي:** چي له جملې ځخه د خبرو چي کفارو ته کول کېږي په ورځ د قيامت احوال د اهل جنت دي چي په وروسته آيت کي خداى پاک بيان کړى دى

لپاره د زیاده د غم د کفارو او د زیاتوالي د پښېمانۍ. د دوی پر خپل کفر په دنیا کي، ولي چي احوال د دښمنانو د کافرانو یعني مؤمنان دي وروسته تر دي چي بد حال د کفارو یې بیان کړی کما في الآیات السابقة د کافرانو غم نور پسي ډېرېږي.

إِنَّ أَصْحَٰبَ ٱلْجَنَّةِ ٱلْيَوْمَ فِى شُغُلٍ فَٰكِهُونَ

په تحقیق اصحاب د جنت په اشغال کي دي مسرورون متنعمون.

**پوه سه:** چي ابن اکثیر، نافع او ابو عمر رحمهم الله لفظ د شغل په سکون د غین وایي او نور قاریان یې په ضمه د غین وایي. ولا فرق بینهما فی المعنی مثل السحت بسکون الحاء والسحت بضم الحاء، دواړه په معنی د حرام دي.

**فائده:** په ارشاد کي وایي چي شغل هغه حال ته د سړي وایي چي له ماسوی څخه سړی مشغول کړي، لکونه اهم عنده من الکل په سبب د کمال مسرت (خوشالۍ) او فکهون خبر آخر د ان دی مشتق له فکاهت څخه دی بفتح الفاء چي معنی یې طیب العیش والنشاط (خوشالي په نعمتو سره) والحاصل متنعمون بنعیم مقیم، فائزون بملک کبیر ابداً وسرمداً.

**سوال:** دا حالات د اهل جنت تر اوسه پوري نه دي محقق سوي، نو تعبیر په جمله اسمیه چي دال پر تحقق ده څرنګه وکړل سو؟

**ځواب:** لپاره د تنزیل د مترقب متوقع ضرورةً منزلة الواقع، لپاره د اعلان بغایة سرعة وقوعها لان عمر الدنیا کله بمنزلة ساعة زمانیة بالنسبة الی عمر الآخرة المؤبدة فافهم.

د اشتغال د اهل جنت بعض احوال (۱) افتضاض الابکار: یعني د باکراتو حرو سره جماع کول چي تر دوی د مخه چانه وي وطي کړي کریمه: لَمْ يَطْمِثْهُنَّ وَلَا جَانٌّ.

وفي الحدیث الصحیح ان الرجل (یعني من اهلال الجنة ورکړل کېږي قوت د سلو (۱۰۰) کسانو (یعني د دنیا) في الاکل والشرب والجماع، په حدیث شریف کي راغلي دي چي جنتي چي هر وار جماع کوي بکارت د حوري یې باقي وي بدون الوجع کما في جماع الباکرة في الدنیا، وفي الفتوحات المکیة: لذة الجماع هناک تضاعف علی لذة جماع الدنیا اضعافًا مضاعفة فیجد کل من الرجل

والمرئة لذة لايقدر قدرها لو وجدها (اى لذة جماع الجنة) في الدنيا غشى عليها (نر او ښځه به دواړه بېهوشه سي) من شدة الحلاوة.

(۲) سماع الاصوال الطيبة والنغمات اللذيذة.

**پوه سه:** چي په جنت کي رباب، طبله، سارنګی. وغيرها من الآلات السماع نسته بلکې سماع القرآن سته وسماع اصوات الابکار المغنية من الحورات.

(۳) جنتيان يو دبدل ملاقات او زيارت ته ورځي که څه هم بعض جنتيان په ډېره عالي درجه کي د جنت وي او بعض په کښته درجه کي د جنت، يعني ګاهي انبياء عليهم السلام و ملاقات ته د صديقانو او علماؤ او اولياؤ ورځي، او ګاهي صديقان، علماء او اولياء و زيارت او ملاقات ته د انبياء عليهم السلام ورځي، او ګاهي دا ټولي ټوله سره جمع سي و ديدار ته حضرت رب العزة ورځي.

فقير وايي چي زما څخه دي د جنت د کيفيت پوښتنه څوک نه کوي، ولي چي د جنت د احوالو له وينا څخه ژبه عاجزه وي، وفي الحديث الصحيح اذا نظروا الى الله تعالى نسوا نعيم الجنة.

(۴) او ګاهي خداى پاک جنتيانو ته مهماني جوړه کړي.

(۵) بل دا چي جنتيان له اهل النار څخه غافل دي ولو من اقاربهم په زړو کي يې نه ورګرځي او نه باک په کوي (يعني هغه دوږخيان چي کافران وي) مثلاً نوح[ع] ته به کنعان په ياد نه ورځي، او ابراهيم خليل الرحمن[ع] ته به خپل پلار آذر په ياد نه ورځي، او عکرمه[رض] ته به خپل پلار ابوجهل په ياد نه ورځي، وعلى هذا القياس، دا ددې لپاره چي پر جنتيانو د جنت ژوند تريخ نه سي په سبب د ياد آوري د خپلو قريبانو دوږخيانو.

**درويش وايي:** چي ټوله حالات د جنتيانو چي په تفاسيرو کي راغلي دي څېړل او بيانول زما د قلم په توان او طاقت کي به نه وي او د اوراقو ګنجائش به هم دومره نه وي ... **بيت:**

تا طبع شريفت نه پذيرد ملالتي ...... آن به که بيان رابدعاء مختصر کنم

اللهم ارزقنا الجنة بنعيمها واجعلنا من اهل الجنان بحرمة شفيع اهل العصيان محمد صلى الله عليه وسلم واجعلنا من اهل شفاعته عند الرحمن.

هُمْ وَأَزْوَاجُهُمْ فِي ظِلَالٍ عَلَى الْأَرَائِكِ مُتَّكِئُونَ

دوی يعني جنتيان او مايني ددوی په سايو کې به وي.

**بوه سه:** چې مراد د ازواجهم يا نساء الدنيا چې د جنتي پر نکاح وفات سوي وي يا حور العين دي، ولا مانع من الجمع بينهما لبعض اهل الجنة يعني چې په دنيا کې ازواج او منکوحات درلودلې وي، او دا هم احتمال لري چې د ازواجهم څخه دي مراد دوستان د اهل جنت مراد وي کما في قوله تعالى: احشروا الذين ظلموا و ازواجهم، ولې چې په دې آيت کې مراد له ازواج څخه دوستان د ظالمانو دي، نو پر دې تقدير وازواجهم ته اشاره د عدم الوحشة په جنت کې ده لان المنفرد (چې يوازې وي) يتوحش اذا لم يكن له جليس من معارفه ولو كان في اقصى المراتب (يعني يوازې سړي ته وحشت او ديغت ورپېښيږي چې له دوستانو څخه دده څوک نه وي، سره د دې که څه هم په لوړو مراتبو کې وي)

**سوال:** څرنګه به اهل جنت او ازواج ددوی په سايه کې وي والظل انما يكون حيث تكون شمس وهم لايرون فيها شمسا ولا زمهريرا؟

**ځواب:** بان المراد من الظل ظل اشجار الجنة من نور العرش، سترګې د اهل جنت پر نور د عرش نه برېښي وان كان نور العرش اعظم من نور الشمس، كذا في حواشي ابن الشيخ.

وقال الامام الرازي رحمه الله في تفسير سورة النساء ان بلاد العرب كانت في غاية الحرارة فكانت الظل من اعظم اسباب الراحة، نو له دې سببه دوی ظل کنايه د رحمت او راحت څخه ګرځوي، وقد ورد في الحديث الصحيح قال عليه الصلوة والسلام السلطان (اى العادل) ظل الله في الارض (اى راحة للرعية) او په صحيح حديث کې راغلي دي چې روايت يې بخاري او مسلم کړی دی انه عليه الصلوة والسلام قال ان في الجنة شجرة يسير الراكب في ظلها مأة لايقطعها (چې نه يې سي قطع کولای، عليه الصلوة والسلام وويل اقرؤا ان شئتم وظل ممدود.

**بوه سه:** چې دا دوه حرف يعني في ظلال وعلى الارائك حرف جر دی، متعلق په متكئون پورې کړي وي لرعاية فواصل الآيات (اى اواخرها)، نو پر دې تقدير متكئون

خبر دهم دی او داسي هم روا ده چي في ظلال خبر دهم وي او متكئون خپر ثاني وي.

**تنبيه**: د عربو قديم عادت دا ؤ چي ناوې به يې كورته راودول، نو يو ښه چارپايي يا په اصطلاح پلنګ په بل نامه چپر كټ د ناوي او د زوم د پرېوتو لپاره جوړ كړه چي په عربي يې سرير بلله، او هغه به يې په نوي خېمه كي يا نوې خونه كي چي هغه خېمه يې حجله بلل كښېښوى ارائك جمع د اريكة ده، اريكه دا مجموع حجله سرير او پلنګ دواړو ته وايي، بيهقي رح له ابن عباس رض څخه روايت كړى دى: لايكون اريكة حتى يكون السرير في الحجلة كمامر تفسيرهما، فان السرير بغير حجلة لايكون اريكة وان كان حجلة بغير سرير لايكون اريكة فتدبر.

**درويش وايي**: چي ورته كارونه زموږ پښتانه د زوى يا د ورور په ودونو كي هم بلكې تر هغه بالا كارونه حسب الطاقة كما لايخفى كوي، روح المعاني وايي چي دا جمله يعني هم وازواجهم آه استيناف مسوق لبيان كيفيت شغلهم وتفكههم وتكميلها ممايزيدهم سرورًا من شركة ازواجهم آه.

**پوښتنه**: هغه ښځي بالغاتي چي په دنيا كي يې مړونه نه وي كړي، په جنت كي به د چا سره نكاح وركول كېږي او كه څرنګه؟

**ځواب**: د هغو نكاح به خامخا كېږي ولي چي د ښځي په دنيا او جنت كي يو لوى سرور او خوشالي په جماع سره كېږي، لكن د دې نكاح تړل د خداى جل جلاله په مشيت كي دى.

لَهُمْ فِيهَا فَاكِهَةٌ وَلَهُم مَّا يَدَّعُونَ ﴿٥٧﴾

**پوه سه**: چي فاكهة مبتداء ده لهم فيها يې خبر دى، والتنوين في فاكهة د تعظيم دى اى فاكهة جليلة الشان، او خداى پاك داسي وويل لهم فيها فاكهة داسي يې نه وويل يأكلون فيها فاكهة اشارة الى ان زمان الاختيار بايديهم مالكين قادرين فان شاؤا اكلوا وان شاء امسكوا (يعني نه دي خودي)

**فائده**: فاكهة په پښتو كي هر هغې مېوې ته وايي چي د لوږي د سبب يې سړى نه خوري بلكې صرف خوا پر صافوي لكه مالټه، نارنج، ترټېزك وغيرها، نو د جنت له مېوو څخه چي خداى پاك تعبير په فاكهة سره وكړى اشارة الى انه لاجوع في الجنة

بلکې د فاکهة پر ډول یې خوري که څه هم غوښتي وي، قوله ولهم آه، بعض مفسرین داسې ترجمه کوي چې دوی ته حاصل او موجود دي چې د خپلو ځانو لپاره یې غوښتای سي ای کل مایطلبه احد لنفسه لا انهم یطلبون فانه حاصل. لکه یو سړی چې له تا څخه یو شی وغواړي، ته ورته ووایه: لک ذالک. غرض دي دا وي چې طلب یې ولي کوې خو ستا دی. او یا یې معنی داده ولهم مایطلبون بالفعل یعني ددوی له خوا طلب وي او د خدای ﷻ له خوا اجابت وي، توجب اللذة بالطلب. نو پر دې تقدیر (یدعون) مشتق له دعاء څخه دی په معنی د طلب دی، او اصل د یدعون یرتعیون پر وزن د یفتعلون چونکه ضمه پر یا ثقیله وه، نو نقل کړه وماقبل ته وروسته د ساکنینو راغله یعني الیاء والواو، نو یې یا حذف کړه فصار یدتعون وروسته تا یې دال کړه وادغمت الدال في الدال فصار یدعون هکذا الاعلال في روح البیان وروح المعاني، او بعض مفسرین وایي چې: یدعون له باب څخه د افتعال دی کما مر الا ان الادعاء بمعنی التمنی، ابو عبیده وایي چې عرب وایي بل سړي ته ادع علي (بتشدید الیاء للمتکلم) ما شئت ای تمنی علي، او دغه رنګه عرب وایي فلان في خیر ما ادعی ای تمنّی، فالمعنی لهم (ای لاهل الجنة) ما یتمنون، او زجاج رحمه الله وایي چې یدعون ماخوذ دی له دعا څخه، والمعنی کل مایدعونه اهل الجنة یأتیهم، او بعض مفسرین وایي چې افتعل دلته په معنی د فعل مجرد دی فیدعون په معنی د دعاء دی په معنی مشهور سره، فالمعنی لهم (ای لاهل الجنة) ماکان یدعون به من الله ﷻ في الدنیا من الجنة ودرجاتها فافهم.

## سَلٰمٌ قَوْلًا مِّنْ رَّبٍّ رَّحِیْمٍ ۝

**بوه سه:** چې سلام بدل بعض دی د مایدعون څخه کانه قیل ولهم سلام وتحیة او قولاً مفعول مطلق د فعل محذوف دی ای یقال لهم قولاً، وجملة یعني یقال صفت د سلام ده، او من رب متعلق دی په محذوف پوري ای کائنًا من جهة رب رحیم، ومعنی الآیة یسلم علیهم من جهته تعالی بواسطة الملک او بلا واسطة تعظیمًا لهم.

**درویش وایي:** چې روح المعاني، روح البیان او مظهري داسې حدیث په ګډه په روایت د ابن ماجه او ابن ابی الدنیا والدار قطني وغیرهم له جابر بن عبدالله رضي الله عنه څخه رواړی دی، ده وویل چې علیه الصلوة والسلام چې په هغه وخت کې چې

جنتيان په خپلو نعمتو (كما مر نبذ منها) بخت وي په دغه وخت کي يو نور پيدا سي، فرفعوا رؤسهم (دوی سرونه پورته کړي يعني چي دا نور څرنګه پيدا سو، چي ترا وسه دوی نه وي ليدلی) فاذا الرب تبارک وتعالى قد اشرف عليهم من فوقهم (يعني خدای پاک له لوړي خوا څخه ظاهر سي) فقال ‌السلام عليكم اهل الجنة وذالک قوله تعالى سلام قولاً من رب رحيم (يعني ددې آيت تفسير دغه دی) فقال فينظر اليهم (خدای ‌و دوی ته وګوري) وينظرون اليه (او دوی خدای ‌ته وګوري) فلا يلتفتون الى شيئ من النعيم ما داموا ينظرون اليه (نو دوی له ټولو نعمتو څخه د جنت بې پرواه سي يعني هيڅ نعمت يې په زړه نه ورګرځي تر هغه وخته پوري چي خدای ‌په حجاب کي د کبريا له دوی څخه پټ سي) ويبقى نوره وبركته في ديارهم.

**پوه سه:** چي ددې حديث چي د اشراف او من فوقهم لفظ پکښې دی خدای ‌لره جهت ثابتېږي، جلال الدين السيوطي ‌وايي چي اشرافه واطلاعه عليهم منزه عن المكان والحلول انتهى.

**درويش وايي:** چي که مراد د سيوطي ‌دا نه وي چي دا حديث د متشابهاتو څخه دی فهو ليس بشيئ، محى السنة البغوي ‌ددغه سوا له د ځان ساتلو لپاره د آيت ترجمه داسي کړې ده: يسلم عليهم الملائكة من ربهم (يعني سلام په واسطه د ملكو دی انتهى) لكن دا ځواب د صريح لفظ سره د حديث مذكور منافي دی، او مقاتل ‌وايي يدخل الملائكة على اهل الجنة من كل باب سلام عليكم يا اهل الجنة من ربكم الرحيم، يعني يعطيهم السلامة الابدية.

**درويش وايي:** چي دا ترجمه هم د صريح لفظ سره د حديث مذكور سمون نه لري كما لايخفى، نو د فقير په عقيده حديث مذكور له متشابهاتو څخه د حديثو دی، او په احاديثو مباركه وو کي متشابهات ډېر دي لکه په قرآن كريم کي، الرحمن على العرش استوى، يد الله فوق ايديهم، نعم سلام بالواسطة من رب العزة هم نعمت بلا نهايت دی كما قال القائل:

سلام دوست شنيدن سعادتست وسلامت ... بوصل يار رسيدن فضيلت است وكرامت

وقال آخر:

سلامت من دلخسته در سلام تو باشد... زهي سعادت اگر دولت سلام تو يابم

**درویش وايي:** چي پر مؤمنانو قسم قسم سلامونه په قرآن کريم کي ذکر سوي دي، سلام عليکم ادخلوا الجنة بما کنتم تعملون، سلام عليکم طبتم فادخلوا خالدين، سلام عليکم بما صبرتم فنعم عقبى الدار، سلام قولاً من رب رحيم، تحيتهم يوم يلقونه سلام، واعد لهم اجرًا کريمًا، د جنتيانو اخيري خبره داده: واخير دعواهم ان الحمد لله رب العالمين.

**وَامْتَازُوا الْيَوْمَ اَيُّهَا الْمُجْرِمُوْنَ ۝**

مقاتل، السدي او زجاج رحمهم الله وايي چي: بېل (جلا) سئ ننه ورځ د قيامت اى کافرانو، يعني له مؤمنانو څخه، يعني چي جنتيان مؤمنان و جنت ته روانېږي او تاسي مجرمان به دوږخ ته، کما في قوله تعالى ويوم تقوم الساعة يؤمئذ يتصرفون.

**پوه سه:** چي دا عطف د قصه ده سوء حال د هؤلاء المجرمون و کيفية اعقابهم على قصة حال المؤمنين وحسن ثوابهم.

کاشفي رح وايي: وجدا شويد آن روز اى مشرکان از موحدان واى منافقان از مخلصان که شارا بزندان دشمنان مى رانند وايشان را بوستان دوستان مى خوانند.. انتهى.

ضحاک رحمه الله وايي: ان لکل کافر في النار بيتًا يدخل ذالک البيت، او دروازه يې پسي بنده سي، فيکون فيه ابد الآبدين، نه دی څوک وويني او نه څوک دی ويني، ابن جرير او ابن ابى حاتم او ابن ابى الدنيا او بيهقي له ابن مسعود رض څخه روايت کړی دی چي کافر چي اور ته واچوي وهو مخلد فيها (يعني ابداً) دوی په صندوقانو چي په عربي يې توابيت بولي چي جمع د تابوت ده، چي دا توابيت له اوسپنې څخه جوړ سوي وي او مېخونه يې هم د اوسپنې وي، او دا توابيت په نورو توابيتو کي واچوي، ثم قذفوا في اسفل الحميم، د هر کافر به دا خيال وي چي تر ما به سخت عذاب د هيڅ چا نه وي، على خلاف حال المؤمنين فانهم يجتمعون مع من يحبونهم.

**پوښتنه:** په نورو آيتو کي راغلي دي چي کافران به پر بل منت کوي يعني تابعان د کافرانو به پر رئيسانو بد وايي چي تاسي به موږ و دې ضلال او کفر ته

رابللو، او رئيسان به جواب ور کوي کما اشير اليه بقوله تعالى واذ يتحاجون في النار الى غير ذالک، نو د ضحاک رحمه الله قول کمامر ان لکل کافر في النار بيتا الخ: دغو آيتو سره منافي نه دی؟ روح المعاني په ځواب کي ددې سوال وايي چي د ضحاک رحمه الله حديث محمول پر دې دی چي دا کار په اخير کي وروسته تر اول دخول ددوی دوږخ ته يعني د کفارو هر يوه خپل بيت ته داخلېدل، وکذالک حديث د ابن مسعود رضي الله عنه کمامر هم اخيري مرحله او مأوی د کافرانو دی فلاينافي ذالک عتاب بعضهم بعضا کما ورد في آيات آخر لان ذالک في اوائل دخولهم النار فافهم هداک الله تعالى لفهم دقائق الکلام المجيد.

أَلَمْ أَعْهَدْ إِلَيْكُمْ

آيا تاسي ته واست امر کړل سوي پر ژبه د رسولانو.

**بوه سه:** چي همزه لپاره د استفهام انکاري دی او نفي د نفي اثبات دی يعني امر کړي مي واست.

**فائده:** عهد په لغت کي وصيت ته وايي يعني پېش ګويي د هغه کار چي په هغه کي د موصىٰ له خير وي، والمراد ههنا هغه اوامر او منهيات چي خدای دوی ته را استولي وه پر السنه ؤ د رسولانو من جملتها قوله تعالى يا بني آدم لايفتنکم الشيطان (تاسي دي په فتنه کي يعني الکفر والمعاصي) واقع نه کړي شيطان کما اخرج ابويکم من الجنة (لکه چي ده ستاسي پلار يعني آدم او مور بي بي حواء رضي الله عنها له جنت څخه را ويستل د جنت په وسوسه لکه چي قصه يې په بل ځای کي د قرآن کريم مذکور مفصلاً ده، وقوله لاتتبعوا خطوات الشيطان انه لکم عدو مبين وغيرهما من الآيات الکريمة.

يَٰبَنِيٓ ءَادَمَ أَن لَّا تَعْبُدُواْ ٱلشَّيْطَٰنَ إِنَّهُۥ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِينٌ ۝٦٠

ای اولاد د آدم (مراد له بني آدم څخه نر ؤ ښځي دواړه دي لکن اکثر خطابات د قطرآن کريم د نرو سره دي او ښځي تبع لهم الا ما يختص بالرجال فافهم) چي تاسي عبادت مه کوئ د شيطان.

**سوال:** هيڅ چا خو عبادت د شيطان نه دی بلکې عبادت د بتانو به يې کاوه؟

**ځواب:** چونکه عبادت د بتانو دوی په اغواء د شیطان کاوه، نو ځکه یې نسبت و شیطان ته وکړی.

(اِنَّهٗ لَكُمْ عَدُوٌّ مُّبِيْنٌ) په تحقیق شیطان ستاسي دښمن دی، ظاهر العداوة.

**پوه سه:** چي دا جمله علت د عدم اطاعت د شیطان، ولي چي دښمن سړی نه امر کوي الا بما فیه له ضرر، خصوصًا الشیطان لانه لایرضٰی من بنی آدم الا بالعذاب المؤبد في النار.

**فائده:** دا خبري و کفارو ته په ورځ د آخرت کړل کېږي له جانب څخه د رب العزت چي دوی لره سي بالامتیاز عن المؤمنین والامر بمقاسات حر جهنم لپاره د الزام د دوی او د تقریع او سرزنش د دوی، او چي دوی په دې پوه سي انه لاظلم الیوم فتدبر في فوائد القرآن، شیخ سعدی رح وایي:

دشمن چون از همه حیل درماند سلسله دوستی بجنباند

پس آنگاه بدوستی کارها کند که هیچ دشمن نتواند کرد

(چنانچه شیطان لعین چي په سبب د نه سجدې و آدم ع ته، ملعون ابلیس لا رد دوستی په مخه واخستل بقوله هل ادلکم علی شجرة الخلد وملک لایبلی، وفي آیة اخری ما منعکما عن تلکما الشجرة الا ان تکونا ملکین الآیة، نتیجه د دوستی یې دا سوه فازلهما مما کانا فیه، او بل دا اهبطوا الآیة، شیخ سعدي رح وایي:

حذر کن ز آنچه گوید دشمن آن کن ..... که بر زانو نهد دست تغابن

گرت راهی نماید راست چون تیر..... ازان برگرد وراه دست چپ گیر

وَّاَنِ اعْبُدُوْنِيْ ۚ هٰذَا صِرَاطٌ مُّسْتَقِيْمٌ ﴿۶۱﴾

خدای ﷻ وایي: چي زما عبادت کوئ (یعني بالتوحید دون الشرک الخفي والجلي دا جمله عطف ده پر لاتعبدوا) دا غه هغه لیار ده چي سمه ده کج او پیچ نه لري، هذا اشاره ده الی ماعهد الیهم چي مراد ځني عبادت دی د رب جل وعلا.

**فائده:** تنکیر د صراط مستقیم لپاره د تفخیم او تعظیم دی، وهو المراد ابلیس اللعین کما حکاه الله عنه، لاقعدن صراطک المستقیم، یعني د دین اسلام او توحید څخه بې ضلال او شرک ته به یې رابولم.

**پوه سه:** چي هر قول قابل د اختلاف دی بین الامة المسلمة الا قول لا اله الا الله محمد رسول الله، فانه غیر قابل لا اختلاف بین جمیع طوائف المسلمین یعني اهل السنة والجماعة وفرق الضلال من المعتزلة والكرامية والشيعة وغيرهم البائع عدد المجموع (٧٣) بقول الصادق المصدوق ستفرق امتي الى (٧٣) فرقة كلهم في النار الا الناجية الى اخير الحديث.. شیخ سعدی قدس سره وايي:

نه ابلیس درحق ما طعنه زد ..... کز ایشان نیاید بجز کار بد

فغان از بدیها که نفس ماست ..... که ترسم شود ظن ابلیس راست

چون ملعون پسند آندش قهر ما ..... خدایش بر انداخت از بهر ما

کجا بر سرایم ازین عار ونگ ..... که با او به صلحم وباحق بجنگ

نظر دوست نادر کند سوی تو ..... که درروی دشمن بود روی تو

ندانی که کمتر نهد دوست پای ..... چو بیند که دشمن بود درسرای

وقال سعدي رح ايضًا:

نه ما را درمیان عهد وفا بود ..... جفا کردی وبد عهدی نمودی

هنوز سر صلحست باز است ..... کزان محبوب تر باشی که بودی

**وَلَقَدْ أَضَلَّ مِنكُمْ جِبِلًّا كَثِيرًا ۖ أَفَلَمْ تَكُونُوا تَعْقِلُونَ ﴿٦٢﴾**

بتحقیق گمراه کرده شیطان، له تاسي څخه خلقًا وجماعة کثیرًا.

**پوه سه:** چي لام جواب د قسم محذوف دی دا رجوع و معادات ته د ابلیس لعین وظهور عداوته و وضوع اضلاله لمن له ادنی عقل. ولي چي دی یأمر بالفحشاء وترک عبادة الخالق الرازق الضار النافع الى عبادة من لایضر ولاینفع وترک اتباع النبي الناصح الامين المؤيد بالمعجزات محمد ﷺ الى اتباع النفس والهوى.

(افلم تکونوا تعقلون) آیا تاسي ته په عقل کي نه درګرځېدی عداوت د ابلیس مع بني آدم، الاستفهام للتوبيخ، قانون هر ځای په قرآن مبارک کي چي تر استفهام وروسته حرف عطف راسي که واو که فاء وي او که ثم وي پر ماقبل څو نسي عطف کېدای لفوات صدارة الاستفهام، نو عطف پر مقدر د وروسته تر حرف استفهام د هر مکان سره مناسب مقدر دی لکه دلته اکنتم تشاهدون اثار عقوباتهم ای اتباع الشیطان فلم تکونوا تعقلون.

**سوال**: دا قانون تا ډېر وارونه په دې تفسیر ایوبي کې راوړی دی، ښه به دا نه وای چې یو ځای دې راوړی وای. او بل ځای چې موقع ددې قانون راغلې وای، حواله به دې ماقبل ته کړې وای؟

**ځواب**: زه د خپل تفسیر متعلمین و تصفح ته د اوراقو نه محتاجه کوم شفقةً علیهم. او بل دا چې د هر مقام سره مقدر مناسب اکثر متعلمان نه پوهېږي. نو له تلاش څخه د مقدر مناسب یې مستغني کوم وانما الاعمال بالنیات.

**درویش وایي**: چې کافران اتباع الشیطان چې دوږخ ته ورنږدې کړل سي، نو ملائکه داسي ورته ووایي:

هَٰذِهِ جَهَنَّمُ الَّتِي كُنتُمْ تُوعَدُونَ ﴿۶۳﴾ اصْلَوْهَا الْيَوْمَ بِمَا كُنتُمْ تَكْفُرُونَ ﴿۶۴﴾

دادی جهنم چې ستاسي سره یې وعده کړل سوې وه په دنیا کې پر ژبه د رسولانو، داخل سئ د دوږخ ته وڅکئ حرارت ئې نن ورځ په سبب ددې چې تاسي انکار کاوه په دنیا کې له عذاب څخه د دوږخ.

الْيَوْمَ نَخْتِمُ عَلَىٰ أَفْوَاهِهِمْ وَتُكَلِّمُنَا أَيْدِيهِمْ وَتَشْهَدُ أَرْجُلُهُم بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿۶۵﴾

نن ورځ یعني په ورځ د قیامت مهر به لګوو پر خلو ددوی (مراد له مهر څخه ظاهر مهر نه دی بلکې عدم استطاعتهم التکلم لکه ګونګی) او زموږ سره به خبرې وکړي لاسونه ددوی او شاهدي به اداء کړي پښې په هغه کار سره چې دوی د هغه کسب کړی وي (نو کلمه د ما موصوله ده او عائد یې په صله کې محذوف دی ای بالذی یکسبونه بالایدي والارجل.

**فائده**: په دې آیت کې التفات دی له خطاب څخه چې په کنتم کې ؤ و غیبت ته د افواههم وارجلهم، مسلم له انس رضي الله عنه څخه او هغه له رسول الله ﷺ څخه روایت کړی دی، قال: کنا مع رسول الله ﷺ فضحک رسول الله ﷺ، فقال[۴] هل تدرون مما اضحک؟ (موږ د رسول الله ﷺ سره وُ چې رسول الله ﷺ وخندل، نو ده مبارک وویل چې تاسي خبر یاست چې ما پر څه شي وخندل؟) قلنا الله ورسوله اعلم! قال[۴] (له خبرو څخه د بنده د خدای ﷻ سره یعني په ورځ کې د قیامت چې

بنده و خدای ﷻ ته وايي: يا رب الم تجرني من الظلم (آيا تا ماته امان نه راكړی چي زه ظلم کوم، اشارةً الى قوله تعالى لاظلم اليوم) فيقول بلی (بنده ورته وو ايي) لا اجيز على نفسي الا بشاهد مني (زه نه قبلوم پر ځان هيڅ شاهد چي زما خبرونه يې ليکلي وي، يعني د كرام كاتبين شاهدي نه منم) خدای پاک ورته وو ايي كفى بنفسک اليوم عليک شهيداً، وبالكرام الكاتبين شهوداً، يعني كه څه هم ته د كرام كاتبين له شاهدی څخه ځان کاږې، فيختم على فيه ويقال لاركانه ای اعضائه انطقی (خبري وكړئ يعني په طور د شهادت په اعمالو سره دده هغه اركان او اعضاء چي دده د ګنهو ذكر وكړي، بيرته دده ته د نطق او د خبر دروازه خلاصه سي، نو دا بنده و خپلو اعضاؤ ته وو ايي بعداً لكن وسحقًا فعنكن اناضل ستاسي څخه خلاصولو لپاره ما د خدای سره مجادله كوله.

**فائده:** په دې آيت کي كه څه هم ايديهم وارجلهم راغلي دي لان عامة الافعال بالايدي والارجل لكن مراد ټوله اندامونه دي لان كل عضو ينطق بما صدر منه.

**درويش وايي:** چي بعض افاضل وايي چي ختم لازم دی د كفارو سره ابداً، اما في الدنيا فعلى قلوبهم، كريمه: ختم الله على قلوبهم الآية واما في الآخرة فعلى افواههم كمامر اليوم نختم على افواههم فيلزم التكلم باعضائهم لان الانسان لايملک غير القلب واللسان والاعضاء فاذا لم يبق القلب واللسان تعين الجوارح والاركان انتهى.

**فائده:** ابن جرير او ابن ابی حاتم له ابو موسىٰ الاشعري رضي الله عنه څخه روايت كړی دی، قال يدعى المؤمن للحساب يوم القيامة، نو خدای ﷻ هغه معاصي چي دده او د خدای ﷻ تر مابين وي (يعني حقوق الناس نه وي لكه ترک الصوم وشرب الخمر وغيرها) مؤمن اقرار په ټولو سره وكړي، يعني فيقول ای رب عملت عملت فيغفر الله له ويستره (يعني په وخت کي د عرض د ګنهو خدای ﷻ په حجاب د اهل محشر څخه دی وساتي چي هيڅ څوک د اهل محشر په ده نسي خبر) او ښكاره كړي خدای پاک نيک عملونه دده چي ټوله اهل محشر يې وويني (ويعطى كتاب حسناته كما في رواية اخرى) ويدعى الكافر والمنافق للحساب فيعرض عليه ربه عمله (ای الكفر والنفاق وسائر معاصيه) نو دی منكر سي او وو ايي ای رب وعزتک كتب على هذا الملک (يعني الكرام الكاتبين) مالم اعمل نو خدای پاک

ورته وايي عملت عمل كذا في يوم في مكان كذا فيقول لا وعزتك فاذا فعل ذالك ختم على فيه (يعني پر خوله) ابو موسیٰ ؓ وايي اني احسب اول ماينطق (يعني اول چي شاهدي اداء کوي او خبري کوي فخذه اليمنى (يعني په زنا او لواطت سره) وفي رواية غير ابو موسیٰ فخذه وكفه.

**درويش وايي:** چي والله اعلم چي د كف ذكر دى اشاره واستمنا بالكف ته وي.

وَلَوْ نَشَآءُ لَطَمَسْنَا عَلَىٰٓ أَعْيُنِهِمْ فَاسْتَبَقُوا الصِّرَاطَ فَأَنَّىٰ يُبْصِرُونَ

**بوه سه:** چي په دې ايت کي اشاره ودې ته ده چي کفار په دې دنيا کي هم په دائره د قدرت او مستحقون د عذاب وه لکن چي په دنيا کي چي عذاب (يعني د طمس العين نه ورکوي لحكمة ظاهرة والله اعلم حکمت به دا وي چي طمس العين عذاب پر يو کافر مسلط سي ايمان راوړل به يې ضروري سي، او له دائرې څخه د اختيار العبد به ووځي والمعتبر في الايمان الايمان الاختياري دى)

**بوه سه:** چي مفعول د نشاء محذوف دى اى لو شئنا طمس اعينهم لطمسنا على اعينهم، او د طمس معنى عند اكثر المفسرين داده چي ضوء او شق او بانوګان يې تولہ د مابين ولاړ شي او روح المعاني ودې معنى ته هم تجويز ورکړي چي صرف ضوء دى ولاړه سي، نو رشق بانوګان دي باقي لکن.

**درويش وايي:** چي چي دا معنى د طمس د لغت سره منافي وه.

(فاستبقوا الصراط) عطف على طمسنا على الفرض يعني که فرضًا طمس واقع سي والصراط په نزع ده حرف جر ده. والمعنى اى فاراد والاستباق الى الطريق الواضح چي دوى به په خوا پر تله د استباق معنى روح البيان داسي کړې ده (بريک ديگر پيش گرفتن) او زما په نيز د استباق معنى صرف تګ دى پر يوه لار (فاني يبصرون) نو څرنګه سره د طمس به دوى لار وويني والاستفهام للانكار اى لايبصرون الطريق بسبب الطمس ولو كان طريقا مالوفًا فافهم.

وَلَوْ نَشَآءُ لَمَسَخْنَٰهُمْ عَلَىٰ مَكَانَتِهِمْ

که زموږ اراده وای دوى به مو مسخ کړي وای پر ځپل ځای باندي.

**بوه سه:** چي مسخ تبديل د صورت د انسان وصورت اقبح ته يعني مسخنا قردة و خنازير كما روى عن ابن عباس ؓ وروى عن ابى صالح لمسخناهم حجارةً.

**درويش وايي**: چي دديٍ دوو روايتو څخه دا معلومه سوه چي په مسخ کي د انسان دا شرط نه ده چي بل صورت حيواني اقبح ته وي، ولي چي د ابو صالح پر روايت ډېرو ته مسخ وايي خو صورت حيواني ته دی، او بعض افاضل وايي چي تبديل د حيوان وجماد ته رسخ بولي او تبديل ونبات ته فسخ بولي، او مسخ خاص ده په تبديل و سورة حيواني اقبح ته. فعلى هذا لايصح رواية ابو صالح الا ان يقال سماه اى التبديل وصورة الحجرى ته مسخ مجازًا وبلل سول والا فهو رسخ على قول بعض.

**فائده**: ابوبکر مکاناتهم په صيغه د جمع راوړی ومقابلة الجمع بالجمع يفيد توزيع الاحاد على الاحاد كما في لبثوا ثيابهم وركبوا دوابهم او نور قاريان مكانتهم په افراد سره وايي كما في جميع المصاحف المطبوعة لان لفظ المكان اسم الجنس فلا عائبة في التوزيع، والمراد بالمكانات منازلهم.

فَمَا اسْتَطَاعُوا مُضِيًّا وَلَا يَرْجِعُونَ ﴿٦٧﴾

نو نه وی به طاقت نه د رلود ای په سبب د دې مسخ تګ و خپل مقاصدو ته، او نه به يې رجوع کولای سوای خپلو کورو ته که د باندي وتلي وای.

**سوال**: مقابل د مضيًا چي مفرد دی خو رجوعًا دی نو د څه حکمت لپاره يې لايرجعون جمله فعليه راوړه؟

**ځواب**: حکمت يې مراعات د فواصل د آياتو دی ای اواخرها، وقيل ولايرجعون عن تکذيبهم انتهى.

**درويش وايي**: چي په صورت کي وقوع د مسخ د رجوع د تکذيب څخه امکان او احتمال يې هم نسته والله اعلم.

وَمَنْ نُعَمِّرْهُ نُنَكِّسْهُ فِي الْخَلْقِ ۖ أَفَلَا يَعْقِلُونَ ﴿٦٨﴾

که موږ يو چا ته دراز عمر ورکړو، موږ تغير او کم ورکوو په خلق کي يعني په اعضاء کي د بدن، يعني په ابتداء کي چي څوک پيدا سي روز افزون يې تو له اعضاء پر تزايد او قوت روان وي، وروسته تر سن د وقوف د تزايد چي يا (٣٣) کال دی يا (٤٠) کاله باختلاف الامزجة د ضعف اعضاء البدن دوره شروع سي، اولاً خو انحطاط يعني ضعف الاعضاء په خفي ډول شروع کېږي چي سن د شيبه کرار کرار

پسې د برېږي چې سن د شيخوخه يا هرم يې بولي، نو په دې وخت کې د سترګو ديد کم سي، عينکو ته ضرورت پيدا سي، او د غوږو اورېده يې کم سي چې په بلند اواز خبرو ته ضرورت پيدا کي، يا د غوږو و مشين ته ضرورت پيدا کي، او د پښو قوت يې کم سي حتی چې لکړي ته ضرورت پيدا سي، او حافظه يې هم کمزوري سي، چې شناخته سړي وي چې لږ مده غائب سي نه يې پېژني وهكذا اعضائه الاخر، کرار کرار تر مرګ پوري چې دې ته ارزل العمر وايي، په حديث شريف کي راغلي دي: من قرء قرآن (اى باللفظ والمعنى) د ارزل العمر دوره نه پر راځي.

**درويش وايي**: چې زه اوس چې دا تفسير نوشته کوم عمر مي اووه نوي (۹۷) کاله ته داخل دی، البته د ځوانی تر حال خو به ټوله اعضاء کمزوري سوي وي لکن بحمد الله ﷻ بصر لږ کمزوری او غوږ هم لږ کمزوری وهكذا الاعضاء الاخر، لكن بحمد الله وحسن توفيقه قوة عاقله پر ځای دی او ادراک د زيات پر لور روان دی الحمد لله ثم الحمد لله.

**فائده**: له سفيان ثوري رحمه الله څخه روايت دی چې سن د تنکيس (۸۰) کاله دی، روح المعاني دا کليه رد کړې ده، دی وايي چې ابتداء د ضعف او انتقاص البنية او حافظه مختلف دی په خلکو کي لاختلاف الامزجة والعوارض كما لايخفى، يعني ككثرة الامراض والفقر والمسكنة وزيادة الاعداء والحبس والضرب وغير ذالک (افلا يعقلون) عطف دی پر مضمون د جمله شرطيه سابقه (يعني ومن نعمره الخ) والاستفهام لپاره د انکار دی يعني ينبغي لهؤلاء الكافرين ان يعقلوا (چې فكر وکړي او په دې پوه سئ چې هغه څوک (يعني رب ﷻ) چې قادر دی پر مضمون د ومن نعمره ننكسه في الخلق هغه قادر دی پر طمس او مسخ.

**پوه سه**: چې نافع او ابن ذکوان دا جمله په تأ الخطاب وايي يعني افلا تعقلون ولي چې د مخه خطاب راغلی دی، يعني في قوله تعالى الم اعهد اليكم، او نور قراء يې په يا د غيبت وايي يعني افلا يعقلون جريًا على قوله تعالى لو شاء لمسخناهم چې ضمير غائب پکښي موجود دی، بغوي رحمه الله وايي چې کلبي رحمه الله ويلي دي چې کفار د مکې به ويل ان محمدًا شاعر وما تقوله (يعني القرآن شعر) فانزل الله تعالى.

## وَمَا عَلَّمْنَٰهُ ٱلشِّعْرَ وَمَا يَنۢبَغِى لَهُۥٓ

دا جمله عطف ده على قوله تعالى انک من المرسلين، وفيه التفات من الخطاب (يعني في انک) الى الغيبة (يعني في ضمير الهافي قوله علمناه) يعني په تعليم د قرآن شعر مورږ ده ته نه دی ښوولی، ولې چې شعر خپل شرائط لري، قافيه غواړي او پر يو بحر له بحورو څخه د اشعارو برابروالی غواړي.

**پوه سه:** چې بحور د شعرو په شرح کې د مختصر الشافي على متن الكافي او په محيط الدائره وغيرهما کې مذکور دي او د قرآن مبارک آيات پر هغو بحورو نه دي برابر كما لايخفى عند التقطيع، او بل دا چې اشعار و معاني صرف خيالات د عشق لپاره د رغبت يا اکاذيب لپاره د نفرت او اکثرې اقوال کاذبه دي، يو محقق و خپل زوی ته چې د شعر شوق يې درلودی داسې وويل: ... بيت:

در شعر مه پيچ ودرفن او .... زانکه احسن اوست اکذب او

(وما ينبغي له) او نه ښايي چې دی مبارک دې وخت شريف خپل په انشاء د شعر کې صرف کړي، کريمه: والشعراء يتبعوهم الغاوون.

**سوال:** بخاري او مسلم له براء بن عاذب ﷺ څخه روايت کړی دی چې رسول اللهﷺ وويل: (انا النبي لا كذب ... انا ابن عبد المطلب) او په حديث کې د جندب بن ابى سفيان ﷺ راغلي دي چې يو وخت په يوه غزا کې د عليه الصلوٰة والسلام يوه ګوته وينې سوه، ده مبارک داسې وويل:

هل انت الا اصبع دميت ..... وفي سبيل الله ما لقيت

**پوښتنه:** دا دوه قولونه پر وزن شعري خو برابر دي كما لايخفى على متتبع اوزان البحور؟

**ځواب:** دا دوې خبرې هسې اتفاقي د عليه الصلوٰة والسلام پر خوله مبارکه ورغلې بلا تکلف ولاقصد الوزن ومثله لايعد شاعر، داسې اتفاقي شعرونه په منشور خبرو کې د عربو ډېرې دي، بلکې د هر اهل اللغة واللسان، والدليل على عدم کون شعر رسول اللهﷺ طبقًا له بل وقع اتفاقًا چې عليه الصلوٰة والسلام دواړې باګانې په اول شعر يعني باء من کذب و عبد المطلب په زوره وويلې على قانون النشر

من الكلام العربي مع ان قانون بحر الرجز الذي هذا الشعر منه ان يسكن البائين المذكورين كما لايخفٰى على ماهر علم العروض والقوافي، والدليل الاخر على ذالک ان عليه الصلوة والسلام كسر من دميت بلا اشباع مع ان القانون العروضي يقتضى الاشباع ليوجد الياء الساكنة او ساكنه يې وويل من لقيت مع ان القانون العروضي يقتضى حركتها، بغوي رحمه الله له حسن رحمه الله څخه روايت کړی دی چي يوه ورځ عليه الصلوة والسلام د بل چا شعر وايه، يعني كفٰى بالاسلام والشيب للمرء ناهيًا، فقال ابوبكر رضي الله عنه يا نبي الله هذا الشعر هكذا، كفى الشيب والاسلام بالمرء ناهيًا، فاعاده عليه الصلوة والسلام كما في المرة الاولى فقال ابوبكر رضي الله عنه اشهد انک رسول الله صلى الله عليه وسلم يقول الله عزوجل وما علمناه الشعر وما ينبغي له.

**درويش وايي:** چي په دې دلائل مذکوره وُ د هغه چا سر خلاصېږي چي د بحر رجز عروض او قوافي په صحيح معنى ورته معلومي وي، علاوه خليل بن احمد چي واضع د علم العروض والقوافي دی بحر الرجز نثر بولي چي مشطور وي، يعني نيمی ارکان يې حذف سوي وي، شعر يې نه بولي، او بل دليل دادی چي معمر له قتاده رضي الله عنه څخه روايت کړی دی، وايي چي ما له سيدتنا عائشة رضي الله عنها څخه پوښتنه وکړه چي عليه الصلوة والسلام د يو چا شعر وايه؟ دې راته وويل لم يتمثل بشيئ من الشعر الا ببيت اخي بني قيس بن طرف: ستبدى لک الايام ما كنت جاهلاً، نو عليه الصلوة والسلام يې اخيري مصرع داسي وويل: ويأتيک من لم تزود بالاخبار، فقال ابوبكر رضي الله عنه ليس هكذا يا رسول الله صلى الله عليه وسلم بل هكذا ويأتيک بالاخبار من لم تزودي، فقال عليه الصلوة والسلام اني لست بشاعر وما ينبغي لي، او عائشي رضي الله عنها داهم وويل: كان الشعر ابغض الحديث اليه، وقد ورد ان الشعراء يتبعهم الغوون وهم في واد يهيمون.

**پوښتنه:** دا ټوله مبحث چي تا رانقل کړی، عوام الناس خو پرېږده طالبان ايله کړه، د دې زماني ملايان الا ما شاء الله خو نه په پوهېږي لعدم علاقتهم مع العلمين العروض والقوافي، نو د بيان يې څه فائده ده؟

**ځواب:** مطلب د فقير تحقيق د دې آيت دی وما علمناه الشعر الآية، که څوک په پوهېږي او که نه، والجهل ليس بعذر في الاسلام.

**فائده:** رسول کریم ﷺ معلم من عند الله ؤ علمه تعالی علوم الاولین والآخرین وما علمه الشعر لانه قد ورد ان الشعر قرآن ابلیس.

**سوال:** په حدیث کي د عائشې رضي الله عنها قریبًا ذکر سوه کان الشعر ابغض الحدیث الیه ﷺ، وورد في خبر آخر کان احب الحدیث الیه ﷺ الشعر، فما التوفیق بین الحدیثین؟

**جواب:** هغه شعر ابغض ؤ رسول الله ﷺ ته چي په هغه کي به کذب او قبح ؤ، او ذکر د جمال د ښځو وي یا غیبت د مسلمان پکښې وي ونحو ذالک، او احب د شعر و علیه الصلوة والسلام هغه شعر ؤ چي مشتمل به پر حکمت ؤ او په بیان کي د احکامو د اسلام به ؤ، او وصف جمیل د دین د اسلام او بیان د مکارم د اخلاق وي یا ثناء د رب جل وعلا پکښې وي یا نصیحت د مسلمانانو ته پکښې وي، او بیان د کومک د اسلام پکښې وي ونحو ذالک، وقد صح چي رسول الله ﷺ به په مسجد نبوي کي و حسان بن ثابت رضي الله عنه ته چي یو مجاهد ستر شاعر ؤ پر منبر به یې کښېنوی چي و هغو کسانو ته د شعراؤ د مشرکینو چي د علیه الصلوة والسلام هجو او ذم به یې په شعرو سره کړی ؤ حسان رضي الله عنه به د دوی د هجو جواب په شعر سره ورکړی، ودې ته جهاد باللسان وایي، والیه اشیر بقوله تعالی: جاهدوا باموالکم وانفسکم والسنتکم.. بیت:

شاعران شیران شدند وهجو شان ..... همچو چنگال وجود داند انست دان

**درویش وایي:** چي علامه آلوسي رحمه الله د دې آیت (یعني وما ینبغي له) معنی داسي کړي ده ای لایستقیم عقلاً ان یقول ﷺ الشعر (یعني بالقصد دون الاتفاق کما مر) لانه لو کان ممن یقول الشعر لتطرقت التهمة عند کثیر من الناس (یعني لا ربه پیدا کړي تهمت ته یعني د علیه الصلوة والسلام په نېز د ډېرو خلکو) یعني دوی به ویلای چي ماجاء به من القرآن من قبل نفسه دی وانه ای القرآن اثر تلک القوة الشعریة دی د دې سببه لکه عنقریب چي به راسي خدای پاک داسي وویل (ویحق القول علی الکافرین) لانه اذا انتفت الریبة والتهمة لم یبق الا المعاندة فیحق القول علیهم انتهی بلفظه وبعضه بالترجمه.

**درویش وایي:** چي روح المعاني د دې آیت په بیان کي ډېر طویل بحث کړی دی ان شئت فارجع الیه.

# إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ وَقُرْآنٌ مُّبِينٌ

نه دی قرآن (الا ذکر) یعني نصیحت دی د خدای ﷻ له جانبه څخه چي پر علیه الصلوة والسلام یې نازل کړی دی، او قرآن دی بیانونکی د فرائضو د اسلام او د احکامو او د حدودو د اسلام او اخبار بالغیب د ماضي حالاتو او د مستقبل احوالو دی التي لایمکن اتیانها من شاعر بل من احد من الانس والجن.

**پوښتنه:** تا رجز د یو بحر نوم یاد کړی او دادي نه وویل چي ارکان یې څو دي؟

**ځواب:** په محیط الدائره کي وایي چي ارکان د رجز تام مستفعلن شپږ واره دي او مشطور به وزن یې مستفعلن درې واره او منهوک یې چي دوه ثلث یې تللي وي فبقی مستفعل دوه واره، نو هغه بیت چي علیه الصلوة والسلام ووایه (انا النبي لاکذب ... انا ابن عبد المطلب) او دوه واره یې با ته زور ورکړی فلایکون موزونًا لان الحرف الآخیر من رکن الرجز یجب سکونه لانه مستفعلن فکونه لیس بشعر اظهر واظهر، فتدبر غایة التدبیر.

# لِّيُنذِرَ مَن كَانَ حَيًّا

**پوهه:** چي (لینذر) بعض قاریان په تاء الخطاب سره وایي یعني ته وبېروې یا محمد یعني په قرآن سره، او بعض قاریان یې په یا د غیبت وایي والمعنی چي وبېروي محمد ﷺ یا قرآن (من کان حیًا) هغه څوک چي ژوندي وي، مراد له حي څخه مؤمن دی، ولي چي د مؤمن زړه ژوندی دی تعقل د اشیاؤ کوي ومنه القرآن علی ما علیه کولای سي چي منزل من عند الله مختلق د علیه الصلوة والسلام نه دی، وایضًا الحیاة الابدیة في دار السرور في الآخرة مربوط په ایمان سره دی بخلاف الکافر فانه کالمیت لاینفع بالقرآن ولایمیز الحسن من القبیح، ولي چي دده عقیده داده چي عبادت د احجار او اتباع د شیطان ښه کار دی وعبادة الخالق مع التوحید او متابعت د رسول المؤید بالمعجزات الظاهرات بد کار دی فیکون في الآخرة بحیث لایموت حتی یستریح من النار دار الاشرار ولایحی یعني حیوة طیبة في دار الابرار.

**تنبیه:** بکون الکافر في الحقیقة میتًا جعله مقابلاً للحي.

وَيَحِقَّ الْقَوْلُ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿٧٠﴾

چي لازم او ثابت وګرځي کلمه د عذاب.

**پوهه:** چي جمله د ''ويحق على الكافرين'' عطف ده على قوله لينذر.

**دروېش وايي:** چي قرائت د يحق بياء الغيبة د معطوف عليه قرائة يعني لينذر په يا د ډېر ښکلا ښکاره کوي، والله اعلم.

**پوهه:** چي له قول څخه مراد مضمون دی د هغه قول د خدای جل جلاله لاملئن جهنم من الجنة والناس اجمعين.

اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّا خَلَقْنَا لَهُمْ مِّمَّا عَمِلَتْ اَيْدِيْنَآ اَنْعَامًا فَهُمْ لَهَا مٰلِكُوْنَ ﴿٧١﴾

**پوهه:** چي استفهام لپاره د انکار او نفي د نفي اثبات دی والواو للعطف على المقدر كما هو القانون في حرف العطف الواقع بعد حرف الاستفهام وقدمر ذالک القانون مرارًا في التفسير الايوبي وبيان فائدة تكراره، او ضمير راجع دی و مشرکينو ته د مکې، والتقدير الم يتفكروا (دا معطوف عليه مقدر دی) ولم يعلموا (دا تفسير د يروا دی يعني چي مراد رؤية بصري نه دی بلکې رؤية علمي دی) علمًا يقينًا في حكم الرؤية البصرية (دا بيان دې دی چي له علم څخه يې ولي تعبير په رؤيت وکړی) ای قد علموا (دا بيان د اثبات دی چي موږ وويل ونفي النفي اثبات) (انا خلقنا لهم) چي موږ يک تنها پيدا کړي لپاره د نفع د دوی. (نو کلمه د لام لپاره د نفع ده) يعني دا خلق په مقتضٰى د جود او کرم زموږ دی.

**پوهه:** چي ايدي جمع د يد ده چي موږ يې لاس بولو چونکه خدای ج جسم نه دی، نو ترجمه د ايت باجماع اهل التفسير دا ده چي موږ يې توتې يعني د ټولو اعضاؤ د بدن او تصرف د احداث د هغو کړي بالذات من غير مدخل لغيرنا فيه لاخلقًا ولاكسبًا، نو دا کلام استعاره تمثيليه ده په معنى مذکور کي، استعاره تمثيليه على بين في علم البيان، چي تشبيه د يو هيئت منتزعه د امور متعدده وُ څخه ده بل هيئت منتزعه له امورو متعددو څخه او په الفاظ او مفرداتو کي هيڅ مجاز نه وي. والمشهور في مثالها يو سړی چي په يو کار کي متردد او متحير پر ځای ناست وي په ګرېوان د فکر يې سر د ننه کړی وي بل سړی چي دده هيئت او تحير ته وګوري او دده ټوله حالات

ملاحظه کړي داسي ورته وايي: رئيتک تقدم رجلاً وتؤخر اخرى ماته وليدلې چي يو ګام به دي دمخه کښېښووى او بل به دي وروسته، نو په وينا کي د سړي استعاره تمثيليه يعني هيئت منتزعه له حال څخه د متفکر او متحير چي ګاهي يې سرپر ځنګنو کښېښو او ګاهي يې يوه خوا او بله خوا کتل مشابه کړې ده له حال سره د هغه چا چي يو ګام پر مخ ولاړ سي بيرته بل ګام تر شا راسي، يعني ګاهي اراده دي سي ولاړ سه ګاهي ګاهي بيرته فسخ سي، نو هغه متفکر خو پر ځای ناست ؤ، لکن دده له شان څخه تحير او سرګرداني منتزع کېدل، نو ځکه دا دده حال يې مشابه کړی د حال سره د هغه چا چي تقدم رجلاً وتؤخر اخرى حالت مشترکه يې تحير او سرګرداني ده، په آيت کي هم خلق الانعام چي خدای ﷻ بې معاونت د غير لاخلقًا ولاکسبًا مشابه د يو سړي د کاره سره چي په خپلو لاسو يو کار کوي بدون المعاون والاجير، حسين کاشفي رحمه الله دد ې آيت په ترجمه کي داسي ويلي دي: ميان مردمان مثاليست هر کاری که تنها کند گويند من اين مهم بدست ساخته ام ديگری درساختن ياری نه داده اگرچه آن مهم کار دست نباشد.

قال راغب رحمه الله الايدي جمع اليد بمعنى الجارحة المخصوصة خص اليد لفظ لقصور عقولنا عن درک خلق الله بدون المشارکة، واليد اجل الجوارح التي يتولى بها الفعل فيما بيننا فلهذا خص اليد بالذکر، او عتبي رحمه الله وايي چي: ايدي هنا کناية عن القدرة والقوة.

**درويش وايي:** چي معاني مذکوره د مفسرينو تولي يو له بل سره نژدې دي. والاحسن الاستعارة التمثيلية، کما مر وان کان في فهمها انغلاق.

**پوښته:** چي (انعامًا) مفعول به د خلقنا دی.

**پوښتنه:** مفعول به خو بلا واسطه حرف دی نو مفعول بواسطه حرف الجر يعني لهم ومما ولي تر مقدم راوړی؟

**ځواب:** اعتناء بالمقدم وتشويقًا الى المتأخر.

**پوښته:** چي مراد له انعام څخه اوښ، اوښه، غويی، غوا، پسه، مېږ، اوزګری او بزه دي.

**سوال:** نور خوراکي حيوانات لکه چرګ، چرګه او نور، نو د تخصيص د انعامو وجه څه ده؟

**خواب:** په انعامو کي منافع ډېري دي او عجائب وُ قدرت د خداى ج پکښي ښکاره دى، وهذا کقوله تعالى: افلا ينظرون الى الابل کيف خلقت.

(فهم لها مالکون) نو دوى د دغو انعامو مالکان دي چي هر تصرف پکښي کوي کولاى يې سي، دا ټوله په تسخير د خداى جل جلاله دي د غو انعامو لره و مالکانو ته ددوى، مثلاً کوچني طفل اوښ تر مهار نيولى وي اوښ ورسره روان وي، که يې پر ډېره چوکوي چوکېږي، وهکذا غويى چي طاقتور حيوان دى کوچني تر جلو نيولى وي غويى ورسره روان وي، وهکذا که تسخير د خداى ج نه وي نو چغال يا ګيدړه چي ضعيف دى تر اوښ او غوايي خلک يې ولي په خپل تصرف کي نسي راوستلاى؟.

وَذَلَّلْنٰهَا لَهُمْ فَمِنْهَا رَكُوبُهُمْ وَمِنْهَا يَأْكُلُونَ ﴿۷۲﴾

مو ږ مسخر کړ خولي دي دغه انعام دوى لره (تر لوى او کوچني پوري کما ذکرنا) بعض د انعامو ددوى مرکوب دي يعني پر سپرېږي (والمراد به الابل لانه في العادة مرکوب الناس بخلاف البقر فانه للحراثة دون الرکوب) او د دغو انعامو له غوښو څخه دوى خورک کوي.

**فائده:** کلمه د من دلته ابتدائيه ده د تبعيض لپاره نه ده، ولي چي د ټولو انعامو غوښو حلالي دي، والحرمة بعارض الموت حتف انفه و غير ذالک.

وَلَهُمْ فِيهَا مَنَافِعُ وَمَشَارِبُ أَفَلَا يَشْكُرُونَ ﴿۷۳﴾

او دوى لره په دغو انعامو کي نور منافع هم سته (لکه پوستکي، وړى، د پسو، يا اوبار د اوښانو يا حرث په غويو کي يا نسل يا شيدې ومستې او کوچي) مشارب جمع د مشربة ده په معنى د موضع الشرب يا مصدر دى يعني چي شيدې څښي) آيا دوى شکر د دغو نعمتو د خداى جل جلاله نه وايي.

**پوښتنه:** چي ان الهمزة للانکار والفاء للعطف على محذوف تقديره اينکرون فلا يشکرون وقد مر امثاله مکرراً.

وَاتَّخَذُوا مِنْ دُونِ اللَّهِ آلِهَةً لَعَلَّهُمْ يُنْصَرُونَ ﴿۷۴﴾

او دوى ګرځولي دي يعني د ځانو لپاره ماسوى له خداى ج څخه معبودات چي اصنام دي او شرکاء د خداى جل جلاله يې بولي په عبادت کي وروسته تر دې چي دوى

قدرت باهره او نعم متكاثره د خداى ﷻ كما مرت في الآيات السابقة د خداى ﷻ يې وليدل او هم په پوه سوه چي په دغو نعمتو کي زموږ خدايان لاخلقًا ولاكسبًا دخل نه لري بلکي خداى ج دی متفرد په دغو نعمتو کي.

**پوه سه:** چي دا جمله عطف ده پر مضمون د خلقنالهم يعني انعمنا عليهم وهم اتخذوا غيرنا آلهة، په حديث شريف کي چي بيهقي يې روايت کړی دی له ابی الدرداء رض څخه چي ده وويل قال رسول الله ﷺ قال الله ﷻ چي زه، جن او انس په لوی موضوع کي مو سره اختلاف دی: هغه دا چي زه دوی پيدا کوم ويعبدوا غيري، او زه دوی ته رزق ورکوم او دوی شکر د غير وايي.

(لعلهم ينصرون) يعني په داسي حال کي چي دوی اميد ددې لري چي دا بتان به ددوی سره کومک فيما يهمهم من الامور وکړي، والامر بالعكس، نو لعل لپاره د ترجي دی، او دا جمله حال ده له فاعل څخه د اتخذوا كما اشرنا اليه في ترجمة الآية.

لَا يَسْتَطِيعُونَ نَصْرَهُمْ وَهُمْ لَهُمْ جُندٌ مُّحْضَرُونَ ﴿٧٥﴾

د بتان طاقت نه لري ددوی د کومک چي له عذابه د خداي ج دې خلاص کړي (كما زعموا ان هؤلاء يعني الاصنام شفعائنا عند الله) او دوی کفار د خپلو خدايانو لپاره کمر بسته لښکر دی لپاره د حفاظت ددې معبوداتو چي دوی دا خپل خدايان په عطرياتو مالش کړه مچان پر راغونډ سوه دوی به مچان څني شړل، کريمه: وان يسلبهم الذباب لايستنقذونه الآية، نو ددې خدايانو به دوی ته څه خير ورسېږي او کوم شر به څني دفع کړي.

فَلَا يَحْزُنكَ قَوْلُهُمْ ۘ إِنَّا نَعْلَمُ مَا يُسِرُّونَ وَمَا يُعْلِنُونَ ﴿٧٦﴾

تا دي په غم کي نه کړي واقع (الفاء للسببية اى اذا سمعت وعيد الله لهم فلا يحزنك) ددوی خبري د خداى ج په باره کي (بالاشراك او ستا په باره کي بالتكذيب بقولهم لست مرسلاً) موږ په تحقيق خبر يو چي دوی په زړو کي پټ لري عقائد باطله (او ستا سره عداوت بلانهاية) او چي دوی په ښکاره کوي من الاقوال الشنيعة د خداى ج په باره کي، چي زموږ معبودات د خداى شريکان دي او ستا په باره کي کاهن، شاعر، مجنون او مفتر، ددې مطلب دا دی چي خداى ﷻ به کامله جزاء و دوی ته ورکړي.

**پوه سه:** چي جمله انا نعلم تعليل دی لقوله فلا يحزنک پر طور د جملة مستأنفې... بيت

باشكار ونهان هر چه گفتی وكردی..... جزاء دهد بتو داناى آشكار ونهان

## اَوَلَمۡ يَرَ الۡاِنۡسَانُ

آيا نه وينى يعني علم نه لري انسان.

**پوه سه:** چي دا كلام مستأنف دی، راوړل سوی دی لپاره د بطلان د انكار د مشركانو د بعث بعد الموت څخه لكه چي ما سبق لپاره د بطلان د اشراک د دوی بالله بعد ما عاينوا فيما ايديهم مايوجب التوحيد والاسلام، والواو للعطف على مقدور والهمزة للانكار ونفي النفي اثبات. والرؤية علمية والنطفة الماء الصافي الابيض ويعبر بها عن ماء الرجل الخارج من صلبه وقت الجماع وغيره.

**روايت:** يو جماعت د قريشو يوه ورځ سره راغونډ سو يعني ابی بن خلف، وهب بن حذافه، ابوجهل، عاص بن وائل او ليد بن المغيرة، نو ابی بن خلف وويل الاترون الى مايقول محمد ان الله يبعث الاموات ثم قال واللات والعزٰی (زما دي قسم وي په لات او عزٰی سره) زه به ورځم وده ته او په دغه خبره كي به يې ملامت كوم، يعني البعث بعد الموت، نو يو زوړ هډوكی يې راوړی د عليه الصلوة والسلام ومخ ته يې په لاس ميده ميده كړی، او عليه الصلوة والسلام ته يې داسي وويل يا محمد ان الله يحی هذا بعد ما رم، عليه الصلوة والسلام ورته وويل: نعم ويبعثک الله ويدخلک جهنم فنزلت هذه الآية للانكار عن البعث بعد الموت. لكن دا آيت يوازي لپاره د رد د ابی خلف نه دی بلكې دا آيت صالح دی د انكار على كل من ينكر البعث بعد الموت لان العلماء بالاجماع، قالوا ان العبرة لعموم اللفظ لا لخصوص المورد، مفسر قديم الحسيني رح ميگويند: آيا نديد وندانست ابی بن خلف وغير او آنرا كه ما بياريم اورا از اب مهين در قرار مكين انتهى.

## اَنَّا خَلَقۡنٰهُ مِنۡ نُّطۡفَةٍ فَاِذَا هُوَ خَصِيۡمٌ مُّبِيۡنٌ ﴿۷۷﴾

قد مر تفسير النطفة چي موږ دی پيدا كړی ؤ له نطفې څخه (يعني دا نقشبندي د انسان سره د ټولو اعضاؤ اولا پر او بو سوي) "فاذا هو" الفاء للعطف واذا

للمفاجاة، والمعنى خلقناه من نطفة ففاجاء وقت خصومته ومجادلته چې هغه ښکاره مجادله بالباطل ده ولايريد هو تحقيق الحق، او حق هم ظاهر دى يعني البعث بعد الموت دى، ولې په اول خلق د نطفه څخه خو انسان كافر اقراره دى وينكر ماهو اهون من ابتداء الخلق من ماء وهو الاعادة ولو كان من تراب، ولې چې د اوبو خونه چا نه ده ليدلې او نه پر اوبو داسې زيبا لكه د انسان صورت او اعضاء نقشبندي چا كړې ده، او د خاورو خونې خو ډيرې دي، مفسرين وايي؛ وفيه تقبيح بليغ له واهل الكفر ته حيث اختاروا الكفر في مقابلة النعمة التي لامزيد عليه وهو خلقه من اخس شيئ شريفًا مكرمًا، يعني انسان شريفًا مكرمًا بالنسبة الى سائر الحيوانات.

**درويش وايي:** ومقابلة النعمة العظمى لله وجل بهذا الخصام المبين يناسبه هذان البيتان:

اعلمه الرماية كل يوم ..... فلما اشتد ساعده رماني

ترجمه: ما ورزده كول يعني خپل شاگرد ته تير اندازي يعني غشي ويشتل، چې بازو يې محكمه سو يعني تير اندازي يې زما څخه زده كړه، اخير يې زه په غشي وويشتلم.

اعلمه القوافي كل حين .... فلما قال قافية هجاني

ترجمه: ما وروښوول يعني خپل شاگرد ته علم د قافيه يعني د شعر ويلو هر وخت نو چې دا علم ده زده كړى په اول شعر كې زما هجو يعني غيبت بيان كړى.

وما قيل ايضًا.

لقد ربيت جروا كل حين .... فلما كان كلبًا عض رجلى

ترجمه: په تحقيق ما تربيه كاوه چې دى كوترى ؤ هر وخت چې دى لوى سپى سو وه يې دا رله پښه زما.

## وَضَرَبَ لَنَا مَثَلًا وَّنَسِيَ خَلْقَهٗ

او دې كافر بيان كړى (چې ابى بن خلف ؤ) زمور لپاره يو امر عجيب (چې عبارت دى د نفي د قدرت پر احياء الموتى باندې) او هېر يې دى خپل خلق له اوبو څخه د مني، او سره د دې چې پيدا كول له اوبو څخه اغرب دى تر احياء العظم چې ابى بن خلف هډوكى د عليه الصلوة والسلام په حضور كې ميده ميده كړى او دا يې ورته وويل:

قَالَ مَنْ يُّحْيِ الْعِظَامَ وَهِيَ رَمِيْمٌ ﴿۷۸﴾

وويل هغه څوک به ژوندي کوي هډوکي په داسي حال کي چي رميم يعني بوسيده وراسته وي.

**درويش وايي:** چي په ظاهر ددې آيت کريمه دليل ويلی دی هغه چا چي هډوکي ته حيات وايي او پر دې يې دا مسئله بناء کړې ده چي هډوکي د ميتة مردار دي که په لړو اوبو کي ولوېږي يعني عشر في عشر نه وي هغه اوبه مرداريږي واليه ذهب مالک والشافعي واحمد رحمهم الله او زموږ د حنيفيانو رحمهم الله مذهب دادی چي هډوکی حيات نه لري فلا يقولون بنجاسته، او دوی حنيفيان وايي چي مراد له احياء العظام څخه په دې آيت کي ردها الی ما کانت عليه من الغضاضة والرطوبة في بدن حي حساس.

**مسئله:** اختلف العلماء في آدمي مات هل يتنجس بالموت، فقال ابو حنيفه رحمه الله يتنجس بالموت لانه دموي الا انه يطهر بالغسل کرامة له وتکره الصلوة عليه في المسجد، وقال الشافعي واحمد رحمهما الله لايتنجس بالموت ولاتکره الصلوة عليه في المسجد کما هو المعتاد في الحرمين الشريفين، قلنا الصلوة في الحرمين الشريفين لاجل الضرورة فلايقاس عليهما المساجد الاخر.

قُلْ يُحْيِيْهَا الَّذِيْٓ اَنْشَاَهَآ اَوَّلَ مَرَّةٍ ۭ وَهُوَ بِكُلِّ خَلْقٍ عَلِيْمُۨ ﴿۷۹﴾

ته ورته ووايه يعني يا محمد (ﷺ) چي ژوندي به کړي دغه اموات هغه څوک يعني رب جل جلاله چي دوی پيدا کړي وه اول وار يعني د امهاتو په رحمو کي، ولي چي قدرت د خدای تعالی کما کانت باقي دی لاستحالة العجز عليه تعالی او ماده د امواتو پر خپل قابليت پاته ده.

**پوه سه:** چي خلق مصدر دی په معنی د مخلوق دی، دا جمله (وهو بکل آه) حال ده له فاعل څخه د يحيي.

**فائده:** عليم صيغه د مبالغې ده يعني خدای جل جلاله ښه خبر دی په تفاصيلو د مخلوقاتو وکيفيت خلقها فيعلم اجزاء الاشخاص چي په مځکه کي غائب وي او اصول او فروع او ځايونه ددوی ټوله و خدای جل جلاله ته معلوم وي، او ضم د بعض د

بل بعض ته علی النمط السابق هم خدای ج ته معلوم دی او اعراض او قوی چې په دې اجسامو کې وه هم خدای ج ته ښه معلوم دی فکیف یمتنع اعادتها کما مر.

## الَّذِیْ جَعَلَ لَکُمْ مِّنَ الشَّجَرِ الْاَخْضَرِ نَارًا

**پوښتنه:** چې الذي یا بدل دی د موصول سابق څخه یا خبر دی د مبتداء محذوفې ای هو الذي آه.

**درویش وایي:** چې په دې آیت سره استدلال دی پر عظیم قدرت د خدای ج او تنبیه ده پر احیاء الاموات بقدرته تعالی که څه هم د کفارو له عقلو څخه لرې وه بلکې ممتنع یې بلل، نو د دې آیت په مضمون کې خدای ج د خپل لوی بدیع قدرت بیان کوي چې له عقل څخه ډېر لرې دی او کفار یې په خپلو سترګو هم ویني انکار نه ځني کوي فکیف ینکرون احیاء الموتٰی؟

ترجمه د دې داده ابن عباس رضی الله عنه وایي چې دوې درختې دي چې یوې ته المرخ وایي او بلې ته العفار وایي چې سرې د هر یوې درختې یو ښاخ پرې کړي لکه د وه مسواکان چې هغه شنه وي او په وخت کې د قطع او به تر څڅېږي، او مرخ په عفار پورې کلک ومښي اور ځني راوځي.

**فائده:** دا دوې درختې په ډېرو غرو او شېلو کې د عربو موجودې دي چې مسافرین له ځان سره وړي هر ځای چې د اور ضرورت ورته پیدا سو د مرخ او عفار څخه استفاده کوي یعنې پر مځکه لرګي او خاشې کښېږدي او مرخ او عفار سره ومږي د اور بڅرکې په هغه لرګو او خاشو کې ومښلي هغه لرګي او خاشې اور واخلي پر هغه اور مثلاً دېګ باندې کړي غوښې یا بل شی پوخ کړي، حکماء وایي چې په هره درخته کې اور خو سته الا العناب لکن د اور بلولو خاصیت خدای ج په خپل قدرت د مرخ او عفار په برخه کړی دی.

## فَاِذَآ اَنْتُمْ مِّنْهُ تُوْقِدُوْنَ

نو نا بېره تاسې د هغه شجر اخضر څخه اور بلوي کما مر کلمه د فاء لپاره د مفاجات ده او تاسې په دې کې فکر نه وهئ چې دا ور د دې دوو ښاخو د مرخ او عفار څرنګه راووتی چې او په هم تر څڅېږي چې اور او اوبه سره ضد هم دي، نو

ولي تاسي کافران احیاء الاموات د خدای ﷻ له قدرت څخه پوره نه بولي.

**فائده:** مرغ نر دی او عفار ښځه ده، ځکه مرغ به لوړ وي او عفار به لاندې وي کما في حالة الجماع بین الذکر والانثیٰ، کذا في روح المعاني.

اَوَلَيْسَ الَّذِىْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِقٰدِرٍ عَلٰٓى اَنْ يَّخْلُقَ مِثْلَهُمْ

آیا نه دی هغه څوک چي پیدا کړي یې دي اسمانونه او مځکه.

**پوه سه:** چي همزه لپاره د انکار دی وانکار النفي ایجاب، او کلمه د واو لپاره د عطف ده پر مقدر چي مقام یې تقاضیٰ کوي، نو همزه د انکار که څه هم ظاهرًا داخل پر حرف دی لکنها في الاصل داخل دی پر حرف نفي یعني لیس قصدًا تاچي هغه پورته اثبات چي واو دی، وحاصل الآیة الیس القادر المطلق الذی خلق الاناسي اول مرة کمامر او لیس الذي جعل لکم من الشجر الاخصر نارًا اولیس الذي خلق السمٰوات ای الاحرام العلویة یعني مع مافیها من الشمس والقمر والکواکب وغیرها او مځکه ای الاجسام السفلیة یعني وما علیها من الحیوانات والاشجار والانهار وغیرها مع عظم جرمها وعظم شانها.

**فائده:** (قادر) که څه هم لفظًا مجرور دی لکن محلاً منصوب دی لانه خبر لیس.

(علی ان یخلق مثلهم) پر دې باندي چي پیدا دي کړي یعني په اخرت کي مثل د انسانانو في الصغر والحقارة یعني بالنسبة ومځکه او اسمانو ته، ویعیدهم احیاء لکه چي کافران چي به ویل من یحي العظام وهي رمیم، فان بداهة العقل چي خالي د تکبر او عناد څخه وي شاهد دی پر دې چي پیدا کونکی دی د اسمانو او مځکي، پر خلق د انسانانو ښه ترا قادر دی کما قال الله ﷻ لخلق السمٰوات والارض اکبر من خلق الناس او سره دد دې چي مشرکان په دې اقرار کوي چي خالق د سمٰوات والارض خدای ﷻ دی ولیس الاهو.

بَلٰى وَهُوَ الْخَلّٰقُ الْعَلِيْمُ ﴿۸۱﴾

(بلیٰ) ځواب دی له جانب څخه د خدای ﷻ او تصریح د بما افاده الاستفهام الانکاري من تقریر مابعد النفي او اعلان دد دې چي ځواب خو داغه متعین که څه هم مشرکان په خوله نطق نه په کوي مخافة الالزام) (وهو الخلاق) صیغه د مبالغې

يعني يخلق خلقا بعد خلق (العليم) بجميع المخلوقات، دا دوه سره د مبتداء عطف دى پر مضمون د بلى فافهم.

إِنَّمَآ أَمۡرُهُۥٓ إِذَآ أَرَادَ شَيۡـًٔا أَن يَقُولَ لَهُۥ كُن فَيَكُونُ ۝٨٢

په تحقيق امر د هغه اى شانه تعالى (شيئا) اى خلق شيئ من الاشياء (ان يقول له كن) اى يتعلق به قدرته، نو دا سوال نه پيدا كيږي چي خطاب و معدوم ته خو نه دى روا (فيكون) اى فيوجد (نو كلمه د يكون تامه ده)

**بوه سه:** چي بعض قاريانو يې په نصب سره وايي عطف يې پر يقول بولي، او جمهور قراء يې په رفع سره وايي تقديره يې داسي بولي فهو يكون من عطف الجملة الاسمية (اى فهو يكون) على الاسمية المتقدمة (يعني قوله انما امره ان يقول له كن) ابو منصور الماتريدي رحمه الله وايي چي دا يو مثال دى د تاثير د قدرت د خداى جل جلاله فيما اراده فيما امر الآمر المطاع للمامور المطيع في سرعة، حصول المامور به من غير توقف على شيئ دى وايي چي لا وجه لحمل الكلام على الحقيقة اذ ليس هناك قول ولا امر ولا مامور به، ولي چي امر كه په حال كي د وجود د مكون وي فلا وجه للامر وان كان في حال عدمه اذ لا معنى لان يؤمر المعدوم بان يوجد نفسه، وهذا معنى لقول البيضاوي هذا تمثيل لتأثير قدرته تعالى في مراده تعالى بامر المطاع للمطيع في حصول المأمور به من غير توقف وامتناع وافتقار الى مراولة العمل واستعمال آلة قطعا لمادة الشبهة وهو قياس الغائب اى قدرته تعالى على المشاهد اى قدرة الخلق (اى الامر المطاع والمأمور المطيع)

فَسُبۡحَٰنَ ٱلَّذِي بِيَدِهِۦ مَلَكُوتُ كُلِّ شَيۡءٖ وَإِلَيۡهِ تُرۡجَعُونَ ۝٨٣

(فسبحن) مصدر د فعل محذوف دى سبحت سبحانا والفاء للسببية يعني اذ اعلمتم انه تعالى خلق الانسان من نطفة وهو قادر على ان يحي العظام وانه تعالى اذا اراد شيئا فانما يقول له كن فيكون فسبحوا ايها المؤمنون.

ترجمه: پاكي ده د هر عيب او نقصان څخه هغه چا لره چي په قدرت كي د هغه لوى سلطنت د هر شي يعني من العلويات ومافيها والسفليات و عليها او هغه خداى ج ته لا الى غيره ته تاسي راجع كړل كيږئ يعني په ورځ د قيامت.

**پوه سه:** چي ملكوت او رحموت او رهبوت او جبروت مصادر اى زيات كړل سوي په دوى كي واو او تاء لپاره د مبالغې في الملک والرحمة والرهبة والجبر يعني الكبرياء.

خواص سورة يٰسٓ: عن يسار ﷺ قال قال رسول الله ﷺ اقرؤا على موتاكم (يعني من قريب الموت يعني چي زكندن يې وي) يٰسٓ قلب القرآن لايقرئها رجل (يعني ولا امرئة لانها تبع للرجل) يريد بها الله والدار الآخرة الا غفر له اقرؤها على موتاكم ذكره الجزري رحمه الله في الحصن الحصين، وفي الحديث الطويل من قرء سورة يٰسٓ يريد بها وجه الله غفر الله له واعطى له من الاجر كانما قرء القرآن ثنتين وعشرين مرة (اى بدون يٰسٓ والا يلزم تفضيل الشئ على نفسه ۲۲ مرة فافهم، او هر مسلمان چي وويل سي سورت يٰسٓ اذا نزل ملک الموت نزل بكل حرف منها (۱۰) ملائكة يقومون بين يديه صفوفاً. دعاء ورته كوي او دعاء د بخښني د خداى ج څخه ورته غواړي او دغه ملكي و ځاى ته د غسل او جنازې ته د هغه حاضريږي الى اخير الحديث.

**درويش وايي:** چي په فضيلت او خواصو كي د سورت يٰسٓ مظهري رحمه الله ډېر احاديث راوړي دي، وروسته يې حكم د ضعف السند پر كړى دى.

**فائده:** ابن الفريس د سعيد بن جبير رحمه الله څخه په روايت چي ده به پر هر پېراني سړي باندي سورت يٰسٓ ووايه هغه به جوړ سو، په مستدرک كي د ابى جعفر محمد بن علي څخه روايت نقل كړى دى چي كه په زړه كي د چا قسوة ؤ يعني غلظت، يٰسٓ دي تبوله په يوه لوښي په زعفرانو وليكي او په اوبو دي هغه لوښى پرېولي ودې څيښي زړه به يې نرم سي، او دغه رنګه د يحيٰى بن ابى كثير څخه روايت چي كه چا على الصباح يٰسٓ ووايه تر ماښامه به خوشحاله وي، او كه يې ماښام ووايه تر سهاره به خوشحاله وي.

الحمد لله على توفيقه لهذا العبد الجهول بتفسير سورة يٰسٓ والصلوة والسلام على افضل الرسل سيدنا محمد وعلى آله وصحبه وذريته اجمعين.

تاريخ الفراغ وقت الظهر من يوم الاحد غرة الشهر الحرام ذى القعدة (۱۴۳۱) هـ ق، واسأل الله عزوجل لتوفيق بقية سورة القرآن المجيد الى اخيرها وما ذالک على الله بعزيز، والآن حال ان اشرع في تفسير سورة الصافات بعونه تعالى يا رب تممه بالخير.

سورة الصّٰفّٰت مكية وهي مائة وثمانون آية وخمس ركوعات
بسم الله الرحمن الرحيم

رب يسرها لي وتممها بالخير والعافية.

وَالصّٰٓفّٰتِ صَفًّا ﴿١﴾

الواو للقسم، والصافات. جمع صافة بمعنى جماعة فالصافات بمعنى جماعات الصافات.

**پوهه**: چي خداى ﷻ قسم واخستى بالملائكة الذين يصفون للعبادة في السماء وفي الحديث الصحيح عن جابر بن سمرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ الا تصفون كما تصف الملائكة عند ربها (لكه ملكي چي په صف دريږي و خداى ﷻ ته) فقلنا يا رسول الله كيف تصف الملائكة عند ربها؟ قال يتمون الصفوف (يعني چي په اول صف كي ځاى وي ترشا نه دريږي، وهكذا الصف الثاني والثالث الى ان يتم الصفوف) ويتراصون في الصف (يعني په صف كي فرجه نه پريږدي جوت سره دريږي) كذا قال ابن عباس والحسن وقتادة رحمهم الله، او بعض مفسرين وايي چي مراد هغه ملكي دي چي وزرونه يې خلاص او په صف صف ولاړي وي په هواء حتى يأمر الله ما يريد. او بعض مفسرين وايي چي مراد ځني مرغان دي كما في قوله تعالى والطير صافات.

**درويش وايي**: چي دا تفسير د وروستنه سياق سره برابر نه دى، له عمر بن الخطاب رضي الله عنه څخه روايت دى چي: ده به اراده د افتتاح الصلوة وكړه قال: استوا (صفونه برابر كړي) تقدم يا فلان وتأخر يا فلان (يعني پس و پيش به ولاړوه ان الله ﷻ يرى لكم بالملائكة اسوة يعني مقتدى بهم) يقول والصافات صفًا.

فَالزّٰجِرٰتِ زَجْرًا ﴿٢﴾ فَالتّٰلِيٰتِ ذِكْرًا ﴿٣﴾

يا دي په هغو ملكو قسم وي چي وريځي شړي تر ځايه د اوربنت، يا هغه ملكي چي خلگ منع كوي له گنهو څخه بالهام الخير في قلوبهم، او يا شيطان منع كوي له تعرض څخه ودوى ته، او قتاده رحمه الله وايي چي مراد ځني هغه آيات د قرآن دي چي مسلمانان زجر او نهي كوي له گنهو څخه چي په اصطلاح ودې ته زواجر القرآن وايي.
(فالتاليات ذكرًا) يا قسم دى په هغو ملكو چي ذكر د خداى ﷻ كوي، او آيات د كتبو سماويه و و انبياء عليهم السلام ته راوړي.

**فائده:** ذکرًا منصوب دی مفعول به د التاليات دی يا مفعول مطلق لـه معنی
څخه د التاليات يا قسم دی په هغو علماؤ چي خلګ زجر کوي د کفر او سيئاتو
څخه بالحجج والبينـات التـالين آيـات ربهـم رفيـع الـدرجات او يا قـسم دی په
غازيانو سره في سبيل الله چي په صف ولاړ وي په مقابل کي د کفـارو کانهم بنيان
مرصوص ومع ذالک لايشغلهم مبارزة عن ذکر الله تعالی واقامة الصلوة.

**درويش وايي:** چي ابو مسلم الخراساني وايي: چي اراده د ملکو د الصافات
الزاجرات التاليات څخه ممنوع دی، ولي چي درې سره خو جموع مؤنثه دي او
ملکي خو مؤنـث نـه دي؟ والجـواب عنـه: انـه ان اراد التانيـث اللفظي فبرائـة
الملائکة عنه ممنوع، کيف والملائکة مسمون بهذا الاسم في الاحاديث الکريمة
واجمع الامة على ذالک وان اراد برائتهم عن التانيث الحقيقي فمسلم برائتهم عن
ذالـک لکـن الـصافات والزاجرات والتاليـات لاتقتـضی التانيـث الحقيقي لان
الصافات بمعنی طائفة صافة، وطائفـة زاجرة وطائفة تالية او بمعنی جماعـة في
الثلثـة فهذه الالفـاظ فـي المعنـی والتقـدير جمـع الجمـع کما لايخفـی فالتانيـث
بذالک الاعتبار بلکي تانيث د مفرد د ملکي په اعتبار د نفس يا ذات روا دی،
فافهم هداک الله لفهم دقائق القرآن العزيز.

إِنَّ إِلَٰهَكُمْ لَوَاحِدٌ ﴿٤﴾

(دا د قسم جواب دی) په تحقيق معبود بالحق ستاسي يا اهل مکه يو دی،
وهذا رد لقول اهل مکة اجعـل (ای محمد ﷺ) الآلهـة الهًا واحدًا ان هذا لـشيئ
عجاب (دا يوه عجيبه خبره ده چي يوازي د مکې درې سوه شپېته (۳۶۰) خدايان
دي محمد (ﷺ) د ټوله عـالم علوي او سفلي يو خدای بولي؟ حاصل د جواب
دادی چي صرف په نامه خدايان خو بېشکه ډېر دي او يو په حقيقت کي خدای دی
هغه يو دی في الذات والصفات ليس الا.

رَّبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا وَرَبُّ الْمَشَارِقِ ﴿٥﴾

**بوه سه:** چي رب يا خبر ثاني دی د ان يا خبر د مبتداء محذوفي دی، والمعنی
مالک دی او خالق دی د اسمانو او د مځکي او چي په منځ کي د اسمانو او مځکي

دي چې کائنات الجو يې بولي لکه وريځ، پيلبو، صاعقة وغيرها.

**فائده:** د مشارق سره يې رب را وګرځاوه لانها ليست من جنس ماقبلها.

**يوه سه:** چې مراد له مشارق څخه مشارق د ټولو ستورو دي يعني ځايونه د راختلو د ټولو ستورو دي، يا مشارق د شمس په کال شمسي کي چې (۳۶۵) مطلع دي چې لمر هر ورځ تر يوه يوه مطلع راخيژي وبحسبها يختلف المغارب ولهذا لم يذكر المغارب او سره ددې چې شرق ادل دی پر قدرت الهي وانفع في النعمة.

**فائده:** د قرآن مبارک په بل ځای کي رب المشرقين ورب المغربين راغلي دي په صيغه د تثنيه، نو مراد له هغه څخه مشارق د صيف (دوبي) او شتا (ژمي) دي ومغاربهما، او په بل ځای کي رب المشرق والمغرب راغلی دی، نو هورې مراد جهت د مشرق او مغرب دی.

**فائده مهمه:** مظهري ويلي دي کمامر چې سنه شمسيه (۳۶۵) او روح البيان وايي (۳۶۰) مشارق ده، ولا منافات بينهما، ولي چې د رياضي په کتابو کي وايي چې شمسي کال په حقيقت کي (۳۶۰) سره د کسر چې د کسر مقدار يې تخمينًا پنځه ورځي دی، نو روح البيان هغه کسر ساقط کړی دی (۳۶۰) يې ويلي دي، او مظهري رح هغه کسر معتبر کړی دی (۳۶۵) يې ويلي دي والله الموفق.

**فائده:** ان الٰهكم لواحد، جواب د قسم دی.

**سوال:** ددې جواب و قسم ته حاجت څه ؤ، ولي چې دا خو كما عرفت خبري دي د مشركينو سره د مکې هغه خو منکر د توحيد د معبود دي؟

**ځواب:** د عربو عادت دادی چې هغه خبره چې دوی اهتمام په کوي د مخه قسم پر اخلي، نو له هم دې کبله دا جواب يعني ان الٰهكم لواحد مهتم بالشان ؤ خدای ج موافق د عربو د رواج سره په درې قسمه سره مسبوق وګرځاوه.

**يوه سه:** چې دا قول د خدای ﷻ رب السمٰوٰت الخ اشاره و برهان ته ده پر وحدت د صانع، وحاصل البرهان ان وجودها على النمط البديع اوضح دليل على وحدة الصانع ﷻ بل في كل ذرة من ذرات العالم دليل على ذالک.. سعدي رح:

برگ درختان سبز در نظر هوشيار ..... هر ورقي دفتريست معرفت کردگار

إِنَّا زَيَّنَّا السَّمَاءَ الدُّنْيَا بِزِينَةٍ الْكَوَاكِبِ ﴿٦﴾

موږ ښائسته کړې دی اسمان نژدې تاسې ته، واما بالنسبة الى العرش فهي السماء البعدي، نو دنيا مؤنث د ادنى دى من الدنو بمعنى القرب.

**فائده:** په دې آيت کې التفات له غيبت څخه يعني في قوله تعالى ان الهكم لواحد الآية الى التكلم يعني انا زينا آه.

**پوه سه:** چې جمهور قرا رحمهم الله په اضافت د زينة و کواکب ته وايي (يعني زينة تنوين نه ورکوي) فالاضافة بيانية اى بزينة هي الكواكب، او يعقوب، همزه او حفص رح يې په تنوين د زينت وايي وجر الكواكب على ان الكواكب بدل من الزينة اى بزينة هي الكواكب.

وَحِفْظًا مِّن كُلِّ شَيْطَانٍ مَّارِدٍ ﴿٧﴾

موږ محفوظ کړې دی له هر شيطان څخه چې سرکښه وي له اطاعت څخه يرمي چې ويشتل کيږي هغه شيطان په وخت کې د استراق السمع په شهب سره.

**پوه سه:** چې حفظًا منصوب دی مفعول مطلق دی د فعل محذوف اى حفظناها حفظًا.

**درويش وايي:** چې دا آيت معركة الآراء دی د مفسرينو تر منځ، مظهري رح وايي چې دا آيت پر دې دلالت کوي چې ستوري ټول په اول اسمان کې دي او قاضي بيضاوي رح وايي چې ثوابت ستوري په اوومه کره کې دي چې کرسي يې بولي بلسان اهل الشرع، او سپوږمۍ په اول اسمان کې ده، او دا نور ستوري په شپږو اسمانو کې دي چې په منځ کې فلک قمر او فلک الثوابة يعني عطارد په دوهم اسمان کې دي، او زهره په دريم اسمان کې ده او شمس په څلورم اسمان کې دی، او مريخ په پنځم اسمان کې دی او مشتري په شپږم اسمان کې دی، قاضي بيضاوي وايي چې که دا خبره ثابته سي د آيت سره د انا زينا الخ منافات نه لري فان اهل الارض يرونها باسرها کجواهر مشرقة على سطح سماء الدنيا الازرق باشكال مختلفة انتهى، روح المعاني وايي چې پر دې باندې داسې دليل نسته چې يقين دې فائده کوي وعلى فرض صحته لکه اهل هيئت يعني رياضيين چې وايي د آيت مذکوره سره منافات هم نه لري يکفى لصحته کون السماء الدنيا مزينة بالكواكب

كونها كذالك في رأ العين (كما قال البيضاوي) انتهى قول روح المعاني، او روح البيان وايي وكون الكواكب زينة للسماء الدنيا لايقتضى كونها مركوزة في السماء الدنيا ولاينافي كون بعضها فيما فوقها اى السماء الدنيا من السمٰوٰت لان السمٰوٰت اذا كانت شفافة واجرامًا صافية فالكواكب سواء كانت في السماء الدنيا او في سماوات اخرىٰ فهي لابد ان تظهر في السماء الدنيا ويلوح منها فتكون سماء الدنيا مزينة بالكواكب، والحاصل چي مراد زينت په سترګو كي د اهل الارض سواء كان اصول الزينة (يعني ستوري) په اول اسمان كي وي او كه په غير كي د اول اسمان وي وهذا مبني على قول اهل الهيئة وان لم يثبت ذالك فحقيقة العلم عند الله انتهى قول روح البيان، او هغه بيان چي فاضل نسيابوري له كلبي څخه روايت كړی دی چي دا ټوله ستوري په قنديلانو كي دي چي معلق دي بين السماء والارض په ځنځيرانو سره، نور چي هغه په لاسو كي د ملائكه وُ دی انتهى، روح المعاني وايي هذا القول مما يكذبه الظاهر ولا اراه الاحاديث خرافة، انتهى.

**درويش وايي:** چي مظهري په رد كي د قول د بيضاوي له ډېرو سختو الفاظو څخه كار اخستی دی، مظهري وايي چي دا قول د بيضاوي مبني دی پر تجويز د قول د فلاسفه وُ (يعني چي بيضاوي و قول ته د فلاسفه وُ تجويز وركړی دی) مظهري وايي وقول الفلاسفة باطل بالكتاب، اى القرآن والسنة والاجماع فان كون السمٰوٰت سبعًا منصوص عليه بالكتاب (يعني قوله تعالى خلق سبع سمٰوٰت طباقًا) فلايجوز القول بالكرة الثامنة وتسميتها باسم غير السماء (يعني الكرسي) لايفيد كتسمية الخمر بغير اسمها (لكه الكول چي يې بولي) لايفيد الحل، وقوله تعالى وحفظًا من كل شيطان مارد، يرد القول بكون الكواكب في غير سماء الدنيا، والقول بان الشهاب تخرج من الكواكب الثابتة في السماء الثانية نافذة من السمٰوٰت السبع الى سارق السمع من الشياطين مما يأباه العقل والنقل انتهى قول المظهري.

**درويش وايي:** چي په درياب كي چي غوټې خوري هغه آب بازان دي، زه په خپل درياب خو ځه كوې! د لوی ويالې څخه پرېږم، نو ښه داده مالره چي خپل علم په علم كي د خدای عالم الغيب والشهادة محوه وګرځوم، او داسي ووايم والعلم عند الله لكه روح البيان چي وويل.

لَا يَسَّمَّعُوْنَ اِلَى الْمَلَاِ الْاَعْلٰى وَيُقْذَفُوْنَ مِنْ كُلِّ جَانِبٍ ﴿۸﴾

دوی يعني شياطين غوږ نه نسي و جماعت اعلی ته.

**پوه سه:** چي اصل د يسمعون يتسمعون ؤ فادغمت التاء في السين.

**سوال:** ضمير د جمع خو راجع و شيطان ته دی هغه مفرد دی فكيف يصح الارجاع؟

**ځواب:** ضمير د جمع راجع دی و كل شيطان ته لانه بمعنی الشياطين بدخول لفظ كل عليه والملاء په اصل كي هغه جماعت ته وايي چي اتفاق پر يو رايي سره وكړي فيملئون العيون رؤية والنفوس جلالة، او اطلاق يې پر اشرافو مطلقًا دی يعني كه په يوه سره اتفاق وكړي او كه نه بلكې مطلق جماعت ته هم وايي، والمراد بالملاء والاعلی الملائكة عليهم السلام، كما روی عن السدي رحمه الله: اعلی يې په دې سبب بولي چي دوی په جهت كي د علو يعني اسمانو قرار لري، مقابل يې ملاء اسفل دي چي انس او جن دی، ولي چي دوی په جهت اسفل كي دي، او ابن عباس رضي الله عنه وايي چي مراد ځني اشراف د ملائكه عليهم السلام دي، والمراد بالعلو العلو المعنوي ده ای الرتبی.

**پوه سه:** چي دا كلام مبتداء دی د بيان د حال د شيطانانو وروسته تر دې چي د آسمانو د ختلو لار و دوی ته بنده سوه، والمعنی چي شيطانان كه څه هم كوشش وكړي چي غوږ و نسي و خبرو ته د ملكو چي بعض د هغو چي مطلع وي پر اسرارو د لوح محفوظ هغه خبري نورو ته بيان كوي دوی يعني شيطانان يې د اورېدلو طاقت نه لري، نو له دې سببه (ويقذفون) دوی ويشتل كېږي (القذف الرمی من بعيد له لېري ځای څخه) يعني چي دوی قصد د ورتګ وكړي او د ملكو و خبرو ته د غوږ نيولو (دا جمله عطف ده پر لايسمعون دی) (من كل جانب) د هر جانب څخه د اسمان په شهب سره (چي پښتانه وايي هغه دی ستوری را ايله سو) لكن ستوري له خپل ځای څخه نه جلا كېږي بلكې يو شعله ځني جلا سي چي شيطان ژوبل كړي يا مړ سي يا ګوډ او يا ړوند سي،

**پوه سه:** چي د دې آيت معنا دا نه ده چي يو ځای چي شيطان پورته سوی وي له هر جانب څخه د اسمان پر دوی ګزار ونه كېږي بلكې معنی يې دا ده چي په هر جانب

کي د اسمان چي دوی د غوږ نيولو لپاره د ملکو خبرو ته پورته سوي وه هم له هغه جانبه فقط پر دوی ګزاروته د شهب کېږي.

دُحُورًا وَلَهُمْ عَذَابٌ وَاصِبٌ ﴿٩﴾

(دحورًا) په ترټلو سره، نو د حور مصدر دی نصب يې على انه مفعول مطلق دی د يقذفون لان القذف والدحور متقاربان في المعنى.

او دوی لره يو بل عذاب سته چي شديد او دائم وي وهو عذاب الآخرة، او مقاتل رحمه الله وايي لهم عذاب في الدنيا دائم الى نفخة الصور الاولى يحرقون مرة بعد اخرى.

إِلَّا مَنْ خَطِفَ الْخَطْفَةَ فَأَتْبَعَهُ شِهَابٌ ثَاقِبٌ ﴿١٠﴾

استثناء متصل ده له واو ضمير څخه د لا يسمعون، وكلمة من بدل منه. واليه ذهب الزمخشري صاحب الكشاف ومتابعوه، وقيل استثناء منقطع بمعنى لكن والخطفة الاختلاس چي په پښتو يې حمله بولي او په اردو يې (اُچک ليجانا) بولي او په فارسي يې (ربودن) بولي. ومعنى الآية: الا من اختلس كلمة من كلام الملائكة مسارقة يعني په غلا.

**پوه سه:** چي مراد چونکه له خطفة څخه کلام د ملکو دی ځکه يې الخطفة معرفه راوړه (فاتبعه) اتبع په معنى د تبع دی اى المجرد اى لحقه (شهاب ثاقب) اى مهلك.

**درويش وايي:** چي سدي رحمه الله وايي چي د ثاقب معنى محرق للشيطان ده او الحسن او قتاده رحمه الله وايي چي د ثاقب معنى مضئ ده كانه يثقب الجو بضوئه. واخرج ابن ابى شيبة وعبد بن حميد وابن المنذر وابن ابى حاتم عن يزيد الرقاشي انه قال يثقب الشيطان (سوری کوي شيطان) حتى يخرج من جانبه الآخر.

**فائده:** شهاب په اصل کي يوه لمبه ده چي له اور څخه پورته سي، والمراد ههنا يوه رڼا ده چي له ستوري څخه جلا سي چي د عوامو دا خيال دی چي ستوری له اسمان څخه را ايله سو.

**پوه سه:** چي شهب نفس ستوري نه دي چي اسمان په ښائسته دی، ولي هغه که را ولوېږي په دومره ډېر کثرت لکه چي تجربه دلالت پر کوي نو د اسمان زينت به

کم سي، بلکې د منځ څخه به نيست او نابود سي، او بل دليل دادی چي که ستوري په خپله را ايله سي يعني په اسمان کي له خپل مرکزه راووځي نو خو بايد پر ځمکه ولوېږي فيحدث منه هلاک کثير من الانس والحيوانات لان جرم الکوکب ان لم يکن اعظم من الارض فلا اقل من ان ما انقض من الکواکب من حين حدث الرمی الی اليوم اعظم من الارض بکثير فيلزم انتکون الارض مغشاة باجرام الکواکب والمشاهدة تکذب ذالک بل لم تسمع بوقوع جرم الکواکب اصلاً واصغر الکواکب الثوابت عند الحکماء الاسلاميين کالجبل العظيم، وعند الفلاسفة اعظم واعظم بل صغار الکواکب الثوابت اعظم من الارض کذا في روح المعاني.

**درويش وايي:** چي روح المعاني په بيان کي د دې مقصد طويل طويل بيان کړی دی، والمظهري ينکر ذالک کله کما يظهر بمطابقة تفسيره، وروی عن ابن عباس رضي الله عنه ده وويل چي يو وخت يعني د شپې رسول الله ﷺ تشريف فرما وُ سره د څو نفرو اصحابو رضي الله عنهم چي رمی بنجم فاستنار، فقال عليه الصلوة والسلام ما کنتم تقولون لمثل هذا في الجاهلية، دوی ورته وويل چي موږ به ويل چي يا يو لوی سړی مړي يا يو لوی سړی زېږي، فقال عليه الصلوة والسلام لايرمٰی لموت احد ولا لحياته لکن سبب دادی چي خدای ﷻ قضاء د يو امر وکړي، د خدای ﷻ تسبيح ووايي حملة العرش واهل السماء السابعة (درويش وايي: چي د مخه تېره سوه چي مظهري رحمه الله و کرسی ته د سماء سابعه له ويلو څخه سخت منکر دی، نو دا حديث پر ده رد دی جواب به يې مظهري څه وايي؟) فيقولون (ای اهل السماء السابعة) لحملة العرش ما ذا قال ربکم؟ حملة العرش دوی ته بيان د ما قال الرب ﷻ کوي خو چي خبر و سماء الدنيا ته ورسېږي فيتخطف مسترقوا السمع يعني الشياطين فيرمون به (ای الی الکهنة) فما جاؤا به علی وجهه فهو من قسم ما سمع من الملائکة فهو حق وما ظهر کذبه فهو من قسم ما قالوه (ای الکهنة) علماء وايي چي د شهب قصه په وخت کي د جاهليت هم وه، ولما بعث رسول الله ﷺ دا استراق السمع ډېره سخته سوه او د شهب راتله ډېر سوه کما في تفسير سورة الجن.

**درويش وايي:** چي مظهري رحمه الله تولو ستوري په اول اسمان کي بولي، او د فلک الثوابت څخه انکار کوي يعني اسمان يې نه بولي او له رمي څخه د ثوابتو ستررو له فلک سابع څخه په کلکه منکر دی، والله اعلم بالصواب.

وروی البخاري عن قتادة رحمه الله قال خلق الله هذه النجوم لثلاث جعلها زينة للسماء ورجومًا للشياطين وعلامات يهتدي (يعني علامات چي په بحر او بر كي له دوی څخه مسافران لار پيدا کوي) فمن تؤل فيها غير ذالک (يعني د سعادت الطالع منها في وقت ولادة المولود وشقاوته كما ذهب اليه المنجمون) اخطاء واضاع نصيبه (من العلم الصحيح في حكمة الباري ج في خلق النجوم) وتكلف ما لم يعلمه الا الله، وروی البخاري ايضًا عن ابي هريرة رضي الله عنه اذا قضی الله الامر في السماء ضربت الملائكة باجنحتها خضعانًا لقوله (ووهي ملكي وزرونه خپل له جهته د عجز و قول ته د خدای ج يعني څه قضاء الهي به نازله سوې وي) كانه سلسلة على صفوان (لكه ځنځير چي پر ډبره وښويول سي) فاذا فرع عن قلوبهم (چي بېره زائله سي له زړو څخه د ملکو) قالوا ما ذا قال ربكم قالوا للذي قال ای الله تعالى الحق وهو العلي الكبير، فسمعها مسترقوا السمع (يعني الشياطين) او مسترقوا السمع يو پر بل سره ولاړي وي هغه خبره چي له ملكو څخه يې واورېدل يعني هغه اسمان ته نژدې شيطان هغه يې من تحت ته وكړي وهكذا حتى يلقيها على لسان الساحر او الكاهن (شک دی د راوي) گاهي شهاب د مخه تر القاء وكاهن ته وروسېږي يعني هلاک يې كړي وربما القاها قبل ان يدركه ای الشهاب، نو كاهن سل درواغ ورسره ضم كړي، نو خلک يې هغه سل درواغ په يوه اسماني خبر سره چي رشتيا وه ومني، فيقال اليس قد قال كذا وكذا، فيصدق بتلک الكلمة التي سمعها من السماء.

**درويش وايي:** چي وروی مسلم قريبًا مما روی البخاري لكن اخصر مما روی البخاري.

**پوښتنه:** دغه شيطانان چي په شهاب ويشتل كېږي، ولي له دغه كاره يعني استراق السمع څخه نه بېزاره كېږي؟

**ځواب:** د مخه په حديث شريف كي عنقريب ذكر سوه، داسي راغله: گاهي شيطانان هغه له ملكو څخه اورېدلې خبره تر كاهنانو پوري راورسوي، نو بله پلا بيا په اميد د سلامت دا كار ته چمتو سي، مثال يې راكب البحر دی د تجارت لپاره فقد يصيب الموج فيغرق امواله، وقد لا يصيبه فلذا يعود الى ركوب البحر للتجارة رجاء للسلامة.

**سوال:** شيطان خو له اوره پيدا دی فلا يحرق بالنار؟

**ځواب:** شيطان خو صرف اور نه دی بلكې اور يې ماده ده، لكه انسان چي

خالص خاوري نه دی، خاوري یې ماده ده.

**درویش وایي:** چي په وخت کي د سلطنت د انګرېزانو پر لویه وچه د بر صغیر (هندوستان او پاکستان) چي یې قبضه وه، د انګرېزانو یو ملا دا سوال مطرح کړی ؤ اعتراضًا علی القرآن العظیم چي په قرآن کي راغلي دي لاملئن جهنم من الجنة والناس اجمعین چي جن خو له اوره پیدا دی، نو په اور یې څه باک کېږي او په اور ده ته څه عذاب ور کول کېږي، ددې تحقیق لپاره انګرېزانو مسلمانانو ته دعوت ورکړی د مناظرې ددوی د ملا سره، مسلمانانو خپل یو ستر عالم وټاکی د مناظرې لپاره، قانون د مناظرې عمومًا دا دی چي دمخه تر شروع د مناظرې یو څو مقدمات مسلمه بین المتخاصمین به ایښوول کېږي.

نو جلسه چي جوړه سوه د مسلمانانو عالم د انګرېزانو ملا ته وویل چي ته دا مني چي یو جنس په خپل جنس سره نه معذب کېږي. د انګرېزانو ملا په نعم سره جواب ورکړی، بیا د مسلمانانو عالم ورته وویل چي ته دا منې چي انسانان له خاورو څخه پیدا دي انګرېزي ملا ورته وویل نعم! په عین حال کي حکومت سخت پهره درولې وه چي د مسلمانانو او د انګرېزانو تر منځ جنګ جوړ نه سي، مسلمان عالم په خپل بغل کي پټه یوه کوچنۍ اوومه خښته یعني له خاورو څخه جوړه سوې راخستې وه، د انګرېزانو ملا چي خپل بیان وکړی لکه دمخه چي عنقریب تېر سو د مسلمانانو عالم بیله سوال و جوابه په هغه اومه خښته د انګرېزانو ملا پر سر وویشتی سر یې مات سو او دی بېهوش سو، انګرېزانو غوښته چي د مسلمانانو عالم ګرفتار کړي هغه ورته وویل چي تاسي صبر وکړئ چي دی په هوش کي راسي زه یوه پوښتنه ځني کوم بیا ما تاسي ګرفتار کړئ هر څه چي زما جرم ؤ هغو مره جزاء راکړئ. خیر یو ګړی وروسته چي د انګرېزانو ملا په هوش کي راغلی د مسلمانانو عالم پوښتنه ځني وکړه چي ولي بېهوشه سوې؟ انګرېز ملا ورته وویل چي ته څرنګه ضربه پر سر راکړه! عالم ورته وویل چي ما خو ته د خاورو په خښته وویشتلې، تا خو ویل چي جنس په جنس نه په عذابېږي، او تا په مقدمات مسلمه ؤ کي دا وویل چي انسان له خاورو څخه پیدا دی؟ نو د انګرېزانو ملا تسلیم سو او

له خپلې خبرې څخه بېزار سو، نارې سوې چې (مسلمان عالم جيت گيااور انگريزوں کے مُلاّ ہار گيا) (جيت: معنی برې، گټل، او هار: معنی ناکامي، بايلل)
دا ډېر مختصر حکايت ددې ځای سره مناسب.

## فَاسْتَفْتِهِمْ أَهُمْ أَشَدُّ خَلْقًا أَمْ مَنْ خَلَقْنَا

ته پوښتنه وکړه يا محمد (ﷺ) له مشرکينو څخه د مکې (ضمير مرفوع راجع وعليه الصلوة والسلام ته دی او ضمير منصوب راجع و کفارو ته د مکې دی) دوی سخت دي من حيث الخلق (خلقًا تمييز دی له نسبت څخه د اشد وهم ته) او يا هغه څه چې موږ پيدا کړي دي (ام من خلقنا) مفعول محذوف دی ای هم چې راجع و من ته دی (لفظ د من که څه هم مفرد دی من حيث المعنی جمع دی) والمراد بمن خلقناهم ما سبق ذکره من السمٰوات والارض وما بينهما من الخلائق والمشارق والمغارب والکواکب والشهب الثواقب للشياطين السارقين للسمع وکلمة من التي هي لذوی العقول خاصةً باعتبار والتغليب، او بعض مفسرين وايي چې مراد د من خلقنا نور امتونه دي لکه عاد او ثمود و قوم لوط وغيرهم هغه موږ هلاک کړه تاسي کفار مکه ولې په امن کې ياست له عذاب څخه د خدای ﷻ.

## إِنَّا خَلَقْنَاهُمْ مِنْ طِينٍ لَازِبٍ ⑪

موږ پيدا کړي دي کفار مکه (په اعتبار د اصل ددوی چې آدم ﷺ) له خټو څخه چې په لاس پورې مښلې يعنې سرېښناکي خټې، او مجاهد او الضحاک وايي چې لازب معنی منتن ده يعنې بدبويه، والحاصل چې اسمانو او د مځکې خلق بې له سبق د ماده دی او د انسانانو خو د طين لازب له ماده څخه دی.

**پوه سه:** چې غرض له دې کلام څخه رد دی پر منکرانو د بعث بعد الموت باندې په دې معنی چې دې آيت شاهدي ادا کړه پر دوی په ضعف سره، ولې هغه شی چې خټو څخه جوړ وي هغه شی خو چنداني صلابت يعنې کلک والی او قوت نه لري لکه اسمانونه فمن خلق السمٰوات وغيرها قادر بالطريق الاولی علی ما لايعتد به ای المخلوق من الطين نسبت و اسمانو ته او په هم دې آيت کې احتجاج دی پر مشرکانو د مکې او نورو، په دې معنی چې ستاسي اول خلق له طين لازب

ځکه دی، نو تاسي ولي انکار کوئ چي له خاورو څخه موږ څرنګه پيدا کړي کما قالوا. اذا کنا ترابًا اءنا لفي خلق جدید او سره ددي چي طين لازب خو اوبه او خاوري دي، او خاوري او اوبه خوسته اوس هم، او قابل د انضمام دي او قدرت د خدای ج باقي پر خپل ځای دي، نو ستاسي د انکار د بعث بعد الموت دلیل څه دی ومالکم کیف تنکرون... شیخ سعدي قدس سره داسي وايي:

باامرش وجود از عدم نقش بست.... که داند جز او کردن از نیست هست

دگر ره بکتم عدم دربرد.... وز آنجا بصحرا ی محشر برد

بَلْ عَجِبْتَ وَيَسْخَرُونَ ﴿۱۲﴾

مظهري رح وايي چي کلمه د بل لپاره د ابتداء د کلام ده والانتقال من غرض الی غرض وهو الاخبار عن حاله ﷺ وهو التعجب وحالهم ای مشترکی مکة من الاستهزاء والسخرية وليست لاضراب انتهی، او روح المعاني ذالک بالبحر الطامي وايي وکلمة بل للاضراب من تلک الدلائل لانها لاتنفع او عن الامر بالاستفتاء فانهم معاندون لاينفع فيهم الاستفتاء ولا يتعجبون من تلک الدلائل بل مثلک يتعجب منها انتهی، او روح البيان وايي قال سعدي المفتي اضراب عن الامر بالاستفتاء ای لا يستفتهم فانهم معاندون مثل ما قال روح المعاني لفظًا بلفظ.

**درويش وايي:** چي فتدبر وخذ ما صفا ودع ما كدر.

**پوهه:** چي عجب هغه حالت ته وايي چي انسان ته پېښ سي من رؤية امر لم يعهد مثله (يعني چي ده نه وي ليدلی مثل د هغه امر) (ويسخرون) ای هم يسخرون (بحذف المبتداء) او دوی مسخري کوي، والمختار في معنى الآية داده چي ته يا محمد تعجب کوي من قدرة الله تعالى على هذه الخلائق العظيمة من خلق السمٰوات من قوله رب السمٰوات الى قوله تعالى من طين لازب، او دغه رنګه ته تعجب کوې له انکار څخه د دوی له بعث بعد الموت څخه مع اقامة الدلائل الواضحة على صحته او دوی پسخند وهي ستا په تعجب سره او تقرير د بعث بعد الموت.

**درويش وايي:** چي حمزه، کسائي، ابن سعدان او ابن مقسم عجبت بتاء المتکلم وايي او دا روايت د علي او ابن عباس او ابن مسعود رض او د نخعي،

طلحة، شقيق او اعمش رحمهم الله دي. شريح القاضي له دې قرائت څخه منکر دي، وقال ان الله لا يعجب من شيئ وانما يعجب من لم يعلم آه، لکن انکار القاضي ليس في محله بل جاء في الحديث الصحيح مثله عجب ربک من قوم يساقون الى الجنة في السلاسل. فلا بد من تصححه هذه القرائة وتوجيه امثالها من الاحاديث. فقال البيضاوي العجب من الله اما على الفرض والتخييل او على الاستعظام اللازم يعني اللازم د تعجب سره، او بعض مفسرين وايي ان هذه القرائة مقدر بالقول يعني قل يا محمد بل عجبت، وقال البغوي رحمه الله والتعجب من الله انکاره وتعظيمه والعجب من الله رحمه الله قد يكون بمعنى الانكار والذم كما في هذه الآية وقد يكون بمعنى الاستحسان كما في الحديث عجب ربكم من شاب ليست له جلوة.

**درويش وايي:** چي د دې آيت پر تقدير د عجبت بتاء الخطاب قتاده رحمه الله ډېر زيبا او په زړه پوري ترجمه کړې ده وايي چي: تعجب وکړی نبي الله صلى الله عليه وسلم من هذا القرآن حي نزل (يعني بعض السور منه، ولي چي قرآن مبارک په تدريج نازل سوی دی) وضلال بني آدم (اى مشركي مكة) سبب دا ؤ چي د عليه الصلوة والسلام دا خيال ؤ چي دا قرآن معجز چي هر څوک واوري ايمان به پر راوړي، نو مشرکانو د مکې چي دا قرآن واورېدی استهزاء يې په کول او ايمان يې نه راوړی، وعجب النبي صلى الله عليه وسلم من صنيع المشركين مع القرآن يعني الاستهزاء به فقال الله عزوجل بل عجبت ويسخرون.

وَإِذَا ذُكِّرُوا لَا يَذْكُرُونَ ﴿١٣﴾ وَإِذَا رَأَوْا آيَةً يَسْتَسْخِرُونَ ﴿١٤﴾

او چي دوی ته وعظ وکړل سي په قرآن سره دوی قبول د وعظ قرآني من النبي العربي صلى الله عليه وسلم څخه نه کوي مع انهم يسمون النبي صلى الله عليه وسلم قبل دعوى النبوة (امين مكة) (واذا راو آية) چي دوی ووېني يوه معجزه (چي پر صدق د دعوىٰ د نبوت د عليه الصلوة والسلام دلالت کوي. قال ابن عباس رضي الله عنه ومقاتل رحمه الله چي مراد دلته معجزه د انشقاق القمر ده) دوی ډېره مبالغه په پسخند کي کوي.

وَقَالُوا إِنْ هَٰذَا إِلَّا سِحْرٌ مُّبِينٌ ﴿١٥﴾

او دوی وايي (قالوا: ماضي په معنى د مضارع ده بقرينة ماقبله) نه دی دغه چي موږ يې وينو (هذا اشاره و آيت ته ده او تذکيره په اعتبار د معنى دی يعني انشقاق القمر فافهم) الا: مگر سحر دی چي ښکاره دی سحروالی يې.

ءَاِذَا مِتۡنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَّعِظَامًا ءَاِنَّا لَمَبۡعُوۡثُوۡنَ ﴿۱۶﴾

آیا چي موږ مړه سو او وګرځو موږ خاوري او هډوکي، آیا موږ بعث کېږو؟ همزه د (انا لمبعثون) لپاره د انکار دی اصل کلام داسي ؤ: انبعث اذا متنا، په بدل الجملة الفعلية ای انبعث بالاسمية يعني اءنا لمبعوثون، وقدم الظرف چي اذا دی او دوه ځایه یې همزه مکرر راوړی مبالغةً في الانکار اشعارًا واشعارًا بان البعث في نفسه مستنکر وفي هذا الحال ای کنا ترابًا وعظامًا اولی بان الانکار، تراب یې د مخه کړی له دې سببه چي اول غوښي خاوري کېږي وروسته عظام پاتېږي.

اَوَ اٰبَآؤُنَا الۡاَوَّلُوۡنَ ﴿۱۷﴾

او یا زموږ پلرونه (پلرونه نیکه ګانو ته هم شامل دي) آیا بعث کېږي به زموږ ابا چي اول مړه دي، وزيادة لزيادة استبعاد بعثهم لبعد زمانهم.

قُلۡ نَعَمۡ وَاَنۡتُمۡ دَاخِرُوۡنَ ﴿۱۸﴾

ورته ووایه ته (یا محمد ﷺ) هو! تاسي او ابا ستاسي به بعث کېږئ او حال به دا وي چي تاسي به نهایت ذلیل یاست.

فَاِنَّمَا هِيَ زَجۡرَةٌ وَّاحِدَةٌ فَاِذَا هُمۡ يَنۡظُرُوۡنَ ﴿۱۹﴾

(جواب د شرط محذوف دی يعني اذا کانت البعثة فانما هي ای البعثة زجرة ای صيحة واحدة ای النفخة الثانية لاسرافیل)

**پوه سه:** چي زجر طرد او منع ته وایي په صوت سره کما يقال زجر الراعي غنمه اذا صاح عليها، والحاصل چي امر د اعاده لکه امر د ابدا دی په سهولت وقدرت ته د خدای ﷻ، او کلمه د اذا للمفاجات (چي په پښتو وایي: ناببره) او ضمیر د هم راجع دی و منکرین ته بعث بعد الموت يعني المشرکين، وفي بعض التفاسير للخلائق کلهم انتهى.

**درویش وایي:** چي دا تفسیر وروسته يعني د یا ویلنا سره سمون نه لري، لان یا ویلنا شعار في ذالک اليوم للمشرکين دون المؤمنين، د ینظرون معنی یا داده یبصرون کما في الدنیا او یا دا چي ینتظرون ما یفعل بهم.

وَقَالُوْا يٰوَيْلَنَا هٰذَا يَوْمُ الدِّيْنِ ﴿۲۰﴾

او دوی وایي یعني المشرکین.

**سوال:** دا خبره خو تر اوسه پوري نه ده متحقق سوې، نو صیغه د ماضي څرنګه راوړل سوه؟

**ځواب:** مستقبل چي یقیني الوقوع وي لکه ماضي داسي دی.

**سوال:** د ویل معنی هلاک ده، نو د ویل د نداء وجه او معنی څه ده؟

**ځواب:** د عربو د عادت سره سم چي دوی چي څه وخت د سخت مشکل سره مخامخ سوه دغسي نداء کوي، یا ویلنا یا داسي یا حسرتنا، نو معنی یې داده چي دوی وایي چي ای هلاکه زموږ چیري یې احضر فهذا اوانک، او حسین کاشفي رح داسي ترجمه کړې ده: (ای وای برما).

**فائده:** ویل مصدر دی لا فعل له من لفظه او جمله د قالوا عطف ده علی ینظرون.

(هذا یوم الدین) دا ورځ د جزاء ده پر اعمالو زموږ.

هٰذَا يَوْمُ الْفَصْلِ الَّذِيْ كُنْتُمْ بِهٖ تُكَذِّبُوْنَ ﴿۲۱﴾

دا ورځ ده د جلا کولو د محسن او مسئ والمؤمن والکافر ده.

**فائده:** کلام د مشرکانو پر هذا یوم الدین ختم سو، وقوله هذا یوم الفصل له کلام څخه د ملکو دی، توبیخًا و تقریعًا، وقیل هذا ایضًا من قول بعضهم لبعض.

**درویش وایي:** ولیس بذاک فافهم، نو بیا په هم دغه وخت کي خدای جل جلاله و ملکو ته وایي:

اُحْشُرُوا الَّذِيْنَ ظَلَمُوْا وَاَزْوَاجَهُمْ

جمع کړئ هغه کسان چي په دنیا کي یې ظلم یعني الشرک کاوه فان الشرک ظلم عظیم. ولي چي ظلم وضع د شي ده بې ځایه، مشرکانو هم عبادت چي حق د خدای عزوجل و لانه المعبود بالحق بې ځایه استعمال کړی وُ یعني د بتانو عبادت یې کاوه.

**بوه سه:** چي حشر بعث بعد الموت ته هم وایي او جمع او سوق ته وایي اول معنی دلته مراد نه ده لان البعث قد تحقق حینئذ، بلکې معنی داده چي جمع کړي دوی موقف ته د حساب او جزاء.

(وازواجهم) او امثال ددوی او اتباع ددوی، بغوي رح وايي قال قتادة والكلبي رح يعني مثل من عمل عملهم فشاربى الخمر مع اهل الخمر واهل الربوا مع اهل الربوا وهكذا اهل المعاصي الاخر مع امثالهم في تلک المعاصي، او ضحاک رح وايي: قرنائهم من الشياطين يعني كل كافر مع شيطانه په يوه ځنځير كي. او حسن رح وايي چي ازواج معهوده مراد دي من المشركات كذا روى البيهقي من طريق النعمان بن بشير قال سمعت عمر بن الخطاب رضي الله عنه وزاد فيه واصحاب الزنى مع اصحاب الزنى.

**درويش وايي:** چي روح البيان د مذكور حديث پر خلاف ويلي دي، چي مراد د الظالمين څخه مشركان دي، الا ان يقال ان المراد في الحديث المذكور والله اعلم كي هم د فشاربوا الخمر آه مشركان دي چي په مذكوره افعالو كي به سره شريكان وه.

وَمَا كَانُوا يَعْبُدُونَ ﴿٢٢﴾ مِن دُونِ اللَّهِ

او هغه شيان چي دوى به يې عبادت كاوه بيله خدايه يعني في الدنيا. يعني الاوثان والطواغيت، وقال مقاتل رح چي مراد له ما يعبدون څخه ابليس دى قرينه دا ويلې ده ان لاتعبدوا الشيطان، مظهري رح وايي چي دا آيت مخصوص دى په هغه آيت سره ان الذين سبقت لهم منا الحسنى اولئک عنها مبعدون.

**درويش وايي:** چي تخصيص او اخراج د الذين سبقت آه ته څه ضرورت سته، ولي چي مظهري په خپل تفسير كي د الذين ظلموا په اشركوا سره كړى دى، او روح البيان هم ويلي دي په تفسير كي د ازواجهم واشباههم من اهل الشرک والكفر والنفاق وعبدة الاصنام الخ.

فَاهْدُوهُمْ إِلَىٰ صِرَاطِ الْجَحِيمِ ﴿٢٣﴾

قال ابن عباس رضي الله عنهما دلوهم الى طريق النار، او ابن كيسان وايي قدموهم الى النار.

وَقِفُوهُمْ ۖ إِنَّهُم مَّسْئُولُونَ ﴿٢٤﴾

(وقفوهم) مفسرين وايي لما سيقوا الى النار حبسوا عند جسر الصراط وذالک هو المراد من وقفوهم (انهم مسؤلون) تعليل لما سبق، قال ابن عباس رضي الله عنهما يعني مسؤلون عن جميع افعالهم واقوالهم، وروى عنه ايضًا عن لآ اله الا الله.

**درويش وايي:** چي که چېرې مراد له ظالمانو څخه مطلق ظالمان سي يعني که مؤمن وي او که کافر، نو هغه حديث شريف چي مسلم يې له ابي برزة الاسلمي رض څخه روايت کړی دی قال قال رسول اللهﷺ لايزول قدمًا عبد عن الصراط حتی يسئل عن اربع (۱) عن عمره فيما افناه (چي عمر دي څه په کارو کي پای ته ورساوه) (۲) وعن جسده فيما ابلاه (۳) وعن علمه ما عمل فيه (۴) وعن اين اكتسبه وفيما نفقه، او هغه حديث چي ابن المبارک يې له ابي درداء رض څخه روايت کړی دی چي دی وايي ان اخوف ما اخاف اذا وقعت الحساب ان يقال قد علمت، ته عالم وي څه عمل دي کړی دی يعني په علم سره، او هغه حديث چي ابن ابی حاتم له ابقع بن عبد الله الكلاعي څخه روايت کړی دی چي جهنم لره اووه قناطير دي او صراط عليها، نو بند کړل سي خلک پر اول قنطره فيقولون (ای الملائكة لخزنة جهنم) قفوهم انهم مسؤلون فيحاسبون عن الصلوٰة (يعني سوال د لمانځه ځني کېږي چي کاوه دي که يا) فهلک فيها من هلک وينجو من نجاه (يعني چي نه يې کاوه هغه هلاک سي يعني دوږخ ته ولوېږي او نجات پيدا کړي هغه چي کاوه يې يعني د شرائطو او ارکانو سره) بيا دويمي قنطرې ته ورسېږي سوال د امانت ځني کېږي: کيف ادوها وکيف خانوها فيهلک من هلک وينجو من نجی. واذا بلغوا القنطرة الثالثة سئلوا عن الرحم (ای صلة الرحم) کيف وصلوها وکيف قطعوها فيهلک من هلک وينجو من نجی.

**درويش وايي:** ونحو ذالک من الاحاديث واقوال العلماء كثيرة، دا ټول له والله اعلم پر عموم د ظالمانو بناء دی.

مَا لَكُمْ لَا تَنَاصَرُوْنَ ﴿۲۵﴾

څه سبب دی چي تاسي يو د بل مرسته (کومک) نه کوئ. والخطاب بعض وايي و کفارو او د دوی خدايانو ته دی او يا يو ازي و دوی ته دی لکه تاسي په دنيا کي به يو د بل مرسته کول. لکه ابو جهل چي په ورځ د بدر وويل نحن جميع منتصر مونږ په اتفاق يو خامخا به غالب کېږو پر جماعت د مسلمانانو، په دې آيت باعثه کول دي ددوی پر مرسته باندي يو د بل سره. والغرض من السوال التهكم والتعجيز دی.

**پوښتنه:** چې دا سوال تر دې وخته پوري ولې وځنډېدی یعني تر وخته د دخول د دوږخ ته؟

**ځواب:** په دې وخت کې سخت ضرورت و کومک ته سته، انقطاع د امید دی د خلاصون له عذاب څخه، په یو روایت کې راغلي دي چې عمل نامې د کافرانو چې دوی ته ورکړل سي، دوی چې خپلې عمل نامې ووایي نو ملکي ورته ووایي چې جزاء د ذغسې عمل والا څه ده؟ دوی ورته وایي النار، نو ملکي ورته ووایي ادخلوا النار بحکمکم په حدیث شریف کې راغلي دي چې عالم یعني معلم الناس الدین او عابد چې به عبادتونه د تهجد لمونځونه الی غیر ذالک یې کړي وي پر پل صراط سره یو ځای ملکي و عابد ته ووایي چې څه جنت ته خپل د عبادت مېوې خوره عالم معلم ته ووایي قف ههنا فاشفع لمن شئت فانک لاتشفع لاحد الا شفعت یعني ستا شفاعت قبلېږي، فقام مقام الانبیاء یعني شفاعت اصالةً د انبیاء علیهم السلام کار و تبعًا ده ته وسپارل سي.

بَلْ هُمُ الْيَوْمَ مُسْتَسْلِمُوْنَ ﴿٢٦﴾ وَاَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلٰى بَعْضٍ يَّتَسَآءَلُوْنَ ﴿٢٧﴾

بلکې دوی په دې ورځ کې عاجزون وي قاله ابن عباس رضی الله عنه وقال الحسن منقادون (واقبل آه) او مخ راواړوي بعض د کافرانو یعني اتباع او رئیسان یو پر بل منت کوي او ملامتیا پر وایي او ورسره دعوه یې وي.

قَالُوْٓا اِنَّكُمْ كُنْتُمْ تَاْتُوْنَنَا عَنِ الْيَمِيْنِ ﴿٢٨﴾

(قالوا) ماضي په معنی مستقبل ده لان هذا القول في القيامة وعبر بالماضي لتيقن وقوع هذا القول في القيامة.

**درویش وایې:** ومثل هذا كثير في القرآن المجيد، دا قول دی د اتباع دی و رئیسانو ته چې دوی به اتباع باعثه کول پر شرک او کفر.

**ترجمه:** تاسي په تحقق واست چې راتلاست موږ ته د یمین له خوا څخه.

**پوه سه:** چې بعض مفسرین وایي عن اقوى الوجوه او عن الدین او عن الخیر كذا قال الضحاک ومجاهد، نو دا لفظ مستعار دی له یمین څخه د انسان چې اقوی د جانبینو د انسان دی واشرفهما وانفعهما ولذالک سمی یمینًا، او بعض وایي چې یمین په مراد قسم دی یعني تاسي رئیسانو به موږ ته قسم اخستی چې

دغه دین چي موږ تاسي ورته رابولو یعني الشرک هو الدین الحق، او بعض مفسرین وايي چي یمین په معنی د قوت دی یعني موږ په زور او طاقت پر شرک مجبوره کولو، یعني په ضرب او کوب سره دعوت د شرک را کاوه.

**پوه سه:** چي دا جمله او وروسته جمله بیان د تسائل په معنی د تخاصم ده.

قَالُوْا بَلْ لَّمْ تَكُوْنُوْا مُؤْمِنِيْنَ ﴿٢٩﴾

(قالوا) ای یقول (علی قیاس مامر) وه به وايي رئیسان یا شیطانان (که تخاصم د شیطانانو سره وي) یعني موږ تاسي نه یاست ګمراهان کړي بلکې تاسي په اختیار د کفر لیار غوره کړې وه.

وَمَا كَانَ لَنَا عَلَيْكُمْ مِّنْ سُلْطٰنٍ ۚ بَلْ كُنْتُمْ قَوْمًا طٰغِيْنَ ﴿٣٠﴾

نه ؤ موږ لره پر تاسي قهر او غلبه چي په زوره مو شرک ته نه را جلبولای تاسي (تقریر لماقبله) بلکې تاسي واست په خپل اختیار چي طغیان او شرک مو کاوه زموږ څه ګناه ده.

فَحَقَّ عَلَيْنَا قَوْلُ رَبِّنَآ ۖ اِنَّا لَذَآئِقُوْنَ ﴿٣١﴾ فَاَغْوَيْنٰكُمْ اِنَّا كُنَّا غٰوِيْنَ ﴿٣٢﴾

نو واجب سو پر موږ او تاسي قول د خدای ﷻ یعني لاملئن جهنم من الجنة والناس اجمعین: موږ او تاسي به برداشتوو عذاب د خدای ﷻ (ولیس من ذوق الغم) یعني تاسي مو ګمراهان کړاست د هدایت د لاري څخه ودعوناکم الی ماکنا علیه من الکفر والشرک (عطف علی قوله فحق علینا) یعني موږ په خپله ګمراهان ؤ د حق له لاري څخه، مقصد دادی چي زموږ او ستاسي ضلال او وقوع په عذاب کي د هغه زموږ او ستاسي په قسمت ازلي کي نوشته وه غایة ما فعلنابکم (چي موږ د تاسي سره وکړه) انا دعوناکم الی الغي لانا کنا علی الغي، نو زموږ دا خوښه وه چي تاسي لکه موږ داسي سي، ولي چي زموږ په دنیا کي دا ګمان چي پر حق دین یو، نو د قومیت او دوستی له لاري مو تاسي و هغه دین ته چي په واقع کي ضلال و دعوت کړاست، او تاسي هم په لبیک زموږ دعوت بدرګه کړی، نو تاسي پر موږ د ملامتیا حق نه لري فافهم هداک الله.

فَإِنَّهُمْ يَوْمَئِذٍ فِي الْعَذَابِ مُشْتَرِكُونَ ﴿٣٣﴾

(فانهم) کلمه د فاء لپاره د سببیت ده یعني لما کان کلهم من الرؤساء والاتباع والکفرة علی الغی والضلال، نو دوی ټول ورځ یعني په عذاب کي سره شریک دي، ولي چي په سبب کي د عذاب سره شریکان دي.

إِنَّا كَذَٰلِكَ نَفْعَلُ بِالْمُجْرِمِينَ ﴿٣٤﴾

انا مبتداء ده وروسته جمله یې خبر ده او کذالک منصوب دی محلاً مفعول مطلق دی ای فعلاً مثل ما نفعل بهولاء (نفعل بالمجرمین) والمراد بالمجرم المجرم الکامل وهو المشرک.

إِنَّهُمْ كَانُوا إِذَا قِيلَ لَهُمْ لَا إِلَٰهَ إِلَّا اللَّهُ يَسْتَكْبِرُونَ ﴿٣٥﴾

الجملة تعلیل لماقبله ولي چي دوی وه په دنیا کي چي دوی ته به وویل لا اله الا الله دوی به له توحید څخه د معبود بالحق کبر کونکی وه.

وَيَقُولُونَ أَئِنَّا لَتَارِكُو آلِهَتِنَا لِشَاعِرٍ مَجْنُونٍ ﴿٣٦﴾

او دوی به ویل (عطف علی یستکبرون) آیا موږ به پرېږدو خپل خدایان چي اصنام دي. والاستفهام للانکار یعني داسي نه کوو په قول د شاعر چي لېونی دی. مراد یې څښتن رسول الله ﷺ و.

**تنبیه**: دوی د غایت عناد سره د رسول الله ﷺ په دې قول کي خپل یعني شاعر، مجنون جمع بین الضب والنون وکړه. قال الله تعالی رداً علی هؤلاء الضالین.

بَلْ جَاءَ بِالْحَقِّ وَصَدَّقَ الْمُرْسَلِينَ ﴿٣٧﴾

(کلمه د بل لپاره د اضراب ده له قول څخه د دوی. ضمیر د جاء راجع دی و علیه الصلوة والسلام ته) بلکې دی راتک کړی دی په حق سره چي توحید د معبود دی، او ده تصدیق کړی دی د نورو رسولانو چي تر ده دمخه تېر سوي وه یعني د هغو دعوه هم توحید وه یعني توحید یو نوی کار او خبره نه ده چي رسول الله ﷺ یکښې یوازې دی بلکې ټوله رسولان دده مسماه په دعوی کي د توحید شریکان دي فکلمة کل الرسل واحدة یعني لا اله الا الله.

إِنَّكُمْ لَذَائِقُوا الْعَذَابِ الْأَلِيمِ ﴿٣٨﴾

په تحقیق تاسي ایها المشرکون (التفات دی له غیبت څخه و خطاب ته) تاسي به ورې یعني په قیامت کي عذاب چي درد ورکونکی دی، فعیل په معنی د مفعل دی او یا مبالغه ده مثل لیل لئیل، وداهیة دهیًا. دا عذاب په سبب د اشراک او د تکذیب د رسولانو دی.

وَمَا تُجْزَوْنَ إِلَّا مَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ﴿٣٩﴾

تاسي ته جزاء نه درکول کېږي مګر جزا د هغه عمل چي په دنیا کي تاسي کاوه یعني الشرک.

**درویش وایي:** چي له علي رضي الله عنه څخه چا پوښتنه وکړه د مؤمن (ای الکامل) د علامې په اړه، ده ورته وویل: څلور شیان دي (۱) ان یطهر قلبه من الکبر والعداوة (ای لاهل الاسلام) (۲) ان یطهر لسانه من الکذب والغیبة (درویش وایي چي بهتان یعني ناحقه عیب پر چا ویل داخل دی په کذب کي) (۳) و ان یطهر قلبه (یعني ایضًا) من الریاء والسمعة (۴) وان یطهر جوفه من الحرام والشبهة (یعني شبهه چي د حرام پکښې وي وان لم یکن حرامًا قطعیًا) وفي الحدیث: دع مایریبک الی ما لایریبک، واعظم الکبر ان یتکبر عن قول لا اله الا الله.

إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ ﴿٤٠﴾

مګر نه بندګان د خدای جل جلاله چي مخلصون وي.

**پوه سه:** چي مخلص بفتح اللام پر صیغه د اسم مفعول چي خدای جل جلاله دي خالص ګرځولی دی د عبادت خپل یعني اختاره لجناب حضرته. او مخلص بالکسر یعني پر صیغه د اسم فاعل من اخلص عبادته لله تعالی ولم یشرک بعبادته احدًا.

**پوه سه:** چي دا استثناء منقطع ده من ضمیر ذائقوا العذاب څخه له دې سببه چي استثناء منقطع ده نو الاّ په معنی د لکن دی، په کشف الاسرار کي وایي تم الکلام ههنا عند قوله تعالی الا ماکنتم تعملون، وهذا ما ذهب الیه روح البیان وکشف الاسرار، او په روح المعاني کي وایي استثنا، منقطع عن ضمیر ذائقوا وما بینهما اعتراض یعني معترضة جمله.

**درویش وایي:** چي ما ذکره المظهري من احتمال الاستثناء المتصل فتکلف.

أُولَٰئِكَ لَهُمْ رِزْقٌ مَّعْلُومٌ ﴿٤١﴾

**پوهنه:** چي دا جمله مستأنفه ده ګويا سايل به پوښتنه کول مالهؤلاء المخلصين من الأجر والثواب.

**درويش وايي:** چي دې ته استيناف بياني وايي.

**ترجمة الآية:** دغو مخلصينو لره رزق دى معلوم، يعني خواصي يې معلومي دي من كتاب الله وسنة رسوله من الدوام وتمخص اللذة وغير ذالك وفسره بقوله.

فَوَاكِهُ ۖ وَهُم مُّكْرَمُونَ ﴿٤٢﴾

(فواكه) جمع د فاكهة ده، عطف بيان يا بدل دى د رزق.

**فائده:** فاكهة په اصطلاح د عربو هغه مېوې وغيره ته وايي چي مقصود څني تلذذ وي نه غذاء او قوت، لکه په اوسني زمانې کي نارنج، مالټه، شليل، شفتالو وغيرها، او رزق دواړو ته وايي يعني که غذاء څني مقصد وي او که صرف تلذذ.

**پوښتنه:** په جنت کي هر قسم مېوې سته لکه انګور، انار، مڼه او خورما چي كامل غذاء پکښي سته، نو ټولي مېوې د جنت څرنګه فواکهه وبلل سولې؟

**ځواب:** چونکه بدنونه د جنتيانو محفوظ دي له فناء څخه نو غذاء ته ضرورت نه لري، نو ټول ه ارزاق د دوى فواکه دي.

(وهم مكرمون) دوى ته عزت ورکړه کېږي، يعني يصل تلك الفواكه اليهم من غير تعب وسوال بخلاف ارزاق الديا، دا جمله عطف ده پر دمخه جمله يعني لهم رزق معلوم.

فِي جَنَّاتِ النَّعِيمِ ﴿٤٣﴾ عَلَىٰ سُرُرٍ مُّتَقَابِلِينَ ﴿٤٤﴾

(في جنات النعيم) جار او مجرور متعلق دى په مکرمون پوري يا بل خبر دى د اولئک. والمعنى جنات ليس فيها الا النعيم (على سرور) جمع د سرير ده وهو ما يجلس عليه للسرور. دا لفظ يا حال دى اى جالسين على السرور او يا خبر لاؤلئک (متقابلين) مخامخ يعني جنتيان چي يو د بل ملاقات ته ورسي يو د بل قفا يعني شا نه ويني بلکې سرور يې سره ګرځي، دا جمله حال ده من الضمير المستكن في الجار والمجرور اى على سرر.

يُطَافُ عَلَيْهِمْ بِكَأْسٍ مِّنْ مَّعِيْنٍ ﴿٤٥﴾

طواف کړه کېږي يعني غلمان د جنت د شراب لوښي په لاس کې پر دوی طواف کوي.
**پوه سه:** چي کأس هغه صراحي ته وايي چي شراب پکښې وي، او خودي شرابو ته هم کأس وايي کما في قول الشاعر:... وكأسًا شربت على لذة
له اخفش رح څخه روايت دی چي دی وايي كل كأس في القرآن فهي الخمر. وروی ذالک عن ابن عباس رض واخرج ابن ابی شيبة وابن جرير عن الضحاک قال كل كأس في القرآن فهي الخمر لكن روح المعاني وايي چي اطلاق د كأس پر خمر مجاز دی يعني اصل معنی يې هغه صراحي يا ګلاس ده چي شراب پکښې وي.
(من معين) يعني چي د جنت په وياله کي بهېږي چي په سترګو ليدل کېږي نو د معين معنی جارية في الانهار.

بَيْضَآءَ لَذَّةٍ لِّلشّٰرِبِيْنَ ﴿٤٦﴾

**پوه سه:** چي بيضاء او لذة دواړه صفت دي د كأس (يعني په معنی د شرابو كمامر) الحسن رح وايي چي خمر د جنت اشد دی بياضًا تر شيدو بخلاف خمر الدنيا لانها كثيف اللون په سبب د دې چي په خيرون لاسو انګور مثلاً چڅتا نېږي او په خيرنو منګيو کي جوړېږي غالبًا، او داغه رنګه شراب د دنيا فانها كريهة عند الشرب.
**پوښتنه:** لذة خو مصدر دی، نو حمل يې پر كأس څرنګه صحيح دی؟
**ځواب:** حمل يې يا مبالغةً دی نحو زيد عدل يا لذة مؤنث د الذ په معنی د لذيذ دی. و وزنه فعل لان الذال مشدد لکه طب بمعنی الطيب.

لَا فِيْهَا غَوْلٌ وَّلَا هُمْ عَنْهَا يُنْزَفُوْنَ ﴿٤٧﴾

نسته په خمر (شراب) کي د جنت فساد، نه دوی يعني جنتيان د خمرو په سبب بېهوشه او بې فهمه کېږي لکه په شرابو د دنيا.
**پوه سه:** چي خمر مؤنث سماعي دی، اصل معنی د غول فساد دی يعني نسته په خمر کي د جنت هيڅ فساد لکه په خمر کي د دنيا چي مفاسد شتی پکښې دي (١) عقل د سړي مغلوبه سي چتي چتي خبري کوي (٢) نهايت د سر درد لري تر يو وخت پوري (٣) د نس درد لري (٤) استفراق يعني قی وهي (٥) بولي بې اختياره ګاهي په پرتاګه کي ځني وسي.

**فائده:** سپین شراب لکه شیدې نه په دنیا کي چا لیدلي دي او نه به یې تر قیامته پوري ووینې، او دا له جملې څخه د هغه شیانو دي چي په صفاتو کي د جنت راغلي دي فيها ما لا عين رئت ولا اذن سمعت ولا خطر على قلب بشر يعني تفصيلاً وقد ورد في خمور الدنيا قوله تعالى (رجس من عمل الشيطان)

**فائده:** په تاریخ کي راغلي دي چي يو وخت يو شراب خور شراب چښل پولو وئیوی. نو ده غبرګه ورته نیولې وه پر مخ یې مښلې او دا یې وویل چي الحمد لله الذي جعل الماء طهوراً. د امير المؤمنين رض روایت دی که شراب پر یوه مځکه توی سي او پر هغه ځای مناره د آذان لپاره جوړه سي اذان پکښي مکروه دی (يعني تنزيهاً)

وَ عِنْدَهُمْ قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ عِيْنٌ ﴿٤٨﴾

په نېز د دوی يعني د جنتیانو للجماع دا جمله عطف ده پر ماقبل. يعني حورات چي قصر به وي سترګي د هغو پر خپل ازواجو چي بل چا ته اصلاً نظر نه کوي لحسنهم عندهن من جميع اهل الجنة في اعينهن بخلاف نساء الدنيا، ولي هغه تر خپل مېړه ښائسته ووینې د سترګو په کونج و هغه ته ګوري (عين) خبر د مبتدا محذوف دی ای هن حسان الاعين يقال رجل اعين وامرئة عيناً.

**بوه سه:** چي ښوالی د سترګو دادی چي اوږدې وي او غټې غټې ښانو ګان یې وي او توریې په تک تور او سپین یې تک سپین وي.

كَاَنَّهُنَّ بَيْضٌ مَّكْنُوْنٌ ﴿٤٩﴾

لکه دوی چي هګۍ د شتر مرغ وي. بيض که څه هم جمع دی لکن صفت په مذکر راوړی اعتبار اللفظ بيض.

**بوه سه:** چي د شتر مرغ هګۍ تکه سپینه نه ده لکه د نورو مرغانو هګۍ، بلکي لږژړوالي ته مائل ده په ښځو کي تکه سپینه هم خوند نه کوي بلکي سپین والی لږ ژړوالی ګډ وي دا د ښځو ډېر ښایسته رنګ دی (مکنون) په وزرو کي د شتر مرغ پټي وي ګرد او غبار یې نه وي ور رسېدلی.

**بوه سه:** چي بيض جمع د بيضه ده يعني هګۍ، حسن رح وايي چي حورات د جنت خدای ج مشابه کړې ده په هګۍ سره د شتر مرغ. ولي دی هغه خپل هګۍ په

خپلو بڼو کي ساتي، لايصل اليه غبار ولا هواء ويكون ابيض في صفرة وهذا احسن الوان النساء عند العرب بل عند جميع الرجال.

فَأَقْبَلَ بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ يَتَسَاءَلُونَ ﴿٥٠﴾

نو مخ را واړوي بعض له اهل جنت پر نورو يو له بل څخه پوښتنه کوي، د ما مضٰى عليهم من حيوة الدنيا وهذه الجملة معطوفة على يطاف عليهم. يعني شراب چي نوش جان کړي، بيا مجلسونه سره شروع کړي د يوې او بلي خوا، يو شاعر وايي: وما لقيت من اللذات الا احاديث الكرام على المدام (مدام شراب ته وايي)

قَالَ قَائِلٌ مِّنْهُمْ إِنِّي كَانَ لِي قَرِينٌ ﴿٥١﴾

ووايي يو ويونکی ددوی يعني په جريان کي د خبرو ددوی تر منځ، زه چي يم ما يو انډيوال درلود چي د بعث بعد الموت څخه منکر ؤ، مجاهد رح وايي چي دده سره ملګری شيطان مراد دی، او بعض مفسرين وايي چي د انسان له جنس څخه وي، او مقاتل رح وايي سره وروڼه وه او جمهور مفسرين دوه کسه شريکان وه يو کافر ؤ چي نوم يې مطروس ؤ او هغه بل مؤمن ؤ چي نوم يې يهودا ؤ چي په سورة کهف خدای ج په دوی سره مثال ويلی دی.

يَقُولُ أَإِنَّكَ لَمِنَ الْمُصَدِّقِينَ ﴿٥٢﴾

هغه به ما ته ويل د توبيخ او سرزنش په لهجه، آيا ته يې له تصديق کونکو څخه چي بعث بعد الموت سته.

أَإِذَا مِتْنَا وَكُنَّا تُرَابًا وَعِظَامًا أَإِنَّا لَمَدِينُونَ ﴿٥٣﴾

آيا هغه وخت چي موږ مړه سو او خاوري او هډوکي وګرځي ابا موږ ته به جزاء راکول کېږي، يعني وروسته تر بعث.

قَالَ هَلْ أَنتُم مُّطَّلِعُونَ ﴿٥٤﴾

(قال) اى ذالک القائل وه انډيوالانو ته چي تاسي نه ګورئ و دوږخ ته چي خپل قرين در پـه ګوته کړم يعني درو وښيم، او بعض وايي چي قائل د انتم آه، خدای پاک او يا بعض ملائکه دي چي قائل مذکور او ملګرو ته دده چي ستاسي

خوښه ده چي تا مطلع پر اهل النار وکړ خو چي تاسي هغه قرين ووينې. (فاطّلع) نو دا مؤمن وګوري يعني ترېو سوري و دوږخ ته.

**پوښتنه:** جنتونه خو په اسمانو کي دي او دوږخونه د مځکي په کښته حصه کي دي. نو تر کوم ځايه به دوی هغه قرين ووينې؟

**ځواب:** په جنتو کي سوري سته چي تر هغو سوريو جنتيان دوږخيان ليدلای سي په قدرت د خدای جلاله.

فَاطَّلَعَ فَرَاٰهُ فِيْ سَوَآءِ الْجَحِيْمِ ﴿۵۵﴾

نو دی ووينې هغه خپل انډيوال چي منکر د ثواب او عذاب ؤ لانکاره البعث بعد الموت، په منځ کي د اور.

**سوال:** مابين ته ولي سواء وايي؟

**ځواب:** لاستواء الجوانب اليه يعني اطراف ومابين ته سوی الجوانب دی. بيا دې سړي خلګو ته چي دده سره ملګري وه وويل چي ما وليدل ډېري د سر کوپړی چي د اور له سببه ايشېدلې يعني ماغزه به يې په سر کي ايشېدل.

قَالَ تَاللّٰهِ اِنْ كِدْتَّ لَتُرْدِيْنِ ﴿۵۶﴾ وَلَوْلَا نِعْمَةُ رَبِّيْ لَكُنْتُ مِنَ الْمُحْضَرِيْنَ ﴿۵۷﴾

هغه جنتي و خپل قرين دوږخي ته ووايي (کلمه د ان مخفف د مثقل اسم يې ضمير شان محذوف دی) والمعنی شان دادی چي ته قريب وې چي زه هلاک کړې وای باغوانک (ان البعث بعد الموت دروغ دي) که نه وای هدايت، عصمت او توفيق د خدای ج للايمان زه به وای د حاضر کړل سوو د تا سره په اور کي.

اَفَمَا نَحْنُ بِمَيِّتِيْنَ ﴿۵۸﴾ اِلَّا مَوْتَتَنَا الْاُوْلٰى وَمَا نَحْنُ بِمُعَذَّبِيْنَ ﴿۵۹﴾

جنتي و دوږخي ته ووايي: آيا موږ نه يو مړه سوي.

**درويش وايي:** چي مظهري رح قوله تعالی افما نحن بميتين الخ پر دې حمل کړی دی چي دا هم کلام د جنتي دی د دوږخي قرين سره، او په بيان کي د معنی يې ډېرو کړاوونو سره مخامخ سوی دی چي که څوک مصداق زما د خبري غواړي تفسير مظهري دي مطالعه کړي، لکن الحق ما قال العلامة البغدادي رح في روح المعاني حيث قال في تفسير قوله افما نحن بميتين الخ. رجوع الی محاورة

جلسائه (يعني في الجنة) بعد اتمام الكلام مع قرينة ببجهًا وابتهاجًا (لپاره د اظهار د خوشالى) بما اتاح الله له (چي مهرباني وكړه خداى ددې سره) من الفضل العظيم (چي په دنيا كي يې د قرين دوږخي په خوله ونه كړه) والنعيم المقيم (او نعيم دائم يې راكړى چي جنت دى) او روح البيان هم ورته تفسير مختار كړى دى، حيث قال في تفسير الآية المذكورة رجوع الى محاورة جلسائه بعد اتمام الكلام مع قرينة سرورًا بفضل الله العظيم والنعيم المقيم فان تذكر الخلود في الجنة لذة عظيمة، والهمزة للتقرير وفيها معنى التعجب.

والمعنى: آيا موږ چي جنت ته داخل سو بيا به نه مرو، والفاء للعطف على مقدور يقتضيه نظم الكلام كما هو القانون في حروف العطف الواقعة بعد حروف الاستفهام كما مر مرارًا، والتقدير: انحن مخلدون في الجنة فما نحن بميتين اى من شاننا الموت الا الموت التي كانت في الدنيا تصديقًا لقوله تعالى لا يذوقون فيها الا لموتة الاولى، يعني لا يموت في الجنة ابدًا سوى الموتة التي في الدنيا ومعنى التقرير في الاستفهام انه كك انتهى كلام روح البيان فتامل.

إِنَّ هَٰذَا لَهُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿٦٠﴾ لِمِثْلِ هَٰذَا فَلْيَعْمَلِ الْعَامِلُونَ ﴿٦١﴾

په تحقيق دا (يعني الخلود في النعيم المقيم) كاميابي ده لويه كما لا يخفى.

(لمثل هذا) د مثل ددې كاميابى. (وتقديم الجار والمجرور على عامله اعني فليعمل آه لپاره د حصر دى يعني لحظوظ الدنيا المشوبة بالآلام والمصائب مع سرعة زوالها لان هذه المقدمة من المسلمات من جميع ذوى العقول ان الباقي خير من الفاني (فليعمل العاملون) عمل دي كوي په دنيا كي عمل كونكى، حسين كاشفي ميگويد:

گر بار كشي بارى بار نگارى بارى .... ور كار كنى براى يارى بارى

در روى بخاك راهى خواهى ماليد.... بر راه ره طرفه سوارى بارى

جلال الدين الرومي قدس سره وايي:

حفت الجنة بمكروهاتنا ..... حفت النيران من شهواتنا

ترجمه د هغه حديث صحيح ده قد حفت الجنة بالمكاره وحفت النار بالشهوات.

اَذٰلِكَ خَيۡرٌ نُّزُلًا اَمۡ شَجَرَةُ الزَّقُّوۡمِ ﴿۶۲﴾

آيا دغه نعمتونه چي د جنت والو لپاره بيان سوه ښه دي لپاره د مهمانۍ که درخته د زقوم چي نزل او مهماني د اهل النار ده.

**پوه سه:** چي زقوم درخته ده ډېره ترخه بد بويه خبيثه چي ډېره بد خونده هم ده چي اهل النار مجبوره کړه کېږي پر خوړلو د هغې دوی يې خوري على اشد کراهية.

**محاوره:** تزقم الطعام اذا تناوله على کره، په پښتو د جنتيانو د خورک په باره کي: يو د بله سره وايي نوشي جان دي سه، يا وايي: دارو درمان دي سه، او د بد خورک مثال داسي وايي: زهر دي سه يا داسي: زقوم دي سه.

**پوه سه:** چي نزلاً منصوب على التمييز دی، په صحيح حديث کي چي روايت يې ترمذي کړی او حکم په صحت يې هم کړی دی او دغه رنګه نسائي و ابن ماجه و ابن ابي حاتم و ابن حبان او الحاکم او بيهقي رحمهم الله عن ابن عباس رضي الله عنهما کړی دی ان رسول الله ﷺ قال که يو څاڅکی د زقوم (د دوږخيانو) په دريابو کي د دنيا ولوېږي لافسدت على اهل الارض معاشهم فکيف من يکون طعامه نو به يې څه حال وي د دوږخيانو چي د خورک شی يې زقوم دی؟!.

اِنَّا جَعَلۡنٰهَا فِتۡنَةً لِّلظّٰلِمِيۡنَ ﴿۶۳﴾

موږ ګرځولې ده درخته د زقوم فتنه او عذاب د کافرانو لپاره په آخرت کي، يا امتحان په دنيا کي (للظالمين) ای للکافرين.

**درويش وايي:** چي عذاب د زقوم په آخرت کي خو د مخه بيان سو عنقريب، واما الامتحان في الدنيا کافرانو به ويل چي درخته خو اور سوځي فکيف يکون شجرة في النار؟ او ابن الزبعري و رئيسانو ته د قريشو ويله ان محمداً يخوفنا بالزقوم، والزقوم بلسان بربر (چي د يو قوم نوم دی) الزبد والتمر (پيروي او خورما ته وايي، يا کوچي او خورما ته وايي) ابو جهل ورته وويل چي راځی زما کور چي زه دستي مصداق ددې دروښيم، کور ته چي ورغله ابو جهل دستي د مينځي ته وويل زقمينا هغې زبد او تمر ورته راوړل، فقال ابو جهل تزقموا خوري ياست زقوم، هذا ما يوعدکم محمد (ﷺ) فرد الله عليهم.

إِنَّهَا شَجَرَةٌ تَخْرُجُ فِىٓ أَصْلِ ٱلْجَحِيمِ ﴿٦٤﴾ طَلْعُهَا كَأَنَّهُۥ رُءُوسُ ٱلشَّيَٰطِينِ ﴿٦٥﴾

زقوم یوه درخته ده په بیخ کې د دوږخ، الحسن رح وایي چې تنه خو یې په بیخ کې د اور ده، لکن ښاخونه یې ټولو منازلو ته د کافرانو رسېدلي دي.

(طلعها) یعني ثمرها سمی طلعًا لخروجها من تلک الشجرة) لکه سرونه د شیطانانو. ابن عباس رض وایي چې مراد له شیطانانو څخه معروف او مشهور شیطانان دي.

**سوال:** شیطان چا لیدلی دی چې خدای پاک د مېوې د زقوم ښوونه موږ ته په رؤس الشیاطین سره وکړه؟

**ځواب:** هو! شیطان خو چا نه دی لیدلی، لکن قبح د صورت دده په زړو کې د خلګو قرار لري، حتی چې یو سړی بل بدرنګه سړي ته ووایي څه د شیطان مخ دي دی، یا څه د شیطان خوله دي ده الی غیر ذالک، نو مبثی ددې آیت پر عرف ده فافهم. او بعض مفسرین وایي چې د عربو په صحراؤ کې یوه درخته سته چې ډېره بد بویه او مېوه یې ډېره ترخه ده، هغې درختي ته عرب رؤس الشیاطین وایي چې په ډېرو لېري صحراؤ کې د تهامه لیدل کېږي، او د هغې درختي څخه چې زخمي یې کړې د شیدو په رنګ یو شی راوزي چې د انسان پر هر ځای چې ولوېږي هغه پړسېږي او درد هم کوي.

فَإِنَّهُمْ لَءَاكِلُونَ مِنْهَا فَمَالِـُٔونَ مِنْهَا ٱلْبُطُونَ ﴿٦٦﴾

نو دوی خورک کوي له هغې درختي څخه یا له مېوې څخه د هغې درختي، نو دوی ډکوي له هغې څخه نسونه.

**یوه سه:** چې ملأ دونه خورک ته وایي چې بالا یې په نس کې نه ځایېږي، له دې محاورې څخه مأخوذ دی ملأ الاناء یعني لا یحتمل المزید علیه.

ثُمَّ إِنَّ لَهُمْ عَلَيْهَا لَشَوْبًا مِّنْ حَمِيمٍ ﴿٦٧﴾

وروسته په تحقیق سره دوی لره پر اکل د هغې درختي وروسته تر دې چې نسونه په ډک کړي او تنده پر غالبه سي او د استسقاء مرض ور پېښ سي (شوبًا) بالضم مخلوط شي ته وایي یعني وینې او نوونه سره ګډ سي (من حمیم) له هغو

ګرمو اوبو څخه چي غايت حرارت ته يې ګرمي رسېدلې وي، دا د اوبو څښښګ له غايت تندي څخه ددوی وي، بعض مفسرين وايي چي شرابو ته غساق وايي. ای ما يقطر من جراح اهل النار وجلودهم، او بعض وايي چي دې اوبو ته صديد وايي. او غساق يوه چينه ده په اور کي چي په هغه کي د مارانو او لړمانو زهر جمع کېږي وشربهم ذالک لغلبة عطشهم من اکل الشجرة ای الزقوم. فاذا شربوا تقطعت امعائهم (چي وه يې څښښي کلمې يې قطعه قطعه سي)

ثُمَّ اِنَّ مَرْجِعَهُمْ لَاِالَى الْجَحِيْمِ ﴿٦٨﴾

وروسته رجوع ددوی بېرته و دوږخ ته يعني و اور ته ده، بغوي رح وايي چي له دې عبارت قرآني څخه دا معلومه سوه چي حميم خارج له اور څخه دی. لکه خلګ چي اوښان اوبو ته ورولي، وروسته يې خپل مېرک ته رد کړي، ويدل قوله تعالى يطوفون بينها (ای بين النار) وبين حميم آن (چي تودې اوبه دي)

اِنَّهُمْ اَلْفَوْا اٰبَآءَهُمْ ضَآلِّيْنَ ﴿٦٩﴾ فَهُمْ عَلٰٓى اٰثٰرِهِمْ يُهْرَعُوْنَ ﴿٧٠﴾

دوی پيدا کړي وه خپل پلرونه ګمراهان يعني مشرکان، دا جمله تعليل ده د مذکوره سختو عذابو ددوی، نو دوی پر آثارو د پلرو چي په شرک کي چابک روان وه يعني تقليد د آباؤ يې په ضلال کي پيله فکره کاوه دوی به ويل چي څه دې کول چي پلار او نيکه دې کول.

وَلَقَدْ ضَلَّ قَبْلَهُمْ اَكْثَرُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿٧١﴾ وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا فِيْهِمْ مُّنْذِرِيْنَ ﴿٧٢﴾

او په تحقيق ګمراهان سوي وه يعني په تقليد د پلار او نيکه (لقد ضل، عطف دی پر انهم الفوا) دمخه ددوی يعني د مشرکين مکه، ډېر امتونه له اولو امتو څخه، (ولقد ارسلنا آه) (لام موطئه د قسم) موږ استولي په هغو امتو کي قبل تر مشرکين د مکې ېرونکي له عذاب څخه د خدای ج يعني انبياء عليهم السلام.

فَانْظُرْ كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الْمُنْذَرِيْنَ ﴿٧٣﴾ اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿٧٤﴾

وګوره ته (المخاطب اما سيد المخاطبين ﷺ واما کل واحد ممن يتأتى منه مشاهدة اثارهم) څرنګه سو آخير ده چي ېرول کړه سوي وه يعني هولناک او فظع حال يې چي دوی په اندازه د منذرينو عمل نه وکړی او سر يې هم هغه ته راپورته نه

کړی، نو عاقبت د دوی اهلاک سو د خدای ﷻ له خوا څخه. اهلاکاً فظیعاً . واستثنی عنهم المخلصین بقوله ﷻ (الا عباد الله المخلصین) که صیغه د اسم مفعول وي یعنې په فتح د لام. فالمعنی اخلصهم الله من العذاب والاهلاک الفظیع بتوفیقهم للایمان والعمل بموجب الانذار.

**بوه سه:** چې په یو بل قرائت المخلصین په کسره د لام راغلی دی. فالمعنی الذین اخلصوا دینهم لله ﷻ بدون الاشراک.

**فائده:** استثناء پر دواړو قراءتو یا منقطع ده که له منذرین څخه مراد یوازې کفار سي، او که منذرین عام سي یعني کافران او مسلمانان دواړه پکښې داخل سي، ولې چې مؤمنان خو هم د بد اعمالو خلاف الشریعة بېرول کېدل. فالاستثناء متصل. فافهم وهذا غایة تحقیق هذا المقام والعلم عند الله العزیز العلام.

**درویش وایي:** چې هم دا اوس خدای پاک شروع کوي تفصیل د قصص بعد اجمالها فیما سبق، نو ګویا دا نوع د حسن حال د منذرینو بالکسر او د سوء عاقبة د منذرینو بالفتح.

## وَلَقَدْ نَادٰىنَا نُوْحٌ فَلَنِعْمَ الْمُجِيْبُوْنَ ﴿۷۵﴾

**بوه سه:** چې نداء دلته په معنی د دعاء ده بقرینة قوله فلنعم المجیبون. لام موطئه د قسم دی. والمعنی وبالله په تحقیق ماته خواست وکړی نوح ؑ. نوح ؑ اول د رسولانو دی چې له ایمان څخه د قوم نا امید سو وروسته تر دې چې ده دعوت د ایمان و قوم ته ورکړی مدة مدیدة و دهوراً کثیرة فلم یزدهم دعوته الا فراراً ونفوراً. نو خدای ﷻ ده د خواست بنه قبلونه وکړه چې دی یې و خپل مرام ته ورساوه چې نصرت وُ پر اعداء د دین او انتقام یې ده له اعداء څخه واخستی بابلغ وجه کما سیاتي.

(فلنعم المجیبون) ای فوالله بنه خواست قبلونکی یوازې نحن موږ یو.

**فائده:** ولقد آه عطف دی پر ولقد ارسلنا فیه آه من عطف الخاص علی العام. والمعنی ولقد ضل قبلهم (ای کفار مکة) قوم نوح ؑ فارسلنا فیهم نوحاً منذراً فدعاهم الی الاسلام فلم یؤمنوا حتی چې دی نا امید سو له ایمان څخه د دوی و اوحی الله الیه انه لن نؤمن قومک الا من قد آمن. نو فنادانا آه.

وَنَجَّيْنٰهُ وَاَهْلَهٗ مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ ﴿٧٦﴾

موږ ده ته نجات او خلاصون ورکړی او اهل ته دده (چي په هغو کي مؤمن هم داخل دي) د لويه غمه څخه.

وَجَعَلْنَا ذُرِّيَّتَهٗ هُمُ الْبٰقِيْنَ ﴿٧٧﴾

او موږ وګرځول اولاد دده باقين يعني هغه کسان چي پر ده يې ايمان راوړی وُ او په کښتۍ کي دده يې نجات پيدا کړی د هغو اولادونه نه سوه پاته صرف ذرية د نوح پاته سوه الى يومنا بل الى يوم القيامة، نو ځکه تاريخ پوهان نوح ؑ آدم ثاني بولي. تاريخ قديم وايي: داغه رنګه ترمذي له سمرة بن جندب ؓ او هغه له نبي کريم ﷺ په تفسير کي ددې آيت (وجعلنا ذريته هم الباقين) قال اولاده حام، سام، و يافث آه.
قال اهل التواريخ فسام ابو العرب وفارس و الروم واليهود والنصارى. وحام ابو السودان من المشرق الى المغرب والسند والهند والنوبة والزنج والحبشة والقبط والبربر وغيرهم. ويافث ابو الترک والخزر ويأجوج ومأجوج وما هنالک.

**درويش وايي**: چي مظهري رح ويلي دي: قلت وعندي (يعني زما په نيز که څه هم د مشهوره قصه د نوح څخه خلاف ده) چي نوح ؑ خو مبعوث وُ و ټولو نړيوالو ته فان الارسال الى الناس كافة كان من خصائصه يعني رسول الله ﷺ بل كان مبعوثًا الى قومه خاصةً فلم يؤمنوا فدعا عليهم فاهلكوا بالطوفان، دی وايي چي مراد په هغه آيت کي رب لاتذر على الارض من الكافرين ديارًا. ارضه المعهود يعني چي دده د قوم مځکه وه، انتهى.

**فقير وايي**: دا عنديه د مظهري رح د مشهور بلکې د متواتري قصې سره د نوح او د غرق بالطوفان او هغه تأويل د آيت چي يې وکړی تأويل بالرأى دی. او مظهري دا خبره هم غلطه بولي چي نوح ؑ آدم ثاني دی. او د هغه بيان چي مظهري دمخه تر قلت راوړی دی وهو قوله الظاهر من قصة نوح في القرآن انه غرق في الطوفان كل ما من كان في الارض الا من آمن بنوح وركب السفينة وروسته حديث د سعيد بن المسيب ؓ كان ولد نوح ؑ ثلاثة سام و حام و يافث. فسام ابو العرب والروم والفارس، و حام ابو السودان ويافث ابو الترک والخزر وياجوج و ماجوج

ما في بلاد المشرق من الهند وغير ذالک انتهی، دا بیان د قلت سره مناقض دی.
نو د فقیر په عقیده قلت د مظهري مردودة علیه. والله اعلم بالصواب وعنده علم ما في الکتاب ... بیت:

په تقسیم د خدای ج راضي یم ..... چي نه قاضي یم او نه مفتي یم

**درویش وایي:** چي په دې مناسبت بیان د روح البیان د اورېدو وړ دی. دی په صفحه (۴۶۷) د سورة الصافات عربي عبارت یې دادی، وروی انه مات کل من کان معه ای نوح ع في السفینة (یعني هغه نور مؤمنان چي د نوح ع په کښتی کي سپاره وه ټوله مړه سوه او هیڅ اولاد د هیڅ چا د هغو څخه نه دی پاته سوی) غیر ابنائهم وازواجهم وهم الذین بقوا متناسلین (دیو پاته نسل پر نسل الی یوم القیامة) قال قتاده رح انهم من ذریة نوح ع (یعني ټوله انسانان له ذریة څخه د نوح ع دي تر ورځي د قیامت پوري) وکان ثلثة اولاد (یعني في السفینة، ولي کنعان که څه هم دده زوی ؤ لکن کافر ؤ پلار ورته وویل چي راسه پکښتی کي راسره سپور سه یعني بشرط الایمان هغه ورته وویل کما حکی الله عنه في موضع آخر من القرآن. کریمه: سأوی الی جبل یعصمونی من الماء، پلار یې ورته وویل. کریمه: لا عاصم الیوم من امر الله (یعني من عذابه بالغرق) فسام ابو العرب وفارس والروم والیهود والنصاری، وحام ابو السودان من المشرق الی المغرب، والسند والهند والنوبة والزنج والحبشة والقبط والبربر وغیرهم، ویافث ابو الترک والخزر ویاجوج و ماجوج وما هنالک انتهی عبارته العربیة، وروسته روح البیان د کشف الاسرار څخه داسي عبارت په فارسي ژبه نقل کړی دی: اصحاب التورایخ گفته اند : فرزندان یافث هفت بودند . نامهای ایشان (۱) ترک (۲) خزر (۳) وصقلاب (۴) تاریس (۵) منسلک (۶) کماري (۷) صین. ومسکن ایشان میان مشرق ومهب شمال وهرچه ازین مردم است از فرزندان این هفت برادرانند، وهمچنین فرزندان حام بن نوح ع هفت بودند نامهای ایشان (۱) سند (۲) هند (۳) زنج (۴) قبط (۵) حبش (۶) نوب (۷) کنعان.

**پوښتنه:** تا دمخه وویل چي کنعان کافر ؤ د پلار سره په کښتی کي نه سو سپور او آیت قرآنیه دي دلیل پر وایه، نو دلته څرنګه کنعان راوړل سو؟

**ځواب**: كنعان كه څه هم په كښتئ كې نه سو سپور، د هغه زوی چي د نوح ؑ لمسی سي مسلمان وُ په كښتئ كې د ځپل نيكه سره سپور سو، نو ځكه اووم قبيله د حام په اولاد كي په نامه د كنعان ياده سوه، اما فرزندان سام ميگويند پنج بودند وقومی ميگويند كه هفت بودند (۱) ارم (۲) دارفخشد (۳) وعالم (۴) ويفر (۵) واسود (۶) تارخ (۷) تورخ، ارم پدر عاد و ثمود بود، دار فخشد پدر عرب بود، از ايشان فانع و قحطان بودند، فانع جد اعلی ابراهيم ؑ وقحطان ابو اليمن بود، وعالم پدر خراسان بود، واسود پدر فارس ويفر پدر روم بود، وتورخ ارمين صاحب ارمنيه، و تارخ پدر كرمان بود واين ديار همه بنام ايشان باز ميخوانند، وبعد از وفات نوح ؑ خليفه وی سام بود بر سر فرزندان نوح ؑ ده بود، وكار ساز ايشان بود ومسكن وی زمين عراق وايران شهر، انتهی عبارت كشف الاسرار كه روح البيان نقل كرده بود.

وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِيْنَ ۝ سَلٰمٌ عَلٰى نُوْحٍ فِي الْعٰلَمِيْنَ ۝

او موږ پرېښي ايښي دی پر نوح ؑ په راتلونكو امتو كي دا كلام بعينه يعني سلام الخ.

**بوه سه**: چي سلام مبتدا، ده علی نوح يې خبر دی.

**سوال**: سلام خو نكره ده تخصيص هم نه لري، نو مبتداء څرنګه واقع سوه؟

**ځواب**: محقق جامي رح په شرح كي د كافية ابن الحاجب وايي چي تنكير د مبتدا، په دعاء كي روا دی لان المراد سلام من قبلی عليک، نو تخصيص يې په من قبلي سره وكړه سو.

**پوښته**: سلام علی نوح خو مفعول د تركناه دی، نو مرفوع ولي دی؟

**ځواب**: دا كلام واقع دی پر حكايت د قوم د امم آتيه وُ لكه يو سړی چي قرائت سورةُ انزلناها په رفع سره د سورت علی الحكاية مع انه مفعول قرئت دی فافهم، وهذا ما قاله الفراء وغيره من الكوفيين، وقال آخرون چي دلته قول ورسره مقدر دی ای تركنا في الآخرين قولهم سلام علی نوح في العالمين، والمراد علی كل تقدير اي ابقينا له دعاء الناس وتسليمهم عليه امة بعد امة الی اخير الدهر ونسب هذا الی ابن عباس رض ومجاهد وقتادة والسدي، او بعض مفسرين وايي تقدير: تركنا عليه الثناء والذكر في العالمين.

إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿٨٠﴾

يعني نجزي كل محسن جزاء كذالک الجزاء ، اتيناه نوحًا ، يعني نوح ته موږ جزاء كامله وركړه ، اول : اجابة الدعاء ، كما مر . دوهم : ابقا ذريته الى يوم القيامة ، دريم : والذكر الجميل ، څلورم : تسليم العالمين ابدًا داغسې جزاء موږ وركوو كاملانو ته په احسان كې لا جزاء ادنى منه ، كريمه : هل جزاء الاحسان الا الاحسان احسان د نوح ؑ مجاهده دده وه د اعداء سره د خداى ﷻ بالدعوة الى دينه والصبر الطويل على اذاهم ونحو ما ذكر .

إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ﴿٨١﴾

تعليل لكون نوح محسنًا يعني عبوديته وكمال ايمانه ، وفيه اشارة واظهار لجلالة قدر الايمان واصالة امره وترغيب في تحصيله والثبات عليه كه څه هم د ډېرو كړاوونو سره مخامخ سي لكه نوح ؑ .

**سوال :** نبوت خو اشرف دى تر ايمان لان كل نبي مؤمن كامل وليس كل مؤمن نبيًا ؟

**ځواب :** په دې آيت كې اظهار د شرف د ايمان او مؤمنينو دى لا لشرف نوح من قبيل قول الشاعر في مدح النبي ﷺ :

ما ان مدحت محمدًا بمقالتي ...... ولكن مدحت مقالتي بمحمد

**پوهنه :** چې په دې آيت كې زېرى دى و محسنين ته د امت د عليه الصلوة والسلام .

ثُمَّ أَغْرَقْنَا الْآخَرِينَ ﴿٨٢﴾

وروسته غرق كړه موږ په طوفان سره هغه نور له قوم څخه د نوح ؑ چې مؤمنين او محسنين نه وه . دا جمله عطف ده پر انجينا .

**پوښتنه :** چې اغراق د كافرانو او انجاء د مؤمنانو خو په يوه زمانه كې ؤ ، او ثم په حروفو كې د عطف لپاره د تراخي في الزمان دى كما تقرر في النحو ؟

**ځواب :** ثم لپاره د تفاوت د اغراق او انجاء دى يعني التراخي الرتبي مجازًا وهو كثير في كلام العرب .

وَإِنَّ مِنْ شِيعَتِهِ لَإِبْرَاهِيمَ ﴿٨٣﴾

په تحقيق له ډلې څخه د نوح ؑ يعني شايعه في الايمان ودعوة الناس اليه او پ

اصول کې د دين بلکې په فروع کې د دين کلها او اکثرها.

**بوه سه:** چې په مابين کې د نوح ؑ او ابراهيم ؑ (۲۶۴۰) کاله وه، او په منځ کې د دوی دوو هود ؑ او صالح ؑ نبيان تېر سوي وه.

**فائده:** د ابراهيم ؑ د قصې ذکر د نوح ؑ تر قصې وروسته په دې مناسبت دی چې ابراهيم ؑ لکه آدم ثالث دی نسبت و انبياء او مرسلينو ته چې تر ابراهيم ؑ وروسته وه، ولې چې ټوله دغه وروستني رسولان او انبياء له اولاد څخه د ابراهيم ؑ وه، خو يو لوط ؑ دده له اولاد څخه نه ؤ، لکن لوط ؑ لکه د ابراهيم ؑ ولد ؤ، ولې چې د ورور زوی يې ؤ، او بله وجه د اتصال د ابراهيم ؑ د قصې د نوح ؑ په قصې پورې دا هم ده چې نوح ؑ ته خدای ﷻ له غرق څخه په طوفان نجات ورکړی، او ابراهيم ؑ ته خدای ﷻ نجات ورکړی له حرق (سوځېدلو) څخه في نار نمرود، او بل مناسبت د اتصال يې دا هم دی چې دواړو تصلب في الدين ود دعوت الناس اليه درلودی، او دواړو پر ازار د کافرانو په اکمله وجه صبر درلودی، حتی انتهی سلسلة نبوتها وذريتها الی سيد المرسلين شفيع المذنبين حامل لواء الحمد يوم الدين محمد المصطفٰی والمجتبٰی ﷺ وعلی آله واصحابه اجمعين.

## اِذۡ جَآءَ رَبَّهٗ بِقَلۡبٍ سَلِيۡمٍ ﴿٨٤﴾

(اذ جاء ربه) يعني توجه الی ربه والمشهور ان اذ منصوب محلاً باذ المقدر، او داسې هم روا ده چې منصوب دې وي په فعل مقدر سره چې د (من شيعته) څخه مفهوم سو کانه قيل متی شايعه فقيل شايعه اذ جاء ربه آه (بقلب سليم) په داسې زړه سره چې سالم ؤ له ټولو آفاتو دينيه ؤ څخه لکه فساد العقائد والسيئات السيئة والصفات القبيحة کالحسد وغيره، وايضًا ابراهيم ؑ کان سليم من لاشتغال بغير الله کما يدل عليه قصة ذبيح ابنه بامر الله ﷻ، يعني ذبح ته يې پېش کړی که څه هم ذبح نه سو فافهم.

## اِذۡ قَالَ لِاَبِيۡهِ وَقَوۡمِهٖ مَاذَا تَعۡبُدُوۡنَ ﴿٨٥﴾

چې وويل ابراهيم ؑ (اذ بدل دی د دمخه اذ څخه، يا ظرف دی د جاء يا د سليم) و خپل پلار ته او قوم ته دده چې څه شی تاسې عبادت کوئ يعني الاصنام.

**سوال**: ابراهیم ﷺ ته خو دا معلومه وه چي دوی د بتانو عبادت کاوه، نو استفهام ته څه حاجت و؟

**خواب**: دا استفهام لپاره د طلب د علم نه دی بلکي لپاره د توبیخ او سرزنش دی او د انکار دی.

**فائده**: د ابراهیم ؑ پلا آذر بن باعر بن ناخور بن فالغ بن سالح بن ارفخشد بن سام بن نوح کما ذکره روح البیان. لکن مظهري په یو ځای کي د خپل تفسیر وایي چي آذر د ابراهیم ؑ اکا و. وقد مر دلیله والرد علیه فتذکر.

أَئِفْكًا آلِهَةً دُونَ اللَّهِ تُرِيدُونَ ﴿٨٦﴾

**بوه سه**: چي دا استفهام لپاره د توبیخ بعد توبیخ دی، او آلهة مفعول له دی د تریدون ای لاجل الافک (یعني درواغ)

**فائده**: افکا چي مفعول له و مقدم یې کړی پر فعل لپاره د اثبات دد چي مبني د امر د دوی چي عبادت د بتانو دی پر درواغو او باطل ده.

ترجمه: آیا اشد او سخت درواغو سره (د افکاً معنی سخت درواغ ده) د خدایانو چي بتان دي ماسوی له خدای ﷻ څخه تاسي اراده لرئ.

فَمَا ظَنُّكُمْ بِرَبِّ الْعَالَمِينَ ﴿٨٧﴾

ستاسي څه خیال دی یعني هغه ذات چي رب د ټولو عالمیانو دی او په هم دې سبب مستحق د عبادت خو دی دی، او تاسي د هغه عبادت پرېښو او بتان مو ورسره شریکان کړه یعني تاسي د هغه رب العالمین له عذاب څخه په امن کي یاست. والمعنی انکار مایوجب الظن فضلاً عن موجب القطع چي څوک دي له عبادت څخه منع کړي او یا شریک دي وده ته روا کړي او له عذاب څخه د هغه دي په امن کي وي یعني ستاسي خو یقین دی چي زموږ خدایان بتان د خدای شریکان او مستحق د عبادت دي او عذاب موږ لره نشته، ولي زموږ خدایان زموږ له عذاب څخه د یوم القیامة خلاصونکي دي.

پښتانه یو متل وایي: زه دي پر ایمان شک لرم ته مریدان نسې

یعني ابراهیم ؑ ورته وویل چي ظن د دغو امورو هم منتفي دی تاسي یې دعوی د یقین کوئ کما مر آنفًا.

**درويش وايي:** چي پلار د ابراهيم او قوم يې وه ورځ درلوده په کال کي چي ددوی د اختر ورځ وه، دوی يوه لويه بت خانه درلوده چي په هغه کي لوی او کوچني خدايان ولاړ وه او دوی په دغه ورځ به بتان ښه صافه کړه او ورجي ۇ غوښي او نور خوراکي مواد به يې ددوی و مخ ته کېښېښول تبرگا بالاصنام دوی به ځني ولاړه په صحرا. کي به يې خوشالي کوله سات بې تېراوه چي ځانونه به يې دېر ستړي کړه، نو به راغله هغه متبرک خواړه ددوی په خيال کي بې وخوړل کورو ته به سره ولاړه، دا ۇ ددوی رسم او رواج، په کشف الاسرار کي وايي: تا ايشان بحجت او دليل الزام دهد وآشکارا نمايد که ايشان (يعنى بتان) معبودی را نشايند به همان روز عيد پدر ابراهيم وياران وی گفتند ای ابراهيم بيا تا بصحرا رويم ودرعيد ما شرکت نمايند وشان وشوکت معبودان ما را (يعني چي په بت خانه کي دی) بچشم خود ببيند تاکه تو باز نه گوئيد لآ اله الا الله.

**فَنَظَرَ نَظْرَةً فِي النُّجُومِ ﴿٨٨﴾ فَقَالَ إِنِّي سَقِيمٌ ﴿٨٩﴾**

نو ابراهيم نظر وکړی په ستورو کي (يعني په علم د ستورو کي او د دوی په احوالو کي من الاتصالات.

**فائده:** فقير د نظرة في النجوم ترجمه په دې وکړه ای في علم النجوم. له دې سببه که کاته و نفس ستورو ته مراد وای بايد داسي ويل سوي وای فنظر نظرة الى النجوم په عوض کي د في النجوم. دا خبره ابراهيم له دې سببه وکړه چي قوم دده منجمين وه يعني د ستورو په احوالو سره من الاتصال بينها والافتراق بينها وطلوع الكواكب من الجهة الشرقية والغارب في جهة الغرب او نورو ورته احوالو سره به يې دليل پر حوادثو زمانيه او يوميه وايه، نو ابراهيم ﷺ ددوی سره ددوی معتاده معامله اختيار کړه. والا فلم يكن ابراهيم منجمًا تاچي دوی پر دده انکار ونه کړي په تخلف کي د وتلو بلکي عذر د تخلف ددوی له اختر ځخه يې داسي وويل (اني سقيم) زه ناجوړی يم.

**پوښتنه:** ابراهيم خو ناجوړی نه ۇ، نو دا خبره به دروغ نه وي؟

**ځواب:** ابن عطاء وايي چي مراد د ابراهيم ناجوړي د بدن نه وه كما هو المتبادر بلکي ناجوړي د روح يې وه په سبب د مخالفت د قوم او د عبادت د بتانو

وهو صدق بلا ريبة په اصطلاح داسي خبري ته تعريض وايي اى ميل الكلام الى جانب آخر. او بل جواب دادى چي عز الدين بن عبد السلام وايي چي خبري واسطه دي و مقاصدو ته نو هر مقصود چي محمود وي يعني ښه كار وي او توصل وه هغه مقصود ته په صدق او كذب دواړو كېداسي، نو كذب پكښي حرام دى. مثلاً: يو سړى وړى وي كه بل چاته ووايي چي زه وږى يم لږ دوډى ماته راكړه! هغه يې وركړي، دا صدق دى، او كه دى ووايي چي ما ماښام لا ډوډى نه ده خوړلې، او دروغ وي، نو دا كذب حرام دى، او كه هغه مقصد ته رسېدل په دروغو كېداى سواى او په صدق رسيدګي نه سواى ورته كېداى فالكذب فيه مباح ان كان تحصيل ذالک المقصود مباحًا والكذب واجب اذا كان المقصود واجبًا. وكلام ابراهيم عليه السلام من القسم الآخير انتهى.

**پوښتنه**: پر اول جواب دا سوال واردېږي چي په حديث كي د بخاري او مسلم راغلي دي، عن ابى هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله صلى الله عليه وسلم لم يكذب ابراهيم الا ثلاث كذبات (دوه يې لپاره د رضاد خداى ج وه) (١) قوله اني سقيم (٢) بل فعله كبيرهم كما سيئاتي بيانها (٣) قوله لسارة هذه اختي. وقد مر الحديث مع بيانه في تفسير سورة الانبياء، نو حاصل د سوال دادى چي عليه الصلوة والسلام پر دوو سره ؤ اطلاق د كذب كړى دى؟

**ځواب**: د عليه الصلوة والسلام مراد، الكذب من حيث الظاهر المتبادر دى. او الضحاک رح تأويل د قول د ابراهيم ؑ دا كړى دى اى ساء سقم وهو ايضًا تعريض والا فهذ التأويل غير مناسب، او بعض علماء يې تأويل داسي كوي چي د چا په غاړي كي چي د مرګ وړ غندى وي هغه ناجوړى دى.

**بښتانه وايي**: مرګ را پسې دى خوشالي له كومه ده، له هم دې قسمه څخه دى چي يو سړى جوړ تيار وي نابېره مړسي. خلک د تعجب په لهجه وايي مات وهو الصحيح. يو صحرائي وويل اصحيح من الموت في عنقه.

**بوه سه**: چي مظهري رح وايي دا آيت يعني فنظر آه دلالت پر دې كوي چي نظر په علم النجوم كي او تعليم او تعلم يې روا ؤ په شريعت كي د ابراهيم ؑ لكن صار منسوخًا في شريعتنا حيث قال رسول الله صلى الله عليه وسلم من اقتبس شعبة من علم النجوم

اقتبس شبعة من السحر زاد ما زاد، رواه احمد و ابو داؤد و ابن ماجه من حديث ابن عباس رضي الله عنه، ورواه رزين وزاد المنجم كاهن والكاهن ساحر والساحر كافر، والمعنى ان ثلثتهم في الكفر بمنزلة واحدة انتهى قول المظهري رحمه الله.

**درويش وايي**: چي ابراهيم عليه السلام خو منجم نه ؤ كما مر حتى يدل عليه هذه الآية على جواز علم النجوم وتعليمه في شريعة ابراهيم، بلكې ابراهيم عليه السلام دا خبره له دې سببه وكړه چي قوم دده منجمين وه هغه خو كافران وه، د هغو كړه وړه ته خو اعتبار نشته فافهم، او په حديث كې د زيد بن خالد الجهني رضي الله عنه راغلي دي چي عليه الصلوٰة والسلام موږ ته د سهار لمونځ راكړى په حديبيه كي وروسته تر دې چي د شپې باران سوى ؤ، فلما انصرف اقبل على الناس، خلكو ته يې مخ راواړاوه. وقال هل تدرون ما ذا قال ربكم؟ قالوا الله ورسوله اعلم! قال عليه الصلوٰة والسلام قال يعني ربكم اصبح من عبادي مؤمن وكافر بي، نو كه چا وويل چي پر موږ باران وسو په فضل د خداى ورحمته فذالك مؤمن وكافر بالكواكب، واما من قال مطرنا بنوع كذا (يعني فلاني ستوري) فذالك كافر بي ومؤمن بالكواكب، دا حديث مظهري رحمه الله هم رانقل كړى دى، او متفق عليه يې هم بللى دى، او بل حديث د ابى هريره رضي الله عنه چي مسلم ته يې حواله كړې ده عن رسول الله صلى الله عليه وسلم قال ما انزل الله من السماء من بركة الا اصبح فريق من الناس بها كافرين ينزل (اى الله) فيقولون بكوكب كذا وكذا.

**درويش وايي**: چي زما مطلب دا دى چي مظهري رحمه الله كوشش دده كړى دى چي په اسلام كي هم و علم نجوم ته يوه نرى لاره پيدا كړي وهيهات د بعض احاديثو تأويل يې كړى دى.

**درويش وايي**: چي علامه بغدادي محمود آلوسي رحمه الله د روح المعاني (۲۰) صفحه د دغه مبحث په څېړلو بنائسته كړې ده، مظهري رحمه الله دا قول د امام ابو حامد محمد الغزالي قدس سره د خپلي نرى لاري وعلم النجوم ته راوړى دى چي امام غزالي رحمه الله وايي په خپل كتاب المنقذ من الضلال چي علم الطب والنجوم انزلها الله تعالى على بعض الانبياء عليهم السلام ثم بقى العلمان بأيدى الكفرة آه.

**درويش وايي**: چي دا خبره د امام غزالي رحمه الله و علم نجوم ته لاره نه پرانېزي، ولي كفارو علم الطب ته رواج وركړى الى يومنا هذا، يا په يوناني طبابت سره يا د ډاكټرى.

په مسلک سره چي هغه اغلب الاوقات علم ظني فائده کوي او علم نجوم کفار وهم خوښي کړي، مظهري رح دا خبره هم کړې ده چي منجمانو فرعون ته خبر ورکړی چي په بني اسرائيلو کي يو مولود پيدا کېږي چي زوال د سلطنت د فرعون به کړي، آه.

**درويش وايي:** چي هغو د نجوم له لاري فرعون ته خبر نه دی ورکړی، بلکې د کهانت له لاري کما هو المصرح في كتب التفاسير، کهانت خو په استراق السمع سره د شيطانانو خبره د ملکو په اسمانو کي ده، ولي چي د شيطانانو لارو اووه اسمانو ته ايله وه چي عيسیٰ عليه السلام نبي سو ددوی لاري له درو اسمانو څخه بندي سوې، او چي خاتم الانبياء محمد ﷺ نبي سو له ګردو اسمانو څخه يې لاري بندي سوې، صرف استراق السمع ور پاته سوه.

**پوښتنه:** نه ولي و علم النجوم ته يوه نرۍ لاره نه پرېږدې؟

**ځواب:** که نرۍ لاره پاته سي، نو بيا دغه نرۍ لار پراخه ګرځي، بيا به خلک د ټولو حوادثو او واقعاتو نسبت و ستورو ته کوي، له دې سببه حضرت النبوة ﷺ منع وکړه له دې لاري څخه کمامر.

په خپله مظهري رح وايي په توجيه کي د منع د رسول الله ﷺ لكن لما كان الاشتغال به اى علم النجوم موجبًا للمفسدة وهي اسناد الحوادث الى الكواكب وكان الاشتغال به اى بعلم النجوم اضاعة للاوقات لكونها غير نافعة في الدين نهى النبي ﷺ عن الاشتغال به انتهى.

**پوښتنه:** چي نو څه ضرورت دی چي دې علم ته لار پرېښول کېږي، او دا لوی مفسده چي مظهري رح ذکر کړه ورسره ده، مظهري رح په اخير کي وايي والظاهر ان الاشتغال بعلم النجوم كان جائزًا في دين عيسیٰ عليه السلام والا لم يشتغل به علماء النصارى انتهى؟

**ځواب:** که دا خبره صحيح هم سي په اسلام کي، حجة نسي کېدای لانه يحتمل النسخ كما يُدل عليه الاحاديث المروية المذكورة عن رسول الله ﷺ.

فَتَوَلَّوْا عَنْهُ مُدْبِرِيْنَ ﴿٩٠﴾

نو دوی څني راهي سول د خپل اختر د مراسمو پر خوا، (مدبرين) حال دی له ضمير څخه د تولوا.

**درويش وايي:** چي روح البيان او روح المعاني د مدبرين ترجمه په هارين سره کړې ده، د هرب سبب يې دا بيان کړې دی چي ابراهيم عليه السلام چي دوی ته وويل "اني سقيم" دوی ويېرېدل چي نبايده داسي ناجوړي د ابراهيم موږ ته سريان او تجاوز ونه کړي لکه طاعون. لکه ابن عباس رضي الله عنهما چي د سقيم ترجمه يې په مطعون سره کړې ده.

فَرَاغَ اِلٰٓى اٰلِهَتِهِمْ فَقَالَ اَلَا تَاْكُلُوْنَ ﴿٩١﴾

نو ابراهيم پټ داخل سو پر خدايانو د قوم (بغوي وايي چي (راغ) هغه ځای استعمالېږي چي فاعل د راغ مخفيًا وي په ورتګ کي) ابراهيم عليه السلام بتانو ته وويل يعني استهزاءً، ولي خورک نه کوئ له هغه طعام څخه چي ستاسي په حضور کي پروت دی. کما مر من ان قوم ابراهيم يأتون بالاطعمة الشهية ويضعونها بين ايدی الآلهته للتبرک ثم يترکون الآلهة والاطعمة ويذهبون الى اللعب في الصحراء.

مَا لَكُمْ لَا تَنْطِقُوْنَ ﴿٩٢﴾ فَرَاغَ عَلَيْهِمْ ضَرْبًا بِالْيَمِيْنِ ﴿٩٣﴾

څه سبب دی خبري نه کوئ (يا يو د بل سره يا زما د سوال جواب ولي نه راکوئ) نو يې حمله وکړه پر دوی په پټه (ضربًا) منصوب دی په فعل محذوف سره ای فضرب ضربًا يعني مفعول مطلق دی د راغ لان في راغ معنى ضرب. (باليمين) په راسته لاس سره لانه اقوى من اليسار غالبًا. او بعض مفسرين وايي چي له يمين څخه مراد قسم دی چي ابراهيم د مخه دا قسم کړی ؤ، تا الله لاکيدن اصنامکم بعد ان تولوا مدبرين. په قصه کي راغلي دي چي ابراهيم د ځان سره يو تبر يا سندان راخستی ؤ، ټول له کوچني کوچني بتان يې په ټوک ټوک کړه، يو هغه تر ټولو لوی بت يې پرېښو او تبر يا سندان يې د هغه مخ ته کېښښو او ابراهيم له بت خانې څخه ووتی.

فَاَقْبَلُوْٓا اِلَيْهِ يَزِفُّوْنَ ﴿٩٤﴾

(فاقبلوا اليه) په قصه کي راغلي دي چي قوم ابراهيم چي د خپل لهو او لعب څخه فارغ سوه بتخانې ته راغله بتان ټول له ريز مريز دي، نو مخ يې پر ابراهيم را واړوی او دوی پوښتنه له ابراهيم څخه وکړه بقولهم: من هذا بالهتنا انه من الظالمين، او دوی په دې پوه سوه چي دا کار به ابراهيم کړی وي، ولي چي د بتانو دښمن او له عبادت څخه يې منکر ؤ.

**درويش وايي:** چي ابراهيم خو وروسته تر ماتولو د بتانو ځان پټ کړی ؤ، نو څرنګه صحيح کيږي ترجمه د آيت په دې سره (نو مخ يې راواړوی)؟

**ځواب:** د دې سوال د دفع لپاره روح البيان وايي ای توجه المأمورون باحضاره يعني يو څو کسه دوی امر کړه چي ابراهيم حاضر کړي، نو هغه مأمورين د ابراهيم ته ورغله، دی چي يې حاضر کړی دوی ورته وويل من فعل هذا الخ؟ يعني تا دا کار کړی دی، په بل ځای کي د قرآن مبارک راغلي دي چي ابراهيم ورته وويل بل فعله کبيرهم الآية.

(يزفون) يعني يسرعون په ډېر تلوار پسي ولاړه، دا جمله حال ده له فاعل څخه د فاقبلوا.

قَالَ أَتَعْبُدُونَ مَا تَنْحِتُونَ ۝ وَاللَّهُ خَلَقَكُمْ وَمَا تَعْمَلُونَ ۝

ابراهيم ورته وويل (په استفهام توبيخي او انکاري، آيا تاسي عبادت کوئ د داسي شيانو چي تاسي په خپله تراشلي دي يا له ډېرو څخه يا له لرګو څخه) او خدای تاسي پيدا کړي ياست او ستاسي اعمال.

**درويش وايي:** چي عمل په معنی د مصدر دی چي په فارسي يې کردن بولي، او په پښتو يې کول (يعني کار کول) بولي، د اهل السنة والجماعة په نېز عمل په معنی مذکور مخلوق د خدای ﷻ دی يعني بنده ته خدای اقتدار ورکړی دی پر عمل مصدري وهو ظاهر، نو مظهري د دې غرض لپاره وايي والظاهر ان ما مصدرية او دا جمله حال ده له فاعل څخه د تعبدون، فالمعنى والحال ان الله خلقكم وخلق اعمالكم بالمعنى المذكور فمالكم تتركون عبادة الخالق المطلق وتؤثرون عبادة المحتاج اليكم چي هغه بتان دي چي ستا و نحت ته محتاج دي كما مر، وتعبدون ما تنحتون. او دا جمله لپاره د تاکيد د انکار او د توبيخ بعد توبيخ ده، والاحتجاج من جانب ابراهيم على قومه يعين لاينبغي تلك العبادة، او روح المعاني او روح البيان وايي چي ما موصوله دی عائد يې محذوف دی ای تعملونه (ضمير د عائد محذوف دی) له ما تعملون څخه مراد بتان دي كما هو الظاهر.

**سوال:** کلمه د ما موصوله ګرځول خو عين مذهب د معتزله ؤ دی، كما قال الزمخشري المعتزلي في الكشاف، ولي چي مذهب د دوی دا دی چي عمل په

مصدري مخلوق د بنده دی او عمل په معنی د معمول چي بتان دي مخلوق د خدای دي. نو مظهري له دې سببه ما مصدريه ګرځولی دی تاچي د عمل په معنی مصدري خالق يې خدای سي، كما هو مذهب اهل السنة والجماعة او ما موصوله يې مذهب د معتزله وګرځولی دی، رلکن درویش وايي چي روح المعاني او روح البيان له دې سواله غافله نه دي حيث قال صاحب روح المعاني وروح البيان چي که ما موصوله سي او مراد ځني بتان سي چي مواد د هغوله جواهرو څخه دي او صورت يې په نحت د دوی حاصل سو يعني المشركين وكون المواد المذكورة مخلوقة لله ﷻ ظاهر. ويقول المعتزلة ايضًا ذالك وكون الصور والاشكال ككك اى مخلوقة لله ايضًا ظاهر مع كونها بفعلهم اى النحت باعتبار ان الاقدار على الفعل (وهو العمل بالمعنى المصدري) وخلق مايتوقف عليه ذالك الاقدار من الدواعي والاسباب (لګه کولنګ او تېشه وغيرهما منه تعالى اى مخلوقة له تعالى وكون الاصنام معمولة باعتبار الاقدار الذي هو المصدري يعني قدرت دادن اشكال انتهى عبارة روح المعاني) وقال الشيخ ابراهيم الكوراني ؒ في المتعة للمسئالة المهمة (چي تصنيف د علامه كوراني ؒ دی) صريح الكلام (اى الآية) دال على ان الله تعالى خالق للاصنام واجزائها (چي مواد د بتانو دي او اشكال د بتانو دي) ومعلوم ان الاشكال انما حصلت بتشكيل المشركين فيكون التشكيل اى شكل داون (الذی هو المعنى المصدري) عين خلق الله انتهى كلام الكوراني ؒ بقدر الضرورة في هذه المسئلة.

**درويش وايي**: چي دا وتطبيق د آيت قرآني د مذهب سره د اهل السنة والجماعة. والله اعلم.

قَالُوا ابْنُوا لَهُ بُنْيَانًا فَأَلْقُوهُ فِي الْجَحِيمِ ﴿٩٧﴾

وويل (يعني مشركانو د قوم ابراهيم چي له دليل څخه عاجزه سوه) جوړ كړئ تاسي د ابراهيم لپاره يعني دده د عذاب لپاره يوه ابادي، نو ابراهيم واچوئ په اور كي چي سخت بلېږي كذا في القاموس.

**درويش وايي**: چي دا قانون دی چي تر اوسه پاته دی چي سرسخت دښمن چي له دليل څخه عاجزه سي، نو جنګ ته اماده سي.

**فائده:** لام په الجحيم کي بدل دی له مضاف اليه څخه ای جحيم ذالک البنيان
چي اور پکښې بل وي، مقاتل وايي چي قوم د ابراهيم په امر د نمرود په ډبرو يې
دېوال جوړ کړی چي جګوالی يې دېرش (۳۰) ګزه، او پسور يې شل (۲۰) ګزه ؤ، د
لرګيو يې ډک کړی او اور يې ورواچاوه. له ابراهيم علیه السلام څخه يې قميص وکښی
لاسونه او پښې يې ور وتړلې.

**درويش وايي:** چي دا قصه ډېره اوږده ده چي تفصيل يې په تفسير کي د سورة
الانبياء تېر سوی دی، لکن ما لايدرک کله لايترک کله. روايان د قصې وايي چي دا
واقعه د بابل په مځکه کي د نمرود الجبار په امر واقع سوې ده، لکن نمروديانو چي د
بټو خرې ته اول اور ورواچاوه چي وروسته به ابراهيم وغورځوو، نو د اور لمبې چي
پورته سوې نژدې ځوک نسوای ورتلای، نو ابراهيم به يې څرنګه ورغورځولای، که
د بټو خرې ته دوی اور نه وای اچولی اول به يې د ابراهيم لاسونه او پښې تړلي وای
پر بټو به يې ايښی وای بيا به يې اور وراچولی وای، خير دوی حيران وه چي اوس به
څه په کوو، نو په دې وخت کي شيطان د سړي په صورت کي ورته راغلی له نژدې غره
څخه او دوی ته يې وويل چي د منجنيق په ذريعه يې ورو غورځوئ چنانچه دوی هم
هغسي وکړه. اور ته نارسيده جبرائيل و ابراهيم ته راغلی او ورته وه يې ويل هل
لک من حاجة؟ ابراهيم ورته وويل: اما اليک فلا. تا ته خو حاجت نه لرم، جبرئيل
ورته وويل چي خدای ته سوال وکړه چي له اوره نجات در کړي. ابراهيم ورته وويل
حسبي من سؤالي علمه بحالي. کافي دی ما لره له سوال څخه علم د خدای زما په حال
سره وعند ذالک قال الله تعالى: وقلنا يا نار كوني بردًا وسلامًا على ابراهيم. راويان
د قصې وايي چي اور صرف د ابراهيم د لاسو او پښو تناؤ (مرانده) وسوو بس په امر
د خدای جل جلاله جبرئيل دستي په منځ کي د اور ځای خالي کړی او ابراهيم ته يې د جنت
قميص راوړی په ده يې واغوستی.

**درويش وايي:** چي دا هغه قميص دی چي يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم عليهم السلام
ته په مرور د زماني ورسېدی او يعقوب هغه جنتي قميص د خپل زوی يوسف په
غاړه کبت کړی تعويذ يې ګرځولی ؤ، او هغه وخت چي وروڼو دده قميص وکښی
چي پلار ته يې په وينو رنګ وروړی چي يوسف لېوانو وخوړی جبرئيل ورته

راغلی هغه تعويذ يې ورخلاص کړی او هغه قميص يې په يوسف واغوستی، راويان د قصې وايي چې نمرود الجبار چې دا حال وليدی، نو ابراهيم ته يې وويل ان ربک لعظيم ستا د خدای خو لوی شان او قدرت لري زه به ډېر غوايي او پسونه ذبح کړم لپاره د تقرب ستا و خدای ته او داغسي يې هم وکړه چې په زرو حيوانات يې ذبح کړه لکن فائده يې ونه کړه، ولي دی پر خپل اعتقاد يعنې د خدايي دادو او خپل پر سوء عمل باقي ؤ.

فَاَرَادُوْا بِهٖ كَيْدًا فَجَعَلْنٰهُمُ الْاَسْفَلِيْنَ ﴿۹۸﴾

د دوی نمروديانو و ابراهيم ته د شر اراده وه (يعنې په اور يې وسوځي تاچې خپل عجز له عوامو څخه پټ وساتي) موږ وګرځول دوی کښته يعنې ذليل چې د دوی کيد زائل سو او سره د هغه د ابراهيم علو شان او صدق د دعوی د نبوت يې اظهر من الشمس دوی ته ښکاره سو، حيث جعل النار عليه بردًا وسلامًا کمامر بيانه.

وَقَالَ اِنِّيْ ذَاهِبٌ اِلٰى رَبِّيْ سَيَهْدِيْنِ ﴿۹۹﴾

او وويل ابراهيم (چې له اوره راووتی سالم، او دا معجزه د ده نمرود او نمروديانو هم وليدل بيا يې هم ايمان را نه وړی) زه هجرت کوم له دار الکفر څخه او ځم هغه ځای ته چې زه خدای امر کړی يم چې هورې د خدای عبادت په بېغمي سره وکړم، ژر دی چې خدای به ماته هدايت د هغه ځای وکړي چې زما صلاح د دين پکښې وي، وهو الشام.

**مسئله:** دا آيت دليل دی د دې چې سړی دې هجرت کوي له ديار الکفر څخه چې دين او اسلام خپل په خطره کې بولي و داسې مځکې ته چې وظائف د خپل دين او طاعت د خدای بېله چون و چرا کولای سي هجرت وکړي، اول چې هجرت يې کړی دی ابراهيم ؑ ؤ، راوي وايي چې ابراهيم له بابل څخه ووتی د شام پر خوا سره د کور والا چې ساره يې نوم ؤ وکانت من اجمل نساء عصرها، نو په روايت د احمد په مسند کې او د بخاري او مسلم په روايت عن ابی هريرة ؓ چې هغه د نبي کريم ﷺ څخه روايت کړی دی: بينا هو (يعنې ابراهيم) وسارة اذا اتی (چې تېرېدل) علی جبار من الجبابرة، چې نوم يې په شرح کې د بخاري سنان بن علوان

او بعض وايي چې نوم يې عمرو بن امرء القيس ؤ، يو ځل له عسکرو څخه د جبار مذکور راپور ورورسی چې هورې يو سړی دی چې د هغه سره يوه ښځه ده من احسن النساء، نو هغه جبار ابراهيم ورو غوښتی چې دا ستا سره ښځه ستا څه ده، ابراهيم ورته وويل چې زما خور ده.

**پوښتنه:** ولي ابراهيم ورته ويل چې زما خور ده؟

**ځواب:** ابراهيم په مذهب د جبار خبرؤ چې ښځه چې مېړه کوي اول به بادشاه يعني جبار ته ورځي، که د هغه خوښه سوه هغه به يې ماينه کړي او که يې نه وه خوښه د مېړه سره به د نکاح اجازه ورکړي، او چې مېړه يې نه کولای کاريې ته په درلودی، نو جبار ورته وويل چې ورسه ښځه راواستوه چې زه له هغې څخه پوښتنه وکړم، ابراهيم چې راغلی ساره ته يې وويل يا سارة ليس على وجه الارض مؤمن غيري وغيرک.

**درويش وايي:** چې له دې قول څخه دا معلومه سوه چې جبار ته چې دا وويل چې دا ښځه زما خور ده اخوة في الدين دی، دده دا مراد ؤ، دې ته په فارسي کي (صدق دروغ نما) وايي کمامر هذا التأويل في حديث لم يكذب ابراهيم الا ثلاثة كذبات.

ابراهيم ساره ته وويل حې دې جبار چې ماته وويل چې دا ښځه دي څه؟ ما ورته وويل چې دا مي خور ده چې ته زما تكذيب ونه کړې يعني داسي ورته ووايي چې هغه سړی زما مېړه دی، نو يې د عسکر سره راهي کړه و دربار ته د جبار (او ابراهيم پر لمانځه ودرېدی) جبار چې د ساره حسن او جمال وليدی لاس يې ورو غځاوه (يعني بېله پوښتنې چې غېږې ته يې راکش کړي) فأخذ وفي رواية فغط (يعني خپه کړل سو لکه تر ستوني چې يې څوک ونسي پښې يې غورځولې) نو يې ساره ته وويل: ادعى الله لي ولا اضرک (ته زما لپاره خواست وکړه چې زه جوړ سم تا ته ضرر نه رسوم، يعني زنا نه درسره کوم) ساره چې خدای ﷻ ته خواست وکړی جبار جوړ سو، بيا يې له طاقته ووتل لاس يې وروغځاوه، فأخذ وفي رواية فغط مثل الاول او اشد، بيا يې ساره ته وويل چې ته دعاء راته وکړه چې زه جوړ سم ضرر نه دررسوم فدعت الله فاطلق، ثم ثالثا فاخذ اشد من الاولين، بيا يې ساره ته وويل يعني مثل الاولين، اخير جبار بعض ساتندويه عسکر راوغوښتل، فقال الجبار: انکم لم تأتيني بانسان انما اتيتني بشيطان يعني جن دی، نو د جبار يوه مينځه وه چې

هاجره یې نوم ؤ جبار و ساره ته ورو بخښل. نو ساره سره د مینځې هاجره راغله، ابراهیم علیه السلام پر لمانځه ولاړ ؤ په عین حال کې یې اشاره ورته وکړه، چې د اشارې مطلب دا ؤ په عربي مهیم چې معامله د جبار او ستا تر منځ پر څه تمامه سوه، ساره ورته وویل: رد الله کید الفاجر و اخدمني هاجر (خدای پاک رد کړی مکر د فاجر یعني الجبار او ماته یې د خدمت لپاره هاجرؑ راوبخښل)

**درویش وایي:** چې وروسته یې تفصیل واره قصه ورته وکړه.

**فائده:** هاجره د اسماعیل علیه السلام مور ده، وروسته ساره چونکه عیال نه درلودی یعني عقیم وه دد ې په خیال هاجرې ابراهیم علیه السلام ته وبخښل و قالت لابراهیم ان هاجر امرئة مرغوبة ماتاته دربخښلې ده (په امید ددې چې ګوندي خدای ابراهیم ته یو زوی ورکړي) نو ابراهیم چې جماع ورسره وکړه (یعني وروسته تر دې چې ابراهیم هاجره ازاده کړه او په نکاح یې کړه) څو زمانه وروسته خدای ﷻ و هاجرې ته زوی ورکړی، چې ابراهیم علیه السلام نوم اسماعیل پر کښېښو. دا هغه دعاء د ابراهیم خدای قبوله کړه:

رَبِّ هَبْ لِي مِنَ الصّٰلِحِينَ ﴿١٠٠﴾ فَبَشَّرْنٰهُ بِغُلٰمٍ حَلِيمٍ ﴿١٠١﴾

ای هب ولدًا کائنًا من الصالحین (مقاتل وایي چې دی ارض مقدس ته د شام ورسېدی سوال د ولد یې وکړی) مو بړ زېری وکړی ده ته یعني ابراهیم ته یعني ملکي مو وروا ستولې د زېري لپاره، له غلام څخه مراد زوی دی، د حلیم معنی صاحب قاموس داسي کړې ده: ذا اناة (یعني صبر او حلم به لري) و عقل (یعني عقل کامل به لري) یعني اسماعیل علیه السلام وهو الصحیح.

**درویش وایي:** چې له من الصالحین څخه چې جمع مذکر ده دا معلومېږي چې د ابراهیم په نیت کې نر ؤ یعني زوی ؤ.

**درویش وایي:** چې په دې مسئله کې لوی اختلاف دی چې له غلام حلیم څخه مراد څوک دی یعني اسماعیل دی او که اسحاق دی، او ذبیح الله کوم یو له دوی څخه دی. مفسرین لکه روح المعاني، روح البیان، مظهري او نور وایي چې صحیح دا ده چې اسماعیل دی والیه ذهب ابن عمر رضی الله عنه وهو قول سعید بن المسیب والشعبي والحسن البصري ومجاهد والربیع بن انس ومحمد بن کعب القرظي والکلبي وهو روایة عن عطاء بن ابی رباح ویوسف بن مالک رحمهم الله عن ابن

عباس ؓ واخرج الواقدي وابن عساكر عن طريق عامر بن سعيد عن ابيه انه كانت سارة تحت ابراهيم يعني دده زوجه وه او ډېره زمانه يې د ابراهيم ؑ سره تېره کړې وه عيال يې نه ؤ، ساره چې دا بې اولادې د ابراهيم ؑ وليدل هاجره قبطيه يې ورته ورېښل كمامر عنقريب فولدت له اسماعيل ؑ فغارت من ذالک سارة (يعني کست يې په وسو) او دا قصه موږ په سورة ابراهيم کې ذکر کړې ده، نو ابراهيم ؑ په امر د خدای ؑ هاجره او زوی يې چې رضيع ؤ شپلې ته د مکې يې راوړه هوري يې پرېښول كما في حديث البخاري وقد مر في سورة ابراهيم ؑ، غرض دا دی چې اول زوی د ابراهيم ؑ اسماعيل ؑ ؤ، حتی په تورات کې راغلي دي چې اسماعيل ؑ چې زوکېدی ابراهيم ؑ د شپږاتيا (۸۶) کالو ؤ، او اسحاق ؑ چې زوکېدی ابراهيم ؑ د سلو (۱۰۰) کالو ؤ، نو په منځ کې د اسماعيل ؑ او اسحاق ؑ څورلس (۱۴) کاله فاصله ؤ، او هم په تورات کې راغلي دي چې په ابراهيم ؑ خدای ؑ امتحان كاوه، نو يې وويل يا ابراهيم! ده ورته وويل لبيک، قال الله تعالى خذ ابنک وحيدک الذي تحبه هغه قرباني کړه الخ، دا معنی د وحيدک چې معنی يې داده چې ته بل زوی نه لرې لايصدق على اسحاق حين الامر بالذبح لان اسماعيل كان موجودًا، او داغه رنګه الذي تحبه اليق دی په اسماعيل سره دی لانه اول ولد له د اول زوی سره د سړي محبت زيات وي غالبًا تر وروسته اولاد.

**فائده:** درويش و تورات ته حواله ورکړه لانه کتاب لليهود ومع ذالک يهودان ددې دعوی کوي چې ذبيح اسحٰق ؑ دی بغضًا للعرب چې اسماعيل ؑ يې نيکه دی، بغوي ؒ وايي چې محمد بن كعب القرظي ؒ وايي چې عمر بن عبد العزيز د يو سړي د علماؤ څخه د يهودو چې ايمان يې راوړی ؤ (وحسن اسلامه) پوښتنه وکړه چې ای ابنی ابراهيم ؑ امر بذبحه؟ قال (يعني هغه سړي چې اسلام يې راوړی ؤ وويل) اسماعيل ؑ، ثم قال يا امير المؤمنين ان اليهود يعلم ذالک (يعني چې ذبيح اسماعيل دی) ولكنهم يحسدونكم يا معشر العرب على انيكون اباكم يعني اسماعيل ؑ كان من امر الله ابراهيم ؑ فذبحه، او دوی وايي چې ذبيح اسحٰق ؑ دی، فقولهم ذالک كذب بحت سببه الحسد مع العرب كما لايخفى.

**درويش وايي:** چې قائلان د ذبح د اسحٰق ؑ هم ښخي ډېر دي ونسبه القرطبي

للاكثرين واختاره فقيه ابو جعفر ابن جرير الطبري ؒ وجزم به القاضي عياض في الشفاء والسهيلي في التعريف والاعلام او دوی دلائل هم ويلي دي او د هغو جواب روح المعاني ورکړی دی او په بعض احاديثو کي نسبت د ذبح د اسحاق ؑ عليه الصلوة والسلام ته کړل سوی دی. هغه احاديث روح المعاني په سبب د ضعف اسناد ورد کړي دي.

**فقير وايي**: چي مسئله د ذبح د اسماعيل ؑ يا د اسحٰق ؑ روح المعاني په ډېر تفصيل او په سوال او جواب وبيان د مذاهب العلماء بنه څېړلې ده چي نقل د ټوله مبحث د روح المعاني ځخه پر متعلمينو د تفسير ايوبي به ډېر بوج سي، فلهذا ترکناه، قال الاصمعي ؒ سئلت ابا عمر بن العلاء عن الذبيح اهو اسماعيل او اسحٰق؟ قال يا اصمع اين ذهب عقلک متى كان اسحٰق بمکة انما كان اسماعيل ؑ وهو الذي بني البيت الشريف مع ابيه، او مظهري ؒ دا دليل پر ذبح د اسماعيل ؑ راوړی دی چي هغه دوه ښکره د جنتي پسه چي اسماعيل ؑ يې له ذبح ځخه د ابراهيم ؑ خلاص کړی هغه پر کعبه شريفه معلقين وه په تصرف کي د اولاد د اسماعيل تر هغو پوري چي کعبه شريفه د حجاج بن يوسف چي د يزيد پليد له خوا مأمور ؤ پر نيولو د عبدالله بن الزبير ﷺ چي مکې والو د هغه سره بيعت د خلافت کړی ؤ. او عبدالله بن الزبير ﷺ په حرم محترم کي پناه اخستې وه، نو حجاج بن يوسف د منجنيق په ويشتلو سره کعبه شريفه د مځکي سره برابره کړه، او هغه دوه ښکرونه هم وسول. او عبدالله بن الزبير ﷺ يې د زمزم پر غاړه ذبح کړی، او مور يې اسماء بنت ابی بکر ﷺ چي د ام المؤمنين عائشي ﷺ خور وه ژوندۍ وه او دده په ذبح کي دا حاضره سوه چي تخمينًا د نيوي (۹۰) کالو په عمر کي وه، کله چي دې وليدل چي ددې د زوی عبدالله پر غاړه چاړه کش سوه او وينه د هغه وبهېدل دې ته هم حيض ورغلی او هم تر تيو يې شيدې وبهېدلې، نو دې داسي وويل چي زويه هغه ځای چي ته قبل الولادة پکښي خوندي وې او هغه دو تيو زما چي تا شيدې ځني رودلې دوی درپسي وژړل زه نو نه درپسي ژاړم، انا لله وانا اليه راجعون يې ووايه راهي سول. او مظهري ؒ د بغوي ؒ پر خلاف هيڅ وخت داسي رد نه ؤ کړی لکه په دې مسئله کي، عبارة البغوي ؒ ذهب الى ان الذبيح هو اسحاق من

الصحابة عمر و علي وابن مسعود وعكرمة ﷺ ومن التابعين واتباعهم كعب الاحبار وسعيد بن جبير وقتادة ومسروق وعطاء ومقاتل والزهري والسدي آه مظهري وايي فلعل من قال منهم هذا القول يعني چي ذبيح اسحاقؑ دی اعتمد على اخبار اليهود من التورات فيما بين الناس، قال المظهريؒ والدليل على كون اسماعيلؑ مذبوحًا انه هو المولود اولاً بعد هجرت ابراهيمؑ الى الشام اجماعًا وقد عطف الله قوله فبشرناه بغلام حليم، وقال اني ذاهب الى ربى سيهدين بالفاء الموضوع للتعقيب بلا فصل باجماع النحات، واما اسحقؑ فقد ولد بعد ذالك بتراخ والمأمور بذبحه هو المبشر به فلما بلغ معه السعي كما سيئاتي الخ.

**درويش وايي:** نه قاضي يم نه مفتي يم .... خوشه جمع ايوبي يم
د حاسد ژبه دي پرې سي چي بهتان پر فقير وايي

## فَلَمَّا بَلَغَ مَعَهُ السَّعْيَ

**يوه سه:** چي دا جمله عطف ده پر مقدر باندي تقديره فولد الغلام فلما بلغ السعي معه يعني دا سن ته ورسېدی چي د ابراهيمؑ سره دي سعي په اعمال کي دده كومک ورسره وکړي، قيل كان ثلاث سنه (۱۳) كاله وقيل (۷)

**يوه سه:** چي معه چي ظرف دی په قول د مظهريؒ متعلق دی په محذوف پوري لا بالسعي المذكور لانه مصدر او نحات وايي چي مصدر ضعيف العمل دی معمول تر ده نسي دمخه كېدای، لكن روح المعاني وايي چي معمول خو دلته ظرف دی وقد اشتهر ان الظرف يكفيه رائحة الفعل معرفًا كان او منكرًا د معرف مثال خو دا موجوده آيت دی او د نكره مثال قوله تعالى ولاتأخذكم بها رافة ولي چي جار او مجرور په دې آيت چي حكم د ظرف دی معمول د رافة متاخر دی چي مصدر هم دی والى هذا ذهب الرضي في شرح الكافية، نو د مظهريؒ قول ممنوع دی.

**درويش وايي:** چي مزيد تفصيل په روح المعاني کي دي مطالعه کړل سي او روح البيان هم داغه مختاره کړې ده چي معه متعلق او معمول د السعي او علت يې هم داغه ويلی دی لانه ظرف يكفيه رائحة الفعل انتهى.

قَالَ يٰبُنَيَّ اِنِّيْٓ اَرٰى فِي الْمَنَامِ اَنِّيْٓ اَذْبَحُكَ

وويل ابراهيم خپل زوی ته چي اسماعيل ؑ و اې زويکه زه وينم په خوب کي چي زه تا ذبح کوم، مفسرين وايي چي يا دغه عبارت مذکور يې په خوب ليدلی ؤ، يا خوب نور الفاظ وه چي دا يې تعبير ؤ.

**پوه سه:** چي ما تفسير په زويکه سره وکړ، اشاره ودې ته ده چي بني د تصغير لفظ دی په عربي کي تصغير ګاهي د تحقير لپاره وي او ګاهي د شفقت د اظهار لپاره راځي. دلته په دې آيت کي لپاره د اشفاق دی لکه پښتانه ګاهي و زوی ته وايي زويه او ګاهي ورته وايي زويکه چي پښتو تصغير دی لپاره د اشفاق ای اظهار الشفقة.

**پوښتنه:** ابراهيم خو په شام کي او اسماعيل خو په مکه کي ؤ، نو ده څرنګه اسماعيل ته دا وينا وکړه او سره ددې چي د شام او د مکې تر منځ ډېر مسافت ؤ؟

**ځواب:** تاريخ صحيح دا وايي چي د ابراهيم چي به د هاجر او اسماعيل د ليدو شوق وسو پر خپل آس چي د براق په نامه ياديدی په سبب د تېز رفتاری سهار وختي به پر براق سپور سو غرمه به مکې ته را ورسېدی قيلوله به يې په مکه کي وکړه، تر زوال وروسته به له مکې څخه روان سو ماښام ته به شام ته ورسېدی.

مصرع:..... باکريمان کارها دشوار نيست

**درويش وايي:** چي اوس هم په يوه ناحيه کي د مکې نوشته دي (طريق ابراهيم) نو چي اسماعيل ودې سن ته ورسېدی يعني فلما بلغ معه السعي کما مر او ابراهيم په ده کي عبادات د خدای او ترک د محرماتو وليدی اميد د سعادت يې ورته پيدا سو، امر في المنام ان يذبحه، قصه دا وه چي ابراهيم په شپه د ترويه يعني اته (۸) د ذوالحجه دا خوب وليدی. سهار چي راويښ سو ګرده ورځ يې په دې کي فکر واهه يعني متردد ؤ چي دا خوب به د خدای ﷻ د خوا وي او که د شيطان (ځکه دا ورځ ترويه بولي چي معنی تردد او فکر وهل دي) ماښام يعني نهه د هغې مياشتي يې بيا دا خوب وليدی. ابراهيم چي پوه سو چي د خدای د خوا دی ځکه تر اوسه نهه د ذی الحجه ته عرفه وايي. نو کله چي شپه د لس د دغي مياشتي سوه او خوب يې وليدی چي يو پسه ذبح کړه، ابراهيم پوه سو چي دغه ورځ به د زوی د ذبح ورځ دي

چي تر اوسه پورې يې يوم النحر بولي، قتادةؒ وايي چي درې ورځي پرله پسې يې دا خوب وليدی نو اسماعيلؑ ته يې د خوب اظهار وکړی.

**فائده:** د آيت له هغه ځای څخه چي ابراهيمؑ خدای ﷻ ته خواست وکړی (رب هب لي من الصالحين فبشرناه بغلام حليم) دا معلومه سوه چي مبشر به اسماعيلؑ ؤ او دا اتفاقي خبره ده چي مبشر به هو المذبوح، نو ځرنګه به مبشر به او مذبوح اسحاقؑ سي لکه يهودان چي وايي او سره ددې چي زېری د اسحاقؑ په هغه آيت کي راغلی فبشرناها (ای سارة) باسحاقؑ ومن وراء اسحاقؑ يعقوبؑ يعني چي د اسحاقؑ زوی دی، نو ځرنګه ابراهيمؑ په ذبح د اسحاقؑ امر سوی دی چي صرف مراهق ؤ چي يعقوب بن اسحق په کتم العدم کي ؤ. فافهم هذه الفائدة السنية.

**درويش وايي:** چي بعض کسان وايي چي ابراهيمؑ چي هغه خواست وکړی رب هب لي من الصالحين او خدای يې اجابت د خواست وکړی وبشر به، ابراهيمؑ وويل هو اذا ذبيح الله (زه به يې ذبح کوم لپاره د رضا د خدای)، نو چي اسماعيلؑ پيدا سو وبلغ معه السعي نو ابراهيمؑ ته وويل سول يعني د خدای ﷻ له خوا (اوف بنذرک) په نذر دې وفا وکړه يعني اسماعيلؑ ذبح کړه.

**فقير وايي:** چي دا قول له نقل او عقل څخه خلاف دی کما لا يخفی.

**فائده:** دا خبره ابراهيمؑ و اسماعيلؑ ته چېري وکړه! په دې کي اختلاف دی بعض وايي ده اسماعيلؑ ته وويل چي دا رسۍ او چاړه درواخله چي د غي شعب يعني درې (چي مابين الجبلين ته وايي) شايد بوټي به راوړو، چي په شعب ثبير کي سره دوه په دوه سوه، نو يې دا خبره ورته وکړه اني ارٰی في المنام آه. او بعض مفسرين وايي چي ابراهيمؑ اسماعيلؑ ته وويل چي دا چاړه او رسۍ درواخله چي يو ځای به خيرات وکړو (چي په عربي قربان ورته وايي) اسماعيلؑ هم داغسي وکړه، نو ابراهيمؑ په منځ کي د غرو د منۍ روان ؤ چي يو محفوظ ځای يې پيدا کړی چي هورې اسماعيلؑ ذبح کړي، نو اسماعيلؑ ورته وويل يا ابت اين قربانک، وويل ابراهيمؑ (يابني اني ارٰی آه)

فَانْظُرْ مَاذَا تَرٰى ؕ قَالَ یٰۤاَبَتِ افْعَلْ مَا تُؤْمَرُ

ته د ځان سره فکر وکړه چي ستا څرنګه رایه یې ده (یعني په ذبح راضي یې یا نه، اسماعیل ؑ ته خدای ؑ صبر جمیل په امید د اجر جزیل ورکړی او داسي یې خپل پلار ابراهیم ؑ ته وویل بلا تأمل وتوقف) ای بابا زما ته وکړه هغه کار چي ته په امر سوی یې.

**فائده**: چونکه نداء و پلار ته کثیر الوقوع وه نو ځکه الفاظ د نداء یې هم ډېر دي یا ابی یا اباه یا ابت یا ابتی یا ابتاه.

**فائده**: کلمه د ما موصوله ده عائد یې محذوف دی، والتقدیر ما تؤمر به او یا ما مصدریه دی یعني امرک بمعنی مأمورک.

**فائده**: له دې قصې څخه دا معلومه سوه چي رؤیا یعني خوبونه د انبیاء علیهم السلام وحي دي واجب الامتثال دي، وقد روی عبد بن حمید عن قتادة رض ان رؤیا یعني خوبونه د انبیاء وحي دي، وروی البخاري في الصحیح عن ابی سعید الخدري رض و مسلم عن ابن عمر رض وابی هریرة رض ان الرؤیا الصالحة جزء من (۴۶) جزء من النبوة.

**درویش وایي**: وجه ذالک چي آنحضرت ﷺ قبل النبوة شپږ میاشتي صحیح خوبونه لیدل او درویشت (۲۳) کاله دده د نبوت زمانه وه، نو شپږ میاشتي د (۲۳) کالو چي زمانه د نبوت وه یوه حصه کېږي، ولاشک ان رؤیا الانبیاء کلها صالحة لایحتمل الفسادۀ واما رؤیا د غیر الانبیاء فبعضها صحیحة وبعضها کاذبة.

سَتَجِدُنِیْۤ اِنْ شَآءَ اللّٰهُ مِنَ الصّٰبِرِیْنَ ﴿۱۰۲﴾

نژدې ده چي ته به ما ووینې که د خدای ؑ رضا وه له صبر کوونکو څخه پر ذبح باندي، اسماعیل ؑ چي تفویض د امر و خدای ؑ ته وکړی تبرکًا و اظهارًا لعجزه علی مقتضی البشریة علی الذبح بدون مشیة الله، وایضًا هذه الجملة عند الوعد بالامور المستقبلة من عادة عباد الله الصالحین.

**نکته**: سوال دا پیدا کېږي چي اغلب وحي د انبیاء علیهم السلام خو په ویښه وي، نو څه حکمت د خدای ﷻ دی چي ابراهیم ؑ یې په خوب کي په ذبح د زوی امر کړی؟

**ځواب**: حکمت الهی دا ؤ چي خدای ؑ مبادرة د ابراهیم ؑ او دده د زوی او کمال انقیاد ددوی او اخلاص ددوی وعالم الملائکة او عالم الانس ته وښیي.

# فَلَمَّآ اَسْلَمَا وَتَلَّهٗ لِلْجَبِيْنِ ۝

نو هغه وخت چي تسليم سوه ابراهيمؑ او زوی دده او منقاد سوه و امر ته د خدایؑ (د سلم او استسلم معنی يوه ده) "وتله للجبين) يعني غخاريې کړی پر مخکه، ابن عباسؓ وايي پرې يې ايستی علی جنبه.

**بوه سه:** چي تندی په مابين کي د جنبين دی عن يمين الجبهة ويسارها.

**فائده:** دغه پرې ايستل دده عند الصخرة بمنیٰ او في الموضع المشرف (چي لوړ دی) علی مسجد منی او في المنحر الذي ينحر فيه اليوم، په صحيح حديث کي راغلي دي چي ابليس و ابراهيمؑ ته وراندي سو په نېز د جمره عقبه چي ستا خوب ليدل د اضغاث احلام له قسمه څخه ؤ، فرماه ابراهيمؑ سبعة حصيات يعني شيګو سره چي ابليس له دغه ځايه ولاړی بيا د هغه بل ځلي سره ورته ودريدی ثم مع الثالث ومن ثم شرع رمی الجمرات في الحج فهو من واجبات الحج يجب بترکه الفدية بالاتفاق کما في کتب الفقه.

**واقعه دل خراش:** راويان د قصې وايي چي بغويؒ روايت کړی دی چي ابراهيمؑ ته خپل زوی وويل: يا ابتی ما ټينګ په رسۍ وتړه حتی چي زه لغتي ونه وهم، او خپل کالي دي ښه در ټول کړه چي زما په وينو رنګ نه سي زما ثواب به کم سي او زما مور چي ستا کالي زما په وينو رنګ ووينې غمجنه به سي او چاړه ښه تېره کړه او ژر ژر يې زما پر حلق تېروه چي پر ما زکندن اسان سي فان الموت شديد خصوصًا عند الذبح. او چي زما مور ته ورغلې زما سلامونه پر ووايه او که ستا خوښه وه زما په وينو رنګ قميص زما مور ته وروړه چي ددې تسلي په وسي، قال ابراهيمؑ نعم العون انت يابنيّ علی اجراء امر الله يعني الذبح، ففعل ابراهيم ما قال ابنه، وروسته يې پر مخ مچ کړی وهو يبکی، راوي وايي چي ملائکه د اوو اسمانو په درياب کي د تعجب او تحير غرقي وې ودې زوی او پلار ته، بيا ابراهيمؑ د زوی پر حلق چاړه کښېښول او چابک چابک يې پر تېرول چړې کار نه کاوه يعني د اسماعيلؑ پوست يې لا نه کړی پرې، اسماعيلؑ به ورته وويل چي پلار جانه زه نه يم ذبح سوی چاړه ښه تېره کړه، راوي وايي چي دوه درې واره يې چاړه ښه تېره کړه خو هيڅ کار يې نه کاوه.

**پوه سه:** چي ابن جرير وابن ابي حاتم له سدي څخه روايت کړی دی چي ابراهيم په ټوله قوت خپل چاره څو واره پر حلق د اسماعيل تېره کړه خدای د ده حلق لګه د میسو ټوټه ګرځولی ؤ. اسماعيل پلار ته وویل چي پلار جانه ما پر مخي واړوه یعني څټ مي لوړ کړه ولي چي ته زما مخ ته وګوري زړه دي رابانديسوځي، وادرکت الرقة او ضعف درته پيغمبري چي ستا او د امر الله حائل ګرځي، او زه به هم چړې ته نه ګورم چي جزع را څخه ونه سي. ابراهيم پر مخي واړاوه او چاره يې پر څټ ور کښېښول خو هم يې فائده ونه کړه يعني اسماعيل ذبح نه سو.

**فائده:** ابو هريره له کعب الاحبار څخه روايت کړی دی چي څه وخت چي ابراهيم د ذبح ته د زوی اماده سو. ابليس د ځان سره فکر وواهه ان لم افتن عند هذا آل ابراهيم (که زه په فتنه کي واقع نه کړم آل ابراهيم په دې وخت کي د ذبح د ولد لا افتن منهم احدًا ابدًا) مراد د آل ابراهيم څه د ابليس لعين د اسماعيل مور وه او په خپله اسماعيل ؤ، نو شيطان ځان د سړي په بڼه کړی نو هاجرې ته ورغلی او وره وه يې ويل چي ته خبره يې چي ابراهيم ستا زوی چېري بوتلی. هاجرې ورته وويل چي دغه د غرو منځ ته ولاړه بوتي راوړي. شيطان ورته وويل لا والله ماذهب به الا ليذبحنه (ده نه دی بېولی مګر د ذبح لپاره) قالت لا هو ارحم به واشد حبًا من ذالک (دې ورته وويل يا پلار يې ډېر مهربانه پر خپل زوی ؤ او ډېر سخت محبت يې ورسره لری) شيطان ورته وويل چي ابراهيم دا وايي چي زه خدای امر کړی یم په ذبح د دغه زوی. هاجرې ورته وويل چي که چېري خدای امر کړی وي، نو خو ښه کار دی چي ابراهيم د خدای د امر اطاعت وکړي. نو شيطان چي له دې څخه نا اميده سو، نو په رنګ د سړي يې اسماعيل ته ځان ورساوه چي هغه د قضا حاجت لپاره له پلار څخه يو څه مسافت وروسته ورپسي روان ؤ. شيطان ورته وويل يا غلام هل تدري اين يذهب بک ابوک (ته خبر يې ای ځوانه چي ستا پلار تا چېري بيا يي) اسماعيل ورته وويل چي موږ په دغه دره کي بتهي ټولوو د کور لپاره، شيطان ورته وويل لا والله ما يريد الا ان يذبحک (دا غسي نه ده بلکي پلار دې اراده نه لري مګر دا چي تا ذبح کړي) اسماعيل ورته وويل چي ولي ما ذبح کوي؟ شيطان ورته وويل چي د پلار د خوب ليدلو په سبب دا ګمان دی چي تا ذبح کړي،

اسماعیل ورته وویل فلیفعل ما امربه ربه سمعًا و طاعةً (زما پلار دي هغه کار وکړي چي خدای په امر کړی وي) زه يې خبره اورم او فرمانبرداري يې کوم فلما امتنع عنه الغلام، په ابراهیم پسي يې ځان راورساوه، ده ته يې وویل این تذهب ایها الشیخ. قال الی هذا الشعب لحاجة لنا فیه (زما یو کار دی په دغه شبله، شعب یا دره کي) شیطان ورته وویل والله زما دا خیال دی چي شیطان په خوب کي تا ته درغلی دی هغه امر کړی يې زوی ذبح کړه او اوس هم روان يې زوی ذبح کوې د شیطاني خوب لیدلو په سبب، ابراهیم په نور د نبوت دی وپېژندی چي شیطان دی، نو يې ورته وویل الیک عني یا عدو الله (کوښه سه زما څخه ای دښمنه د خدای) زه به حتمًا پر ځای کوم ما امر ربي یعني في المنام چي ذبح د زوی ده، فرجع ابلیس په خپل غم کي ډوب چي له ابراهیم او آل څخه مي څه لاس ته رانغله من اضلالهم لانهم کلهم امتنعوا من اطاعته بعون الله ﷻ.

وَنَادَيْنَٰهُ أَن يَٰٓإِبْرَٰهِيمُ ۝ قَدْ صَدَّقْتَ ٱلرُّءْيَآ

او موږ ورناري کړې.

**پوه سه:** چي نداء کونکی که څه هم ملکه وه یعني جبرئیل غالبًا لکن چونکه نداء د ملکي په امر د خدای وه، نو ځکه خدای نسبت د نداء و ځان ته وکړی، بغوي وايي چي واو زائد دی نادیناه جواب د لما دی في قوله تعالی: فلما تله للجبین آه. او مظهري وايي چي واو لپاره د عطف دی پر جواب د لما چي محذوف دی. والتقدیر فلما اسلما وتله للجبین منعنا عنه الذبح (دا جواب محذوف د لما دی) ونادینا آه. او قاضي ناصر الدین البیضاوي وايي چي جواب د لما محذوف دی تقدیره فلما اسلماه آه کان ماکان (یعني تاسي يې قصه واورېدل) چي فما ینطق به الحال ولا یحیط به المقال، آه. اشاره هغه دمخه حالاتو ته د ابراهیم او د زوی چي تاسي مفصلاً واورېدل.

(ان یا ابراهیم) دا جمله بیان او تفسیر دی د نادینا (قد صدقت الرؤیا) تا رښتیا کړی خپل خوب یعني ته په خوب کي امر سوی وې یعني په ذبح اسماعیل.

**سوال:** اسماعیل خو ذبح نه سو؟

**ځواب**: د ابراهیمؑ په قدرت چې پوره وه هغه کارونه خو يې ټول وکړه کمامر تفصيله، والمقصود من التكليف اى بذبح الولد هو الابتلاء والامتحان حسب المقدور لاغيره يعني نه حقيقة الذبح واراقة الدم، كريمه: لايكلف الله نفسا الا وسعها، او بعض مفسرين وايي چې ابراهيمؑ په خوب کې صرف دا ليدلي وه چې ځه چاړه پر حلق د اسماعيل لپاره د ذبح کشوم، وقد اتى به (هغه ده وكړه) ولم ير في المنام اراقة الدم و جريانه، وعلى هذا قد صدقت محمول على الحقيقة ولاحاجة الى حمل الآية على ترتيب المقدمات الذبح فافهم.

**سوال**: پر درېيم تقدير باندې خو حقيقت ذبح د ولد چې معنى يې اراقة الدم ده پر ابراهيمؑ نه ؤ واجب بل امرار السكين على حلق اسماعيلؑ حسب ما راء في المنام، فما معنى قوله تعالى وفديناه كما سيئاتي لان الفداء بالذبح كما سيئاتي لايكون الا بعد وجوب الذبح حقيقة على ابراهيمؑ ولم يكن كذالک كما هو معنى التقدير الثالث؟

**ځواب**: معالجة الذبح چې تېرول د چړې پر حلق د اسماعيلؑ كما مارئ في المنام خو پرده واجب وه اصالة يعني بصريح النص على التقدير الثالث، نو خودې ذبح هم واجب وه بدلالة النص ولې د تېرولو سره د تېرې چاړې پر حلق د بشر اراقة د دم لازم دى عادةً وان لم يقع لمانع القدرة الالهية، فصح اطلاق د نداء عليه گويا حقيقة ذبح منسوخ قبل القدرة على اتيانه سوه لكه چې په بخاري وغيره کې راغلي چې پر عليه الصلوة والسلام او پر امت دده په شپه د معراج پنځوس لمونځونه خداى ج په شبانه روز کې فرض کړه لكن په هدايت د موسىؑ چې ده مبارک ته يې وويل چې پنځوس لمونځونه په شبانه روز کې ښخي دېر دي ورسه د خداى ج څخه طلب او سوال د تخفيف وکړه ثم وثم وثم حتى اخيري پنځو لمونځو ته راورسېدل او پنځه ځلو ښنت منسوخ سوه قبل الاتيان بها.

**اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿١١٠﴾**

موږ دا غسې جزاء ورکوو و محسنين او مخلصينو ته، په عمل کې دا دآيت بيان د علت دى د دفع د شدت في التكليف له ابراهيمؑ او زوى څخه په سبب د اخلاص كامل دده او صبر جميل د ذوى پر اتيان د ماموربه، يعني عفوه د حقيقت

ذبح د ولد ابراهیم ته په سبب د اقدام دده پر حقیقت ذبح چي تهیه د اسبابو يې وکړه په لوی زړه سره، او ثواب د حقیقت ذبح ورده ته منظور سو په لوی دربار کي زما وفضلناه بذالک علی العالمین. او په بعضو روایاتو کي راغلي دي چي د خلیل الرحمن لقب يې هم په دغه موضوع کي ورکړه سو.

## اِنَّ هٰذَا لَهُوَ الْبَلٰٓؤُا الْمُبِيْنُ ﴿۱۰۶﴾

دغه امر په ذبح سره د ولد اختبار او امتحان ؤ ظاهر چي مخلص د غیره سره په معلوم سو او یا صعوبة او محنت ښکاره ؤ چي تر دې لوی صعوبت تصور يې نه کېږي، او بعض مفسرین وایي چي مراد له بلا څخه نعمت دی لان لفظ البلاء من الاضداد، مراد له نعمت څخه فدی ابنه بالکبش انتهی لیس بشيئ لان الفداء المذکور غیر مذکور قبل هذا بل بعده فکیف یصح الاشارة بهذا وکیف یصح ارجاع الضمیر الیه فافهم.

## وَفَدَيْنٰهُ بِذِبْحٍ عَظِيْمٍ ﴿۱۰۷﴾

دا جمله عطف ده پر نادینا، په روایت کي راغلي دي چي ابراهیم علیه السلام چي هغه نداء واورېدل د اسمان و خوا ته يې وکتل جبرئیل سره د یو نر مړ اقرن یعني ښکرور بور رنګه پسه، وقال جبرئیل هذا فداء ابنک فاذبحه په حضور کي د اسماعیل فکبر جبرئیل الله اکبر وکبر الکبش وکبر ابراهیم وکبر ابنه، فاخذ ابراهیم الکبش واتی المنحر من منی فذبحه.

**درویش وایي:** چي حقیقت د (فدیناه بذبح عظیم) داغه دی چي مو بیان کړی لکن ددې قصې کونکي اماماندا سي وایي چي ابراهیم چي دوه واره چاره پر د اسماعیل پر حلق تېره کړه دی نسو ذبح اخیر يې پر مخي پرې ایستی کمامر، نو يې چاره ښه توره پسي تېره کړه او چاره يې په دواړو لاسو ونیول او سترګي يې پټي کړې په خپل قوت يې د اسماعیل پر غاړه چاره کښول، نو په دې وخت چي جبرئیل پسه راوستی اسماعیل يې ګوښه کړی پسه يې تر چړې لاندي کړی، اماماندا وایي چي ابراهیم خو سترګي پټي کړي وې او چاره چي يې په دواړو لاسو د پسه پر غاړه کش کړه د وینو بړهاري يې تر غوږ سو، دده ګمان دا ؤ چي دا وینه د

اسماعيل څخه روانه ده، نو يې چاړه وغورځول او ابراهيم لويه ناره وکړه پر مځکه غځار سو بیهوشه سو، اسماعيل ورته راولاړ سو د پلار سر يې راپورته کړی پر خپل ورانه يې کښېښو او پيوسته يې دا ناري پر وهلې چي پلار جانه زه نه يم ذبح سوی بلکې يو پسه ذبح سو، يو ګړی وروسته چي ابراهيم په هوش کي راغلی چي وه يې کتل زوی يې ورته ناست دی پسه يې ذبح وليدی، نو حمد د خدای يې ووايه، دا قصه ټوله درواغ ده.

**پوښتنه:** فديه خو ابراهيم ذبح کړه او په قرآن کي وفديناه نسبت يې خدای و ځان ته وکړی يعني وفديناه؟

**ځواب:** نسبت په دې خدای ﷻ ځان ته وکړی لان الله المعطي له والآمر به يعني دا اسناد مجازي دی. قاله المظهري، ذبح په معنی د مذبوح ده.

(عظيم) يعني په بدل کي غټ ؤ او ډېر چاغ ؤ، يا عظيم القدر ؤ په ثواب کي، او حسين بن فضل وايي چي عظيم يې په دې سبب وباله چي من عند الله ؤ، او مجاهد وايي چي متقبل عند الله ؤ، بغوي وايي چي مفسرين وايي چي دا مږ په جنت کي څلوېښت کاله تېر کړي وه، او مظهري او روح البيان وايي چي سعيد بن جبير له ابن عباس ؓ څخه داسي روايت کړی دی چي دا مږ چي ابراهيم ذبح کړی هغه پسه ؤ چي ابن آدم هابيل ذبح کړی ؤ انتهی.

**درويش وايي:** چي هابيل په مقابل کي د قابيل چي دده ورور ؤ هغه د اسمانه اور راغلی او د هابيل قرباني يې وسوځل او د قابيل دا يې ونه سوځل چي په هغه زمانه کي د خيرات د قبوليت علامه وه، نو هغه پسه بيا څرنګه راورل سو چي ابراهيم ذبح کړی؟ روح البيان د دې سوال په ځواب کي يوه توجيه کړې ده تاسي يې وګورئ، ہماری سمجھ میں تو نہیں آتا ہے.

**مسئله:** حنيفيه په دغه آيت سره دليل وايي چي که چا پر ځان نذر کړی چي زه به زوی ذبح کوم، وذبح شاة. قياس خو د دې تقاضا کوي چي هيڅ شی نه پر لازم ېږي لانه نذر بالمعصية. قاله المظهري، او قياس ته امام ابو يوسف چي شاګرد د امام اعظم دی تګ کړی دی.

**فائده:** دا روایت چي دا پسه هغه پسه ؤ چي هابیل د آدم ؑ زوی ذبح کړی ؤ روح المعاني هم راوړی دی، لکن سوال او جواب ته یې اشاره نه ده کړې، والله اعلم.

وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ ﴿۱۰۸﴾

عطف دی پر صدر د قصې د ابراهیم ؑ یعني جاء ربه بقلب سلیم، او ضمیر د علیه و ابراهیم ؑ ته راجع دی، یعني موږ پرې ایښې ده پر ابراهیم ؑ (في الآخرين) یعني ثناء او صفت او ذکر حسن د ده په وروسته امتو کې.

**سوال:** معفول یعني ثناء او ذکر حسن یې ولې حذف کړی؟

**خواب:** سیاق د کلام دلالت پر کوي.

سَلَامٌ عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ ﴿۱۰۹﴾ كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ﴿۱۱۰﴾

سلام دې وي پر ابراهیم ؑ ای سلام من الله تعالی، داغسې ثواب او جزاء موږ ورکوو محسنینو ته وقدمر معناه.

إِنَّهُ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ﴿۱۱۱﴾

دی زموږ د بندګانو مؤمنانو څخه دی ای بالایمان الکامل خص الایمان بالذکر لانه رأس الحسنات.

وَبَشَّرْنَاهُ بِإِسْحَاقَ نَبِيًّا مِنَ الصَّالِحِينَ ﴿۱۱۲﴾

موږ ده ته یعني ابراهیم ؑ ته زیری وکړی (یعني ملکو زیری پر وکړی په امر زما ولهذا نسب الله البشارة الی نفسه) په اسحاق سره یعني زوی به وي او نوم به یې اسحاق وي.

**بوه سه:** اسحاق ؑ د ابراهیم ؑ زوی دی د سارة رضي الله عنها له بطن څخه، چي تر دغه وخته ساره رضي الله عنها پر خان د (عقیم) وچي خیال کاوه، دا زیری داسي وخت وسو چي ابراهیم ؑ د یوسل او شلو (۱۲۰) کالو په شاوخوا کې ؤ او ساره د نیوي (۹۰) کالو په شاوخوا کې وه.

**درویش وایي:** چي دد ې بشارت تر وله قصه په اوږد تفصیل سره ده، خو بیا هم علماء وایي ما لا یدرک کله لا یترک کله، نو د متعلمینو لپاره یې اجمالي قصه دا ده چي خدای ؑ په مشری د جبرئیل ځو ملکي (والله اعلم بعدده) لپاره د اهلاک د قوم

لوط را استولي وې او ضمنًا يې بشارت د اسحاق بن ابراهيم ؑ ورته سپارلی وُ. نو ملكي په بڼه د رجالو وې چې د ابراهيم ؑ كورته ورغلې (نو ابراهيم ؑ ورته وويل) انكم قوم منكرون يعني تاسي څرنګه نابلده مهمانان ياست چې د سفر هيڅ نخښې نښانې نه دي درېكښې او نه دد دې ديار خلګ ياست (يعني د ابراهيم ؑ ګمان د غلو پر راغلی) ملكو ورته وويل انا رسل ربک چې تاته زېری د زوی وكړو، وروسته څو قوم لوط ته چې پر هغو عذاب استيصال نازل كړو، ساره رضي الله عنها په دروازه كې ولاړه وه وه يې خندل يعني د تعجب د لارې پر بشارت د زوی او وه يې ويل ابشرتموني على ما مسنى الكبر (تاسي زېری راته كوئ وروسته تر دې چې د سپين سرتوب زمانې ته ورسېدم) وهذا بعلي شيخًا دامې خاوند دی يعني چې دېر عمر رسيده دی فبم تبشروني (تاسي دا څه عادت خلاف زېری راته وكړی) ملكو وويل هو على الله هينٌ (د اولادت خلاف العادة خدای ؑ ته اسانه دی الى اخير القصة.

**سوال:** اسحاق خو په وخت د ولادت نبي نه وُ؟

**ځواب:** نعم! دې ته حال مقدره په اصطلاح وايي والمعنى مقضيًا ومقدرًا نبوته كما في آية اخرٰى لبيان حال الكفار وقت دخولهم جهنم فادخلوها خالدين. نو دلته خو هم خلود په وخت د ابتدائي دخول نسته بلكې وروسته دی، نو مفسرين هورې هم داسي ترجمه كوي مقدرين خلودكم فيها.

(من الصالحين) ای مقضيًا ومقدرًا كونه من الصالحين. نو په دې اعتبار نبيًا او من الصالحين چې دواړه حال دي له اسحٰق څخه صحيح دی.

**سوال:** مبشر به چې اسحٰق دی په وخت كې د زېري خو موجود نه وُ او سره دد دې چې په نحو كې وايي زمانه د حال او د عامل د ذی الحال به يوه وي (يعني ذوالحال چې اسحٰق دی چې تر اوسه موجود نه دی او عامل يې بشرناه دی چې هغه بالفعل موجود دی فاين المقارنة)؟

**ځواب:** حاصل د جواب دا دی چې د اسحٰق سره مقارنت د تقدير د نبوت دده او د تقدير د كونه من الصالحين كافي دی په صحت كې د حاليت فتدبر ليكون ذوقًا لک ولاتكون من المنكرين لذالک.

**درويش وايي**: چي بعض مفسران چي تېر سوي جواب ته يې فکر سوي نه وه، نو د دفع د سوال مذکور يې مضاف مقدر عامل په دواړو کي ګرځولي دي يعني وبشرناه بوجود اسحاق (لفظ د وجود مضاف عامل مقدر دی) وبين ذالک المفسر ای بان يوجد اسحٰق ونبيًا من الصالحين.

وَبٰرَكْنَا عَلَيْهِ وَعَلٰٓى اِسْحٰقَ

ای علی ابراهيم ای قضينا علی ابراهيم برکات الدين والدنيا او برکت مو ورکړی دی و اسحٰق ته چي زر انبياء دده له نسل څخه خدای ﷻ پيدا کړه چي اول يې يعقوب ؑ ؤ چي اسرائيل يې لقب ؤ يعني عبد الله چي د ټولو انبياؤ د بني اسرائيلو منتهی د نسب يې يعقوب دی، او اخيري نبي يې عيسٰی ؑ دی.

وَمِنْ ذُرِّيَّتِهِمَا مُحْسِنٌ وَظَالِمٌ لِّنَفْسِهٖ مُبِيْنٌ ﴿۱۱۳﴾

او بعض د اولاد د ابراهيم او اسحاق نېک عمله دي (او يا معنی داده چي د خيل ځان سره ښه کوي بالايمان والطاعة) او بعض يې ظالمان دي پر خپلو ځانو بالکفر والمعاصي. د مبين معنی داده چي ظاهر ظلمه، له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي نسب لره تاثير په هدايت کي نسته... بيت:

پسر نوح ؑ بابدان بنشت.... خانه نبوتش گم شد

او نه په ضلال کي نسب لره دخل سته.

مصرع: .... گل از خارست ابراهيم ؑ زآذر

**فائده**: په ضلال او کفر کي د نسل ضرر نسته و اصل ته، کريمه: ولاتذر وازرة وزر اخرٰی، نو د يهودانو د عصر نبوي ؐ چي فخر به يې کاوه چي موږ چي موږ اولاد د انبياء يو موږ چي هر څه معاصي وکړو دوی زموږ شفاعت کوي، نو ځکه رسول الله ﷺ بني هاشمو ته دا وينا وکړه: يا بني هاشم لايأتيني الناس باعمالهم (ای الحسنة) وتأتوني بانسابكم.... يو شاعر وايي:

اتفخر باتصالک بعلي ...... واصل البولة الماء القراع
وليس بنافع نسب زکي ..... تدنسه صنائعک القباح

او بل شاعر په فارسي ژبه وايي:

اصل را اعتبار چندان نیست ..... روی همچو ورد خندان نیست

می زغــوره شود شکر از نی ..... عسل از نحل حـــالــت بقیٰ

**درویش وایي:** چي قصه د ابراهیم علی نبینا و علیه الصلوة والسلام پای ته ورسېدل، ورځ دوشنبه اتلس د ذوی القعدة الحرام سنه (۱۴۳۱) هجري قمري.

وَلَقَدْ مَنَنَّا عَلٰى مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿۱۱۴﴾

په تحقیق موږ احسان وکړی (بالنبوة وغیرها من المنافع الدینیة والدنیویة. دا جمله عطف ده پر وقد نادانا نوح) پر موسیٰ او هارون چي دواړه سکه وروڼه وه هارون پر موسیٰ مشر ؤ.

وَنَجَّيْنٰهُمَا وَقَوْمَهُمَا مِنَ الْكَرْبِ الْعَظِيْمِ ﴿۱۱۵﴾

او موږ نجات ورکړی دوی دوو ته او ددوی قوم ته (چي بني اسرائیل وه) له غم څخه چي لوی یعني د فرعون او د قوم له خوا څخه چي قبط وه پر دوی تپل سوی ؤ کما مر یسومهم سوء العذاب یذبحون ابنائهم الخ.

وَنَصَرْنٰهُمْ فَكَانُوْا هُمُ الْغٰلِبِيْنَ ﴿۱۱۶﴾

موږ کومک ورکړی موسیٰ او قوم ته دده، نو سوه موسیٰ او قوم دده په نصرت د خدای پر فرعون او قوم دده یعني فرعون او قوم دده ټول په دریاب کي غرق سوه.

وَاٰتَيْنٰهُمَا الْكِتٰبَ الْمُسْتَبِيْنَ ﴿۱۱۷﴾ وَهَدَيْنٰهُمَا الصِّرَاطَ الْمُسْتَقِيْمَ ﴿۱۱۸﴾

او ورکړی موږ دوی دوو ته کتاب چي تورات ؤ چي ښه بیانونکی د احکامو او د شرائعو د خدای ؤ، او هدایت وکړی موږ دوی دوو ته د هغې لاري چي موصل د خدای ته او صواب ته ده في کل باب.

وَتَرَكْنَا عَلَيْهِمَا فِى الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۱۹﴾ سَلٰمٌ عَلٰى مُوْسٰى وَهٰرُوْنَ ﴿۱۲۰﴾

موږ پرېښو د دوی ذکر حسن په وروسته امتو کي کما مر مثل ذالک، سلام دي وي د ملکو او مؤمنانو، وقیل من الله پر موسیٰ او هارون.

﴿إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ ۝ إِنَّهُمَا مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِينَ ۝﴾

مونږ دغسې ثواب ورکوو محسنانو بندګانو ته (وقد مر مثله فتذكر) په دې آيت کې اشاره ودې ته ده چې طريقه د احسان هو الايمان، نو ايمان مرتبة الغيب ده او احسان مرتبة المشاهدة ده.

﴿وَإِنَّ إِلْيَاسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ۝﴾

عطف دی علی قدمنا، مظهري وايي چې د عبدالله بن مسعود رضي الله عنه روايت دی ان الياس هو ادريس وفي مصحفه يعني د ابن مسعود رضي الله عنه ان ادريس لمن المرسلين. وقال الآخرون هو نبي من انبياء بني اسرائيل قال ابن عباس رضي الله عنه هو ابن عم اليسع محمد بن اسحٰق نسب داسې بيان کړی دی هو الياس بن بشر بن فنحاس بن عيزار بن هارون بن عمران وهو من سبط هارون اخي موسىٰ ؑ وهذا هو المشهور وعليه الجمهور، او روح البيان وېلي دي چې په بعض معتبرو تاريخو کې راغلي دي چې موجود له انبياؤ عليهم السلام څخه په خپلو ابدانو عنصريه سره څلور کسه دي دوه په اسمان کې دي چې ادريس او عيسىٰ ؑ دي، او دوه په ځمکه کې دي چې خضر او الياس ؑ دي، نو بناء علی هذا ادريس او الياس دوه کسه دي من حيث التشخص. او بعض علماء وايي چې يو له هغو څخه احمد بن حنبل ؒ دی صاحب المذهب چې ادريس يعني اخلوخ بن متوشلخ بن لمک کان قبل نوح ؑ، نو هغه خبره چې دی له انبياؤ څخه د بني اسرائيلو او سلسله د نسب يې و هارون عليه السلام ته رسولې ده، د احمد بن حنبل ؒ په نيز نه ده صحيح، والله اعلم.

**درويش وايي:** چې دا يوه مجمع عليه خبره ده، يعني مظهري، روح المعاني، روح البيان او نورو تفسيرو راوړې ده چې بعل د يو بت نوم ؤ چې طول يې شل ګزه ؤ او څلور مخه يې درلود ه، او روح المعاني وېلي دي چې د سرو زرو ؤ، رواه عن الضحاک وابن زيد والحسن. او دې بت ته دوی څلور سوه (۴۰۰) خادمان مقرر وه او دا څلور سوه کسه د بعل چې دوی خدای باله انبياء يې بولل او شيطان په بعل ننوتی او د ضلالت خبرې به يې کولې او خادمانو چې څلور سوه کسه وه و خلګو ته بې هغه د ضلالت لار بيانول.

**درويش وايي:** چې مظهري ؒ دا قصه په اتم مخ کې د خپل تفسير راوړې ده، او

حیرت انګېزه خبري یې پکښې راوړي دي، یوې واقعې ته یې تاسي غوږ ونسئ، دی وایي چې الیاس ؑ دغو بت فرستانو ته نبي استول سوی ؤ، د هغه وخت د باچا نوم آجب ؤ او د هغه مابینه ازبیل نومېده، کانت قاتلة الانبیاء، یحیٰی او زکریا ؑ هم دې وژلي دي، او دا په نفس کي محصنه نه ده یعني زانیه وه، او دې د اوو باداشاهانو سره نکاح کړې وه یعني د بني اسرائیلو بادشاهان او هغه ټول دې ازبیل وژلي وه بالاغتیال یعني یا په زهرو یا به یې نابېره چي هغه به بیده وه پر سر به یې په لوډبره وویشتی الی غیر ذالک، او په دغه وخت کي دا د آجب مابینه پخه ښځه وه او دا ازبیل اوویا (۷۰) واره لنګه سوې وه.

**درویش وایي:** چي نوري ورته واقعې مظهري ؒ په طول کي د دې قصې راوړي دي چي هیڅ کتاب ته یې حواله هم نه ده کړې، پښتانه وایي: د مرچو د کراره یې اتکل کړه، او فارسي زبان خلک وایي: مشت نمونه خروار، د فقیر مطلب دا دی چي هغه نوادري چي مظهري کړي دي پر مذکوره نادره یې قیاس کړئ، والله اعلم بصحتها وعدمها.

**یوه سه:** چي طبري وایي چي الیاس له سبط څخه د هارون دی او بیهقي وایي چي له سبط څخه د یوشع بن نون دی، وهب بن منبه ؒ وایي چي الیاس ؑ ته خدای ؑ ډېر دراز عمر ورکړی دی لکه د خضر ؑ تر فناء پوري د دنیا، واخرج ابن عساکر عن الحسن چي الیاس پر بیابانو او ښارو او قریو مقرر دی تر قیامته، او خضر ؑ پر دریابو او جزیرو کارفرما دی، او دوی دوه په موسم کي د حج سره جمع کېږي، او حدیث د اجتماع دوی دوو مع النبي ﷺ في بعض الاسفار واکل معهما من مائدة نزلت علیهما علیهما الصلوة والسلام من السماء هي ای المائدة خبز وحوت وصلاتهما العصر معًا ای مع النبي ﷺ، رواه الحاکم عن انس ؓ، دا حدیث بیهقي ؒ ضعیف ګڼلی دی، او امام الذهبي ؒ چي امام د جرح او تعدیل دی وایي چي دا حدیث موضوعي دی قبح الله من وضعه.

**سوال:** حاکم ؒ دغه حدیث صحیح بللی دی، نو څرنګه ذهبي ؒ یې موضوع بولي؟

**ځواب:** ذهبي ؒ وایي ما کنت احسب ان الجهل یبلغ بالحاکم الی ان یصح هذا الحدیث. انتهی.

# اِذْ قَالَ لِقَوْمِهٖٓ اَلَا تَتَّقُوْنَ ﴿۱۲۴﴾

روح المعاني وايي چي مشهور روايت په الياس كي دادى چي دى د بني اسرائيلو له سبط څخه ؤ، څه وخت چي يوشع بن نون چي شام فتح كړي، نو دغه سبط يې د بعلبك په ښار كي ځاى پر ځاى كړ (د اذ عامل اذكر دى چي مقدر دى)

# اَتَدْعُوْنَ بَعْلًا وَّتَذَرُوْنَ اَحْسَنَ الْخَالِقِيْنَ ﴿۱۲۵﴾

آيا تاسي عبادت كوئ (همزه لپاره د استفهام انكاري دى) د بعل (چي د يو غټ بت نوم دى چي بيان يې د مخه تېر سو) او تاسي پرې ايښى دى عبادت د احسن الخالقين.

**بوه سه:** چي په عبارت كي مضاف محذوف دى يعني لفظ د عبادت كما اشرنا اليه في ترجمة الآية، يا مضاف دادى طلب جميع حاجاتكم منه ﷻ.

**سوال:** خالق خو يوازي خداى ﷻ دى، د جمعيت د خالقين څه معنى ده؟

**ځواب:** روح المعاني وايي چي مراد له خالق څخه من ما يطلق عليه الخالق يعني سواء كان مجازًا او كسبًا وله الاعتبار افراد كثيرة، لان الخلق يستعمل بمعنى التقدير اى الاراد والتصوير، او مخصوص په خداى ؑ پوري خلق په معنى د ايجاد او اختراع دى فافهم.

# اللّٰهَ رَبَّكُمْ وَرَبَّ اٰبَآئِكُمُ الْاَوَّلِيْنَ ﴿۱۲۶﴾ فَكَذَّبُوْهُ فَاِنَّهُمْ لَمُحْضَرُوْنَ ﴿۱۲۷﴾

او خاص الله ستاسي پالونكى دى او پالونكى دى ستاسي د پلرو چي د مخه تېر سوي دي، دوى د تكذيب د الياس ؑ وكړې، نو دوى به حاضر كړل سي يعني په عذاب كي په ورځ د قيامت.

**بوه سه:** چي نصب د لفظ د الله او د رب مبنى پر دې دى چي بدل دى له احسن څخه.

**فائده:** د عذاب لفظ يې نه دى وايه په قرينه د مقام چي د كفارو بيان دى، او بعض علماء وايي چي احضار په عرف كي احضار ته د شر وايي.

# اِلَّا عِبَادَ اللّٰهِ الْمُخْلَصِيْنَ ﴿۱۲۸﴾ وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْاٰخِرِيْنَ ﴿۱۲۹﴾

استثناء له فاعل څخه د كذبوه، يعني تكذيب د ده يې ونه كړى بندګانو د خداى ؑ چي ځانونه يې خالص لپاره د عبادت د خداى ؑ كړځولي وه.

**فائده:** استثنا، يې د لمحضرون څخه نه سي صحيح کېداى، ولي چي معنى يې فاسد يږي، ولي چي عباد مخلصين خو محضرون في العذاب نه دي.

سَلٰمٌ عَلٰٓى اِلْ يَاسِيْنَ ﴿۱۳۰﴾

**پوه سه:** چي د نبي نوم که څه هم الياس ؑ و، لکن بل لغت دى په الياس کي لکه سيناء و سينين و اسماعيل و سمعين و ميکائيل و ميکائين، او فراء ؒ وايي ي مراد له الياسين څخه الياس او اتباع د ده دي من المؤمنين، نو لکه اشعريين چي امام اشعري او د ده و اتباع ته د مذهب وايي.

اِنَّا كَذٰلِكَ نَجْزِى الْمُحْسِنِيْنَ ﴿۱۳۱﴾ اِنَّهٗ مِنْ عِبَادِنَا الْمُؤْمِنِيْنَ ﴿۱۳۲﴾

قد مر مثل هذه العبارة مع الترجمة مرارًا.

**درويش وايي:** چي مظهري ؒ پر هغه توجيه چي د الياسين څخه الياس او د ده اتباع مراد وي رد کړى دى، چي علم چي جمع سي تعريف باللام غواړي لکه الاشعريين عوضًا عما فاته من العلمية.

**درويش وايي:** چي که څه هم ابن حاجب ؒ دا خبره په شرح کي د مفصل کړي ده لکن دا خبره اتفاقي نه ده، ولي چي ابن يعيش په شرح کي د مفصل وايي يجوز استعماله نکرة بعد التثنية والجمع نحو زيدان کريمان وزيدون کريمون وهو مختار الشيخ عبد القاهر کذا في روح المعاني.

**فائده:** د څو آياتو په اخير کي خداى ﷻ د انبياء عليهم السلام په اخير کي د وصف د غه عبارت ويلى دى انه من عبادنا المؤمنين، په دې عبارت کي اضافت د عباد و ځان ته د پر لوى نعمت دى کما قال الشاعر:

اگر بنده خويش خوانی مرا ...... به از مملکت جاودانی مرا
شهانی که با بخت فرخنده اند ...... همه بندگان ترا بنده اند

د عارف بالله بايزيد بسطامي قدس سره وايي چي زه د حساب څخه د ورځي د حساب نه بيريږم، ولي که د حساب په جريان کي يو وار خداى ﷻ ماته وويل: يا عبدي د بايزيد د غه عبارت او اضافت کافي دى.. بيت:

آنان که زره وار بصورت محقر اند ...... فرد از خيان وناز بفردوس ننگرند

يعني د خداى څخه خداى غواړي.

**پوښتنه:** اخير كار د قوم د الياس عليه السلام په دنيا كي څرنګه سو او كم عذاب پر نازل سو او كه څرنګه؟

**ځواب:** په دې باره كي روح المعاني او بيضاوي خو مفصل بيان نه دى كړى او روح البيان او مظهري ډېر اوږد بيان كړى دى چي د فهم سره د متعلمينو د تفسير مناسب نه دى يعني تر فهم د هغو لوړ دى د دې سببه درويش يې نقل نه وكړى. والله اعلم وعلمه اتم واحكم.

وَإِنَّ لُوطًا لَّمِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٣٣﴾

**پوهسه:** چي لوط زوى د هاران دى چي هغه ورور د ابراهيم خليل الرحمن عليه السلام ؤ نو لوط د ابراهيم وراره ؤ، دى را استول سوى ؤ د خداى له خوا څخه و خپل قوم ته چي اهل سدوم وه چي يو ښار د قوم لوط ؤ، او دوى يې تكذيب وكړى او اراده د ده د قتل يې هم وكړه.

إِذْ نَجَّيْنَاهُ وَأَهْلَهُ أَجْمَعِينَ ﴿١٣٤﴾ إِلَّا عَجُوزًا فِي الْغَابِرِينَ ﴿١٣٥﴾

موږ ده او د ده اهل ته نجات وركړى يعني له هغه عذابه چي پر قوم يې نازل سو، مګر يوه عمر رسيده سپين سرې (چي د لوط مايينه وه او كافره وه، او د لوط د قوم پر لواطت د مهمانانو سره د لوط دا همكاره وه)

ثُمَّ دَمَّرْنَا الْآخَرِينَ ﴿١٣٦﴾

او بيا يعني وروسته تر وتلو د لوط او د ده د اهل د سدوم څخه نور قوم د ده چي كافران وه موږ هلاک كړل.

**درويش وايي:** چي د لوط او د اهلاک د قوم د ده قصه ډېره اوږده وه چي په بيل ځاى كي د قرآن مفصل راغلي وه.

وَإِنَّكُمْ لَتَمُرُّونَ عَلَيْهِم مُّصْبِحِينَ ﴿١٣٧﴾ وَبِاللَّيْلِ ۚ أَفَلَا تَعْقِلُونَ ﴿١٣٨﴾

يعني اى اهل مكة تاسي د دوى پر كنډوالو چي تاسي په سفر شام ته ځئ فان سدوم واقع في طريق الشام، يعني په سهار كي داخليږي، دا لفظ حال دى له ضمير څخه د تمرون (وبالليل) يعني ګاه د شپې تېرېږئ.

**فائده:** د سدوم خرابه ښار و ځاى ته د نزول د مسافرانو د شام ذهابًا و ايابًا

نژدې دی. نو بعض مسافر چې له شام څخه راهي سوي وي، صباحًا دوی ته را رسېږي وبالعکس (افلا تعقلون) آيات تاسې اهل مکه عقل نه لرئ چې له کندوالو څخه د قوم عبرت واخلئ... بيت:

پند گیر از مصائب دیگران..... تا نگیرند دیگران ز تو پند

وَإِنَّ يُونُسَ لَمِنَ الْمُرْسَلِينَ ﴿١٣٩﴾

**پوه سه:** چې يونس د متی بتشديد الياء، څوک وايي د پلار نوم يې ؤ وهو الاصح او څوک وايي د مور نوم يې ؤ، مورد اول اصح وباله ولې چې نبي مور ته نه دی منسوب سوی الا عیسیٰ بن مریم، او یونس له اولاد څخه د هود ؤ، ذوالنون او صاحب الحوت هم دی دی چې ماهي تېر کړی ؤ (لمن المرسلين) الی بقية ثمود چې د نينوی (بکسر النون الاول وفتح الثاني) په وطن کي استوګنه کول، راوي وايي چې يونس چې يې نبي را واستاوه ده قوم ته دعوت د توحيد ورکړی څلوېښت (۴۰) کاله، وکانوا يعبدون الاصنام. نو قوم يې تکذيب وکړی او خپل بت پرستی ته يې دوام ورکړی، نو يونس د دوی څخه ووتی او قوم ته يې وعده د نزول عذاب ورکړه درې ورځي وروسته، او بعض رواة وايي چې څلوېښت ورځي وروسته، والاول هو الاشهر، نو قوم ته دده چې علامې د عذاب ښکاره سوې يعني پر اسمان توره وريځ پيدا سوه سره د دخان شديد، کرار کرار وريځ سره د دوده راکښته کېدل تاچې دوی په لېښت کي راولي (يعني دوی را ونغاړي) فقط يو ميل مسافت پاته ؤ، نو دوی شروع په دعاء او تضرع او د شرک څخه يې توبه وکښل او دوی و صحراء ته ووتل ښځي او شيرخواره لولاد يې سره جلا کړه تاچې مورې يې هم ژاړي او طفل يې هم او دغه رانګه د نورو حيواناتو ښځي او اولاد يې سره جلا کړه حتی چې د انسانانو او حيواناتو بغاري تر اسمانه پوري تقريبًا ورسېدې او دوی په خپله ژبه کالي اغوستي وه او د لآ اله الا الله يونس نبي الله خدای ﷻ ته يې توبه وکړه او عذاب پورته سو، نو وريځ او دود له منځه ولاړه.... بيت:

چون فرود آید بلایی دافعی ..... جز تضرع نبود دیگر مانعی

او یونس په یو غره کې پټ ؤ او انتظار د دوی د هلاک یې کاوه چې ما ښام له یو سړي څخه چې په غره کې یې بټمي تولول پوښتنه وکړه کیف کان حال قومي؟ هغه ورته وویل چې سالمون وبخیر وعافیة سره وه، نو یونس د ځان سره فکر وکړه چې زه به څرنګه و هغو ته یعني قوم ته ورځم، دوی به وایي چې تا ولې دروغ مونږ ته وویل چې پر تاسې عذاب نازلیږي، نو ده انتظار د وحي ونه کړی او مخ یې ونیوی د دریاب پر خوا، وذالک قوله تعالی:

**اِذْ اَبَقَ اِلَى الْفُلْكِ الْمَشْحُوْنِ ﴿۱۴۰﴾**

چې دی وتښتېدی

**سوال:** تېښته ودې ته وایي په عرف کې چې مریی له باداره وتښتي، نو دلته د دغه اسناد د اباق و یونس ته به څرنګه وي؟

**ځواب:** یونس له قوم څخه ولاړی کمامر، لکن چونکه دا تګ دده بیله اجازې د رب د یونس ؤ، حسن اطلاق هذا اللفظ علیه.

ترجمه: یونس وتښتېدی د کښتي پر لور چې ډکه وه د خلګو څخه او د دوی د مالو څخه، راوي وایي چې کښتي چې حرکت وکړی ودرېده، نو کښتي چلونکو آب بازانو وویل چې زمونږ د کښتي دا عادت دی چې عبد آبق من المولی چې پکښې سپور وي حرکت نه کوي هیڅ چا دغ نه وکړی چې زه عبد آبق یم من المولی. اتفاق یې پر دې وکړی چې قرعه اندازي به سره وکړو، نو قرعه پر یونس وختل. بعض روات وایي چې درې واره یې قرعه استعمال کړه هر وار به قرعه پر یونس تپه سوه، فقال یونس ان العبد الآبق من المولی، ورمی نفسه سره د کالوا الی البحر، وهذا معنی قوله تعالی:

**فَسَاهَمَ فَكَانَ مِنَ الْمُدْحَضِيْنَ ﴿۱۴۱﴾**

قرعه اندازي یې وکړه (کمامر) ای المغلوبین في القرعة.

**درویش وایي:** چې بغوي یو روایت راوړی دی چې مظهري را نقل کړی دی، وایي چې یونس چې له قوم څخه د فرار نیت وکړی دده سره دوه زامن او ماینه هم ورسره وه، نو یو کښتي راغله د یونس دا اراده وه چې پکښې سپور سي ماینې یې

تلوار وکړی چې په کښتۍ کې سپرده سي، د بلې خوا دریاب څپه وو هل ماینه یې په دریاب کې غرقه سوه، چونکه دوی د دریاب پر غاړه ناست وه بله څپه د دریاب راغله هغه مشر زوی یې ځني یووړی د بلې خوا لېوه راغلی هغه کشر زوی یې ځني یووړته کړی فبقي يعني یونس فريدًا تنها. انتهى كلام البغوي الذي نقله المظهري.

**فقیر وایي:** چې دا قصه په هیڅ تفسیر کې او په یو روایت د راویانو نه ده راغلې د پر تلاش مې وکړی، انا لله وانا الیه راجعون، والعلم عند الله العظیم.

## فَالْتَقَمَهُ الْحُوتُ وَهُوَ مُلِيمٌ

نو یونس تېر کړی ماهي.

په روایت کې د قصې راغلي دي چې وروسته تر قرعه کشۍ یونس د کښتۍ پر طرف ودرېدی چې ځان دریاب ته وغورځوي یو ماهي یې ولیدی (چې ددې ماهي نوم ابن ابی حاتم او نورو راویانو ویلي دي نوم یې نجم) دې ماهي تر اوبو درې ګزه سر دباندې را ایستلی او خوله یې وازه نیولې وه یعنې په انتظار د یونس و. یونس ځني وبېرېدی یعنې په دې چې د ماهي خو نو زما غوښې او هډوکي ته له غذا ده. نو دی بل طرف ته د کښتۍ ولاړی ماهي هغه طرف ته پسې ورغلی. پر دې هیئت یونس بل طرفته وهکذا شاو خوا یونس پر کښتۍ ګرځېدی ماهي هم ورسره ګرځېدی، اخیر یونس په دې پوه سو چې دا ماهي په حکم د خدای ﷻ را روان دی، نو ده ځان اوبو ته غورځاوه ماهي دمخه تر اوبو ګوله کړی او تېر یې کړی ماهي د دریاب پای ته ولاړی، ماهي ته الهام د خدای ﷻ وسو چې دا یونس ستا غذا نه ده بلکې ستا نس دده لپاره بندي خانه ده.

(وهو مليم) ای داخل في الملامة على ان بناء افعل چې مليم د هغه باب څخه دی للدخول في الشئ، نحو احرم اذا دخل في الحرم او یا معنی دا د آت بما یلام علیه یعنې چې فراري له قوم څخه بېله اجازې د خدای ﷻ وکړی.

**سوال:** مجاهد له ابن عباس رضي الله عنهما څخه داسې ترجمه د مليم نقل کړې ده ای مسئ و مذنب. نو دا معنی صحیح ده؟

**ځواب:** دا بیان د حاصل د معنی د مليم ده لان حسنات الابرار سیئات المقربين.

**فائده:** جمله د وهو مليم د مفعول څخه د التقمه چې ارجع و یونس ته دی حال ده.

فَلَوْلَآ اَنَّهٗ كَانَ مِنَ الْمُسَبِّحِيْنَ

که نه وای یونس، دی ؤ د مسبحین څخه.

**درویش وایي:** چي روح المعاني یې ترجمه داسي کړې ده ای من الذاکرین الله تعالی کثیرًا بالتسبیح یعني سبحان الله.

**درویش وایي:** چي مشهور او صحیح تفسیر یې هغه دی چي په قرآن مبارک کي راغلی دی فنادی في الظلمات ان لا اله الا انت سبحانک اني کنت من الظالمین، له ابن عباس رضي الله عنهما څخه منقول ده ای من المصلین، وقال وهب من العابدین، وقال الحسن ما کانت له صلوة في بطن الحوت لکن وقد عمل عملاً صالحًا (ای التسبیح والذکر الکثیر) مظهري وایي په رد کي د قول د حسن، قلت ویمکن انیکون هو مصلیًا بالاشارة لکونه حیًا مضیقًا انتهی قول المظهري، دده خیال دادی چي حسن چي نفي د صلوة کړې دي له دې وجهه څخه چي د ماهي په نس کي خو په ولاړه لمونځ نسي کېدای، نو مظهري رد وکړی چي په اشاره به یې کاوه، ولیس المراد الحسن ذالک، ولي چي دومره لوی ماهي ؤ چي یونس یې سره د کالو په ستوني کي تېر کړی، نو نس د دغه ماهي به څومره فراخه ؤ یقینًا په ولاړي لمونځ پکښي کېدای سوای، بلکې الحسن له دې وجهي د صلوة نفي وکړې چي لمونځ کول یې نه دي ثابت او قول د ابن عباس رضي الله عنهما الحسن پر معنی لغوي حمل کړی دی ای الدعاء والتضرع الی الله عزوجل فافهم.

په یوه روایت کي راغلي دي چي یونس علیه السلام په نس کي د ماهي د شګو او د بحرو د دریاب تسبیح واورېدې، نو ده هم تسبیح شروع کړې.

لَلَبِثَ فِيْ بَطْنِهٖٓ اِلٰى يَوْمِ يُبْعَثُوْنَ

دا جواب دی د لولا، ترجمه: نو ده درنګ کړی وای په نس کي د ماهي تر هغه ورځي پوري چي خلک په نفخه ثانیه سره ژوندي کېدای.

**بوه سه:** چي د دې آیت قرآني معنی دا نه ده چي یونس تر یوم یبعثون پوري ژوندی د ماهي په نس کي وای بلکې معنی یې داده چي یونس چي پر خپل اجل مړ سوی وای نس د ماهي دده لکه قبر د نورو خلکو وای، او اجزاء دده به د اجزاء سره

د ماهي يعني که هغه هم مړ سوی وای ګډ سوي به وای حيث ماكان في علم الله تعالى الى يوم القيامة لکه د قبرو د انسانانو هډوکي چي خاوري سي او د خاورو سره د مځکي ګډ سي الى يوم يبعثون.

**درويش وايي:** چي په حديث کي راغلي دي چي روايت يې عبد الرزاق او ابن جرير او ابن ابى حاتم او ابن مردويه له انس ﷺ څخه مرفوعًا کړی دی چي يونس ﷺ چي ماهي تېر کړی او کښته ماهي ولاړی سره د يونس الى ما انتهى من الارض فنادى في الظلمات لا اله الا انت سبحانک اني کنت من الظالمين. دا دده دعاء تر عرشه پوري ورسېدل، نو ملکو د عرش وويل يا ربنا نسمع صوتًا ضعيفًا (موږ اورو يو اواز چي ضعيف دی من بلاد غربة د نابلده ښارو څخه) خدای پاک ورته وويل چي پوهېږئ چي دا د چا اواز دی؟ ملکو ورته وويل لا يا ربنا! خدای پاک ورته وويل عبدي يونس، ملکو ورته وويل هغه سړی دی چي همېشه به موږ پورته کول دده مقبول عملونه او دده قبول خواستونه؟ خدای پاک ورته وويل نعم! هو هغه سړی دی، ملکو ورته وويل يا ربنا الا ترحم ماکان يصنع في الرخاء وتنجيه في البلاء، قال الله تعالى بلى فامر عزوجل الحوت فلفظه، کما قال الله تعالى:

فَنَبَذْنٰهُ بِالْعَرَاۤءِ وَهُوَ سَقِيْمٌ ﴿۱۴۵﴾

نو وغورځاوه ماهي په امر زموږ پر يوه خالي مځکه چي نه ځنګل ؤ او نه درختي پر وې، او دی ناجوړی ؤ غوښې يې سره تنوی سوي وې او د ولاړي قوت يې نه درلودی.

اختلاف: په مدت کي د لبث د يونس په نس کي د ماهي: البغوي وايي چي مقاتل بن خبان وايي چي درې ورځي يې د ماهي په نس کي تېري کړي وې، وقال البغوي چي عطاء وايي چي اووه ورځي وې، وقال البغوي چي الضحاک وايي چي شل ورځي د ماهي په نس کي ؤ، او السدي، الکلبي او مقاتل بن سليمان وايي چي څلوېښت ورځي د ماهي په نس کي ؤ، او بغوي له شعبي څخه روايت کړی دی چي د څاښت په وخت کي ماهي تېر کړی او مازديګر يې وغورځاوه.

لکن درويش وايي چي په معتبراتو کي د تفاسيرو وايي چي يونس پر داسي

حال کړ ځېدلی ؤ لکه کوچنی چې د مور له نسه پیدا سي. قاله ابن عباس رضي الله عنه والسدي، او ابن جبير رحمه الله وايي چې يونس عليه السلام چې ماهي وغورځاوه نه يې وښتان پر بدن وه او نه يې نوکان وه.

**درویش وايي:** چې له دې څخه دا معلومېږي چې مده د لبث د يونس عليه السلام ډېره وه. نو بناءً على هذا دا لنډې لنډې مدې چې په بعض روایاتو کې راغلې قابل د اعتبار نه دي، والله اعلم.

وَأَنۢبَتۡنَا عَلَيۡهِ شَجَرَةٗ مِّن يَقۡطِينٖ ۝

موږ شنه کړه پر ده (يعني فوقه) درخته د يقطين.

**فائده:** یقطین وضع دی لپاره د مفهوم کلي هر هغه نبات ته وايي چې پر مځکه باندې پروت وي لکه هغه درخته چې تنه نه لري لکه خټکی، هندوانه، ژړ کدو، بادرنګ، مرغونې، چمبرخيال وغيرها، يقطين اسم جنس دی او يقطينة يې واحدة ته وايي، دلته مستعمل په عرف عام کې په قرع کې چې کدو ته وايي استعمالاً للعام في فرد خاص.

**سوال:** شجره په لغت کې درختي ته وايي چې تنه نه کوي، نو پر يقطين اطلاق څرنګه وسو؟

**ځواب:** بعض مفسرين وايي چې خرق العادة يقطين لکه درخته پورته سو او پرده لوړ وغوړېدی، فائده يې داده چې پر ده سايه وکړي ولي دده بدن نازل ؤ ګرمي به پر پرېوتل، او بله فائده يې داده چې يقطين پر بلګو مچ نه کښېني.

**درویش وايي:** چې دا فضل د خدای جل جلاله دی پر خپل دوست، او د يونس عليه السلام معجزه ده، او بعض مفسرين وايي چې خدای د يقطين بغل ته درخته چې ساق او تنه يې درلوده پيدا کړه، او يقطين د هغې درختي ته پورته سو او مجموع لکه درخته د يقطين وګرځېدل، او دا هم معجزه د يونس کښل کېږي، په يو روايت کې راغلي دي چې يو چا و رسول الله صلى الله عليه وسلم ته وويل چې ستا قرع يعني کدو ډېر خوښ دی؟ ده ورته وويل اجل هي شجرة اخي يونس، په حديث کې راغلي دي چې (وعل) په بل روايت (اروية) چې د غيره مېږه ده يا بزه چې سهار او ماښام به يونس

ته راتله ده به یې شیدې ځیښلې حتی چې بدن یې قوي سو او غوښې د بدن یې کلکي سوې او وېښتان یې پر سر او ږیره پیدا سوه او قوة برجا سو.

**درویش وایي:** چې یونس علیه السلام وروسته تر دې چې روغ رمټ سو یوه ورځ تر درختي لاندې بیده سو چې راویښ سو درخته وچه سوې وه، نو ډېر غمجن سو او لمر هم په تکلیف کړی فجعل یبکی فجائه جبرئیل، فقال اتحزن علی شجرة ولا تحزن علی مأة الف او یزیدون من امتک قد اسلموا وتابوا.

**درویش وایي:** چې دا قصه مقاتل بن حبان رح راوړې ده او مظهري رح یې نقل کړې دی او روح المعاني او روح البیان یې هم نقل کړی دی بالفاظ متفاوتة لکن متحدة المآل، نورو مفسرینو خو وروسته هیڅ نه دي ویلي لکن مظهري وروسته په دې عنوان سره بیان کړی دی.

**مسئله:** لایجوز ذکر ذلة الانبیاء فان ذلتهم توجب کمال الانابة الی الله ﷻ ورفع درجاتهم؟

**سوال:** مظهري رح په خپله بیان د ټولو حالاتو د یونس علیه السلام چې په قرآن کریم کې راغلي وه وکړی کما مر آنفا، نو دا به ذکر د ذلت د یونس علیه السلام نه وي او که څرنګه؟

**ځواب:** د مظهري رح مراد دادی چې پر طریقه د اعتراض دې ذکر نه کوي کمایدل علیه عبارته فیما بعد یعني قوله ومن اعترض علی احد من الانبیاء علیهم السلام فقد کفر، کریمه: لانفرق بین احد من رسله.

وَأَرْسَلْنَٰهُ إِلَىٰ مِا۟ئَةِ أَلْفٍ أَوْ يَزِيدُونَ ﴿١٤٧﴾

او موږ واستاوه یونس ع و یو لک کسانو ته او یزیدون، قال مقاتل والکلبي رح بل یزیدون یعني کلمة د او په معنی د بل ده، او سید المفسرین عبدالله بن عباس رضی الله عنهما وایي ویزیدون یعني کلمة د او په معنی د واو ده، واختلفوا في مبلغ تلک الزیادة فقال ابن عباس رضی الله عنهما ومقاتل رح عشرین الف، رواه الترمذي، او الحسن رح وایي دېرش زره یو څه بالا او سعید بن جبیر وایي اوویا زره لکن د عشرین الفا روایة قابل د اعتماد دی لما مر من قول ابن عباس رضی الله عنهما ولما روی ابی بن کعب رضی الله عنه عن رسول الله ﷺ یزیدون عشرین الفا.

**پوښتنه:** يونس عليه السلام د مخه خداى ﷻ رسول استولى ؤ نو ددې ارسال معنى څه ده؟

**جواب:** روح المعاني وايي والارسال على ما اخرج غير واحد من مجاهد والحسن وقتادة هو الارسال الاول الذي كان قبله قصة الحوت، نو دا جمله عطف ده على قوله تعالى وان يونس آه على سبيل بيان لابتداء حال يونس وانتهائه او بل داوجه ده چي په دې ارسال كي تصريح بماهو المقصود من الارسال وهو الايمان كما ستسمع صرف په منځ كي د ارسال اول او ثاني قصه د التقام په طور د جمله معترضه راوړه لغرابتها.

**سوال:** حمل ددې ارسال پر ارسال اول باندي مانع يې فاء في قوله:

فَآمَنُوا فَمَتَّعْنَاهُمْ إِلَىٰ حِينٍ ﴿۱۴۸﴾

(فآمنوا) فان قوم يونس خو ايمان نه ؤ راوړى د ارسال اول په وخت كي بلكې چي يونس عليه السلام ځني ولاړى او قوم ته دده علامات د عذاب ښكاره سوه، نو دوى توبه وكښل او ايمان يې راوړى كما مر في تفصيل القصة، نو كه دا ارسال عين ارسال اول وي نو تفريع د آمنوا بالفاء څرنګه صحيح كېږي؟

**جواب:** روح المعاني په دفع كي ددې سوال داسي ويلي دي: اجيب بانه تعقيب عرفي (اى بعد الارسال الاول) كما في قولهم تزوج فلان فولد له، مع ان التولد متراخ بزمان كثير من التزوج كما لايخفى، وقيل الاقرب ان الفاء للتفصيل والسببية ولاريب ان الاول من الارسال سبب لايمانهم ولو بعد زمان طويل.

(فَمَتَّعْنَاهُمْ إِلَىٰ حِينٍ) نو موږ د دوى ژوندا ته نفع وركړه تر يو وخت پوري يعني الى انقضاء اجلهم المعلوم عند الله.

**فائده:** ذكرها روح البيان وروح المعاني چي په يو حديث طويل كي چي له ابن مسعود رضي الله عنه څخه روايت دى راغلي دي چي يونس عليه السلام بعد نبذ بالعراء وانبت عليه الشجرة وصح جسده وحسن حاله كما مر خرج (را ووتى د خپل ځايه من موضع الشجرة) نو ده يو شپانه وليدى چي پسونه يې پوول، نو يونس عليه السلام ورته وويل ممن انت يا غلام (ته د چا يې قوم څخه يې يا غلام) هغه ورته وويل من قوم يونس يونس عليه السلام ورته وويل چي ته چي ورسې قوم يونس ته زما سلام پر ووايه او دا ورته

ووایه چي ما یونس ولیدی، غلام ورته وویل چي که ته یونس یې خو په دې به خبر یې چي د یونس په قوم کي دا قانون وُ چي چا به دروغ وویل او شاهدان به یې نه درلوده هغه سړی دوی قتل کاوه، فمن یشهد لي اذ قلت رئیت یونس. نو یونس ورته وویل چي دغه درخته او دغه مځکه دي شاهدان زما د رؤیت دي. شپانه ورته وویل چي ته یې زما په مخ کي تجربه کړه یعني دا درخته او مځکه، یونس علیه السلام هغې درختي او مځکي ته وویل چي دا غلام چي هر وخت تاسي ته راسي فاشهدوا له. مځکي او درختي ورته وویل نعم! شپانه ولاړی پسونه یې بوتله قوم ته ورغلی او دا قصه د لیدلو د یونس علیه السلام یې ورته وکړه، دې شپانه تکړه وروڼه درلوده چي د ملک په دربار کي یې آمد و رفت درلودی، نو شپانه یې ملک ته ورواستاوه، شپانه ملک ته وویل چي ما یونس علیه السلام ولیدی سلام یې هم وایه، ملک امر وکړی چي دا غلام قتل کړئ، د ملک په خیال کي دا وُ چي دروغ یې وویل، غلام ورته وویل چي زه شاهدان لرم، ملک خلک ورسره واستول فانتهوا الی الشجرة والبقعة. غلام ورته وویل چي زه تاسي ته قسم په خدای جل جلاله درکوم چي یونس علیه السلام تاسي زما شاهدان ونه کړځولاست؟ قالتا نعم! فرجع القوم مذعورین یقولون تشهد لک الشجرة والبقعة. نو دوی ملک ته ورغله قصه یې ټوله ورته وکړه ملک غلام تر لاس ونیوی پر خپل تخت یې کښیناوه و ورته وه یې ویل انت احق بهذا المقام مني. غلام پر تخت کښېنستی څلویښت کاله یې ښه حکمراني پر وکړه.

**درویش وايي:** چي دا حدیث چي په اصطلاح یې خبر بولي امام احمد یې په زهد کي راوړی دی، او بل جماعت هم راوړی دی، روح المعاني وايي چي له دې قصې څخه دا معلومېږي یعني ظاهراً چي یونس علیه السلام لم یرجع الی قومه بعد ان اصابة ما اصابه منهم انتهی قول روح المعاني.

**درویش وايي:** چي د انبیاء علیهم السلام زړونه خدای جل جلاله له بغض او عداوت څخه پاک ساتلي دي، نو د یونس علیه السلام مانع له ورتګ څخه دا وُ چي یونس علیه السلام له خدایه دا غوښتل چي قوم ایمان راوړي، او بله خبره دا ده چي ملک که څه هم سلطنت و غلام ته وسپاری او هغه څلویښت کاله ښه حکمراني کوله لکن ابتدائي حالت د تبلیغ د یونس علیه السلام خو صرف توحید وُ، وروسته چي دوی ایمان راوړی د اسلامي

احکامو چې په هر دين کې ستهٔ يونس عليه السلام ته د بنوونې ضرورت ستهٔ.

**سوال:** چې داسې ده نو ولې يونس عليه السلام سلام د شپانه په لاس ورکاوه؟

**ځواب:** هغه صرف د قوم د بشارت لپاره ؤ چې يونس عليه السلام ژوندی دی، قوم به يې د راتلو د خوشحالۍ شپې او ورځې تېرولې..... بيت:

چه خوش باشد که بعد از انتظاری ...... با امید رسد امید اوری

او بله فائده د سلام قبل الکلام داده چې قوم د يونس چې د غلام سره راغله او شاهدي د درختې او د بقعة يې واورېل، او نور قوم ته يې بيان وکړې دا يوه معجزه وه چې ايمان د قوم يې پر رسالت د يونس ترېخوا چې دوی په غياب کې د يونس ايمان راوړی ؤ نور مستحکم سو، الى غير ذالک من الفوائد.

**پوښتنه:** د نورو انبياء کرامو عليهم السلام قصه چې به خلاصه سوه په پای کې به يې سلام على الياسين انا کذالک نجزي المحسنين انه من عبادنا المؤمنين وکذالک قصة موسىٰ و هارون وغير ذالک، لکن قصه د لوط او د يونس يې په عبارت نه کړه بدرګه، سر يې څه دی؟

**ځواب:** لپاره د فرق بينهما اى بين لوط و يونس وبين اصحاب الشرائع الکبرى و اولى العزم من الرسل او اکتفاءً بما في اخير السورة يعني وسلام على المرسلين، لانه شامل لکل الرسل، او په عين حال ددې دوو يعني لوط و يونس او نور فرق سره وسو بالتصريح په نورو رسولانو کې مع دخولهم في الآخير او ددوی دوو په باره کې يې هغه اجمالي سلام کافي وګرځاول سو.

فَاسْتَفْتِهِمْ أَلِرَبِّكَ الْبَنَاتُ وَلَهُمُ الْبَنُونَ ﴿١٤٩﴾

هذه الجملة عطف على قوله تعالى فاستفتهم اهم اشد خلقًا ام من خلقنا.

**بوه سه:** چې رسول الله صلى الله عليه وسلم امر سو اولاً عن انکارهم البعث په داسې دول چې دوی و اقرار ته مجبور کړي يعني اى المخلوقين اشد خلقهم ام خلق غيرهم من السماء والارض والملائکة، دوی مجبور دي چې وايې به چې خلق د سماء والارض والملائکة اشد من خلقهم نو هغه خدای قادر دی پر بعث بعد الموت باندې ستاسې، وروسته خدای يو څو قصې د انبياء سره د قومو ددوی وکړې چې

مناسب ددې سره وې چې انكار البعث باطل دی، په دې اوسني آياتو کې خدای علیه الصلوٰة والسلام امر کړی چې پوښتنه ددې قسمت ددوی ځني وکړه چې دوی خدای ته بنات وايي او خپلو ځانو ته زامن وايي چې دوی وايي چې ملائکه د خدای لوڼې دي او خپلو ځانو ته ته زامن نو دې کفارو پر کفر بل شی هم بالا کړی چې خدای جسم دی فان الولادة مخصوصة بالاجسام وتجويز البنات على الله او ځانونه يې تر خدای ﷻ بالا کړه، ولي و خدای ته يې هغه بيکاره له دوو صفتو څخه د اولاد چې لوڼې منسوب کړې واشرفهم لانفسهم يعني البنين او سپکاوی د ملکو يې هم وکړی چې د انوثت نسبت يې ورته وکړی، ځکه خدای دا صنيع شنيع ددوی مکرره په قرآن کې ذکر کړې ده: کريمه: انكم الذكر وله الانثى تلک اذا قسمة ضيزٰى وغير ذالک في القرآن.

اَمْ خَلَقْنَا الْمَلٰٓئِكَةَ اِنَاثًا وَّهُمْ شٰهِدُوْنَ۝

انتقال من كفرهم الى كفرهم الآخر آيا پيدا کړې موږ ملکې ښځې لکه بنو مدلج او بنو خزيمه به ويل چې خدای د جناتو لوڼې په نکاح کړې دي ملکې يې لوڼې راوړې دي، ولهذا عبدو الملائكة دوی وايي چې ملکې ځانونه مستور ګرځوي چې څوک يې نه ويني لکه ښځې د انسانانو (وهم شاهدون) حال دی من فاعل خلقنا دا حال د استهزاء او د تجهيل ددوی سبب دی يعني دوی حاضر وه چې ملکې زېږېدلې، ولي چې د نر او ښځې زېږېدل په حضور پورې اړه لري نه په بداهت سره معلومېږي او نه په دليل سره.

اَلَآ اِنَّهُمْ مِّنْ اِفْكِهِمْ لَيَقُوْلُوْنَ۝ وَلَدَ اللّٰهُ ۙ وَاِنَّهُمْ لَكٰذِبُوْنَ۝

**پوه سه!** (الا حرف تنبيه دی يعني بدانکه) دوی له خپلو عظيمو درواغو څخه (چې معنی د افک ده) دوی وايي چې خدای وزېږولې لوڼې، او په تحقيق دوی درواغ وايي:

اَصْطَفَى الْبَنَاتِ عَلَى الْبَنِيْنَ۝ؕ

اصل د اصطفٰى استفى ؤ اول همزه د استفهام انکاري او استبعاد چې مفتوح دی او دوهم الف د باب د افتعال دی چې مکسور دی، نو الف د افتعال يې حذف کړی.

ولې دا الف د وصل دی په وخت د ..... کې د کلمې د وصل حذف کېږي، او همزه د استفهام انکاري پاته سو، والمعنى اتقولون انه تعالى اخص اى اختار لنفسه اخس الصنفين من الرجال والاناث، تفسير حسيني وايي: آيا برگزيد خداى تعالى دختران راكه مكروه طبع طباع شما اند بر پسران كه مادهٔ افتخار شما ايشانند.

مَا لَكُمْ كَيْفَ تَحْكُمُونَ ﴿١٥٤﴾ أَفَلَا تَذَكَّرُونَ ﴿١٥٥﴾ أَمْ لَكُمْ سُلْطَانٌ مُّبِينٌ ﴿١٥٦﴾

څه شی دی تاسي لره دليل په دې قسمت تاسي څرنګه حکم کوئ (يعني پر غني من العالمين بهذا الحكم الفاسد الباطل بالبداهة العقلية) آيا تاسي پند نه اخلئ چي خداى ﷻ منزه دی له ولد څخه مطلقاً.

**فائده:** حسب القانون النحوي وروسته تر همزه د استفهام چي حرف عطف راسي هغه معطوف پر محذوف دی، والتقدير ههنا الا تتفكرون فتذكرون.

(ام لكم سلطان مبين) آيا تاسي لره حجت واضحه سته د خداى ﷻ چي ملائكه بنات الله دي؟ ومعنى الآيات چي اسباب د علم حصر دي په درو کي العقل، والحس، والخبر الصادق، او دا معلومه خبره ده نفس خبر مفيد د علم نه دی چي يا پر حس بنا، نه وي لکه سړی چي ووايي: زيد رجل او على الاعلام من الله العالم الغيب كالاحكام الالهية المذكورة في القرآن المنزل من عند الله، نو په دې آيتو کي خداى پاک انکار وکړی پر دلالة العقل على ان الملائكة بنات الله بقوله الربك البنات ولهم البنون، ولې سره ددې چي برهان قوي سته مطلق الولد پر خداى ممتنع دی. نو دوی څرنګه ادراک ددې کولای سي چي ملائکه انثى دي په عقل صرف سره، ولايجوز العقل ان يثبت اخس الفريقين للخالق اى الانثى واشرفها للمخلوق اى البنون، وروسته بيا خداى پاک انکار وکړی د دليل حسي څخه ددوی يعني المشركين بقوله ام خلقنا الملائكة وهم شاهدون يعني تاسي خو نه واست حاضر وخلق ته د ملکو چي د انوثيت دعوه يې کوئ، وروسته خداى پاک انکار وکړی چي په دې دعوى کي تاسي يو خبر صادق من الله العليم الخبير په لاس کي نه لرئ (ام لكم سلطان مبين؟)

فَأْتُوا بِكِتَابِكُمْ إِن كُنتُمْ صَادِقِينَ

راوړئ ستاسي کتاب چي منزل من عند الله دی چي ملکي د خدای لوڼي دي. که رښتيا ويونکي ياست په دې دعوی کي چي ملائکه بنات الله دي.

**يوه سه:** چي پر جزاء د ان شرطيه ماقبل دلالت پر کوي.

وَجَعَلُوا بَيْنَهُ وَبَيْنَ الْجِنَّةِ نَسَبًا

ددې آيت په ترجمه کي لوی اختلاف دی.

قال الكلبي "قالوا يعني كفار قريش (لعنهم الله) ان الله سبحانه وتعالى تزوج من الجن (د پيرانانو يعني ددوی د لوڼو يا خويندو سره) فخرج منها الملائكة. وقال بعض قريش لکه ابن عباس رضي الله عنهما چي روايت کړی دی نزلت هذه الآية په درو قبيلو کي د قريشو سلمة، خزاعة و جهنية چي دوی به ويل ملائکه بنات الله دي، نو ابوبکر الصديق رضي الله عنه ورته وويل فمن امهاتهم؟ قالوا سروات الجن (هغه سردارني ښځي دي د پيرانانو) كذا اخرجه البيهقي في شعب الايمان عن مجاهد.

**درويش وايي:** چي دا دواړه روايتونه نسبًا په معنی د مصاهرة دي، قتاده وايي چي مراد له جن څخه ملائکة دي سموها جنة لاستتارهم عن الابصار (ولي د جن لفظ د پټ معنی ورکوي، له دې وجهي د مور په نس کي کوچني ته جنين وايي، او قيامت ته جنت وايي لاستتار ارضها باغصان اشجارها المثمرة).

مظهري وايي: چي ملکي چي په دې نامه يادي کړل سوي تحقيرًا لشانهم عن مرتبة النبوة لله سبحانه تعالى انتهى. يعني په عرف کي ظاهرًا پيريان حقير ګڼل کيږي.

وَلَقَدْ عَلِمَتِ الْجِنَّةُ إِنَّهُمْ لَمُحْضَرُونَ

دا جمله معترضه ده، لام موطئه د قسم محذوف دی، او پوهيږي جن انهم ای قائلي هذا القول او الانس مطلقًا او الجنة بمعنی د امهات الملائكة حاضره کړه کيږي و نار ته.

سُبْحَانَ اللَّهِ عَمَّا يَصِفُونَ

پاکي ده و خدای لره د هغه شي څخه چي دوی توصيف په کوي من النسب، دا جمله معترضه اخرى ده.

إِلَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ

مګر نه بندګان د خدای چې ځان یې د کفر او معاصي څخه ساتلی وي چې مؤمنان دي.

**پوهه:** چې دا استثنا له ضمیر څخه د انهم نو له هغه ضمیر څخه مراد قائلین دي د ولد د خدای نو استثنا منقطع ده ولې چې مؤمنان یا ملکي خو قائلین د دې قول نه دي، او که مراد له ضمیر څخه عام سي ای الکافر والمؤمن من الانس والجن والملائکة، نو دا استثنا متصل ده لپاره د اخراج د مؤمنانو من الجن والانس والملائکة لان هؤلاء غیر محضرون الی النار.

فَإِنَّكُمْ وَمَا تَعْبُدُونَ ۝ مَا أَنتُمْ عَلَيْهِ بِفَاتِنِينَ ۝ إِلَّا مَنْ هُوَ صَالِ الْجَحِيمِ

په تحقیق تاسې (یعني یا اهل مکه، التفات دی له غیبت څخه و خطاب ته او کلمه د فاء جزائیه ده او شرط محذوف دی، والتقدیر اذا جعلتم بینه تعالی وبین الجنة نسبًا فانکم) او چې تاسې یې عبادت کوئ چې بتان دي، نه یاست تاسې پر خدای په فتنه کې اچونکي یعني په ضلال کې اچونکي پر خدای ﷻ، مګر نه هغه څوک چې داخل اور ته کرځي ای کان في علمه القدیم، انه شقي کافر.

**پوهه:** چې جار و مجرور یعني علیه متعلق دي بقوله (بفاتنین).

وَمَا مِنَّا إِلَّا لَهُ مَقَامٌ مَّعْلُومٌ

**درویش وایي:** چې دا حکایت دی د اقرار د ملکو په عبودیت سره لپاره د هغو کسانو چې د دوی عبادت یې کاوه بناءً علی انهم بنات الله کمامر.

**فائده:** مقام معلوم څخه مراد یا عبودیت لکل واحد منهم یا مقام معلوم دی په اسمانو کې یعبد الله فیه، او یا مقام معلوم دی و قرب الی الله ته، لایتجاوز منه. ابوبکر الوراق وایي چې له مقام معلوم څخه مراد هغه مقامات د خوف او د رجاء او محبت او رضاء دي.

حاصل دا دی چې هره ملکه خپله وظیفه لري او خپله نوع د عبادت لري او خپل ځای په آسمانو کې لري، مثلاً د جبرئیل وظیفه عمومي وه چې راوړل دي وحي و انبیاء کرامو علیهم السلام ته او د یو قوم د اهلاک لپاره لویه نعره کول دي، لکن اصلي

مقام دده صدرة المنتهى دى، يعني تر هغه مقام لوړ نسي تيريداى، د نبي اكرم ﷺ د معراج په شپه چي په ټولو اسمانو كي د عليه الصلوة والسلام همراه وُ؛ صدرة المنتهى ته ورسيدى و عليه الصلوة والسلام ته يې وويل: ستا يې په مخه ښه زه دلته پاتيږم، چي سعدي شيرازي ؒ دا موضوع داسي بيان كړې ده:

چنان گرم در تیه قربت بماند..... که در سدره جبرئیل ازو باز ماند

بدو گفت سالار بیت الحرام....... که ای حامل وحی برتر خرام

بگفتا فراتر مجالم نماند....... بماند که نیروی بالم نماند

اگر یک سر موی برتر پرم....... فروغ تجلی بسوزد پرم

تر هغه وروسته عليه الصلوة والسلام د نور په پردو كي روان ؤ حتى لامكان ته ورسيدى. ع: مه پرسيد از ما كيفيت كه چون بود.

**درويش وايي:** چي د معراج تفصيل واره بيان ما په تفسير كي د سورة بني اسرائيل كړى دى.

## وَإِنَّا لَنَحْنُ الصَّآفُّونَ ﴿١٦٥﴾

او موږ يعني د ملكو ډله (لام د تاكيد لپاره دى) موږ په صف دريږو په عبادت كي د خداى ﷻ. ابن ابى حاتم له زيد بن مالك رضي الله عنه څخه روايت كړى دى چي صحابه كرام رضي الله عنهم به په جماعت كي پس او پيش دريدل، ځو دغه آيت نازل سو. رسول الله ﷺ دوى امر كړه په برابر صف دريدو سره. تر اوسه دا مر د امام المسجد پر ذمه پاته دى چي خلكو ته به په عربي وايي: استووا پر راسته طرف، او پر چپه طرف دي وايي اعتدلوا. او پښتانه ملايان به وايي: صفونه برابر كړئ پښو او وږو ته سره وګورئ، وامثال ذالك. له جابر بن سمره رضي الله عنه څخه روايت دى چي رسول الله ﷺ خلكو ته وويل الا تصفون كما تصف الملائكة عند ربها (يعني تاسي په صفو كي داسي نه دريږئ لكه چي ملكي په صف كي دريږي په نيژ د رب ددوى) فقلنا يا رسول الله كيف تصف الملائكة عند ربها (يعني ملكي څرنګه د خداى ته په صف كي دريږي) قال ﷺ يتمون الصفوف الاولى (يعني اول صفونه پوره كوي يعني كه په اول صف كي ځاى وي تر شا نه دريږي، وهكذا الصف

الثاني والثالث، فقهاء وايي كه په اول صف كي ځاى وُ تر شا دربدل مكروه دى)
ديتر اصون في الصف (او جوت سره دريږ يعني فرجه په مابين كي نه پرېږدي)

وَإِنَّا لَنَحْنُ الْمُسَبِّحُونَ ﴿١٦٦﴾

او موږ د خداى پاكي وايو د هغه شي چي دده د ذات سره لائق نه وي كاتخاذ الولد ونحو ذالك.

**فائده:** په دې آيت كي اول تاكيد په ان سره راغلى بيا په لام سره بيا ضمير فصل چي نحن دى راغلى، دا ټوله لپاره د رد دي چي دوى به ويل چي ملائكه بنات الله دي.

**سوال:** ملكو ولي حصر پر ځان وكړى، مؤمنان خو هم نه وايي چي ملائكه بنات الله دي؟

**ځواب:** دا حصر حقيقي نه دى بلكې حصر اضافي دى، يعني موږ داسي نه وايو لكه كفار مشركين چي وايي چي ملائكه بنات الله دي.

وَإِن كَانُوا لَيَقُولُونَ ﴿١٦٧﴾

**پوهه:** چي كلمه د ان مخفف ده له مثقل څخه اسم يې ضمير شان محذوف دى، والمعنى شان دادى او كانوا خبر دى د ان ليقولون ضمير مرفوع يې راجع دى و كفارو ته د مكې او دا خبره دوى هغه وخت كوله چي عليه الصلوة والسلام نه وُ مبعوث سوى.

**فائده:** كلمه د لام فارق ده په منځ د ان نافيه او د ان مخفف من المثقل.

لَوْ أَنَّ عِندَنَا ذِكْرًا مِّنَ الْأَوَّلِينَ ﴿١٦٨﴾ لَكُنَّا عِبَادَ اللَّهِ الْمُخْلَصِينَ ﴿١٦٩﴾

مراد له ذكر څخه كتاب دى، يعني كه موږ ته كتاب راكړل سوى واى لكه د مخه امتو ته چي وركړل سوى وُ، موږ به بندگان د الله ﷻ واى په ښه اخلاص سره، يعني موږ به خالص عبادت د الله پاک كولاى مخالفت به مو نه كولاى له حكم څخه د خپل كتاب.

فَكَفَرُوا بِهِ ۖ فَسَوْفَ يَعْلَمُونَ ﴿١٧٠﴾

كلمة الفاء فصيحية يعني پر محذوف بنا ده يعني چي دوى ته راغلى اشرف الاذكار چي قرآن مجيد دى، دوى كفر او انكار له هغه څخه وكړى (فسوف

یعلمون) کلمة الفاء سببیة لان الکفر سبب للوعید چي دوی په پوه سي په عاقبت د خپل کفر او هغه شی چي پر دوی راځي من الانتقام والعذاب کما في یوم بدر او یا عذاب الجوع والقحط.

وَلَقَدْ سَبَقَتْ كَلِمَتُنَا لِعِبَادِنَا الْمُرْسَلِينَ ﴿١٧١﴾ إِنَّهُمْ لَهُمُ الْمَنصُورُونَ ﴿١٧٢﴾

لام موطئه د قسم محذوف دی ای بالله چي د مخه تېره سوې ده په ازل کي یا په لوح محفوظ کي کلمتنا وعده زموږ مع قدرتنا علی ایفاء الوعد زما د بندګانو سره اضافة لپاره د تشریف د مضاف دی ای الذین اخلصوا العبادة لنا في کل وقت وفي الحرکة والسکون، المرسلین چي زما له خوا خلکو ته استول سوي دي یعني پر شرف د اخلاص یې شرف د رسالت زما د خوا څخه هم ورکړل سوی وي، ثم فسر الله ذالک بطریق الاستیناف چي دوی یعني خاصة کما یدل علیه ضمیر الفصل بین اسم ان چي هم اول او بین خبر ان چي المنصورون دی.

وَإِنَّ جُندَنَا لَهُمُ الْغَالِبُونَ ﴿١٧٣﴾

په تحقیق زموږ لښکر یعني چي في سبیل الله د کافرانو سره جنګېږي، خامخا دوی دي غالبه پر اعداء الله.

**پوښتنه:** په احد کي خو هم مسلمانان في سبیل الله د کفارو سره د قریشو جنګېدل او سره دده دې لوی هزیمت یې په برخه سو، حتی چي د علیه الصلوة والسلام غاښ مبارک مات سو او سر مبارک یې مات سو او نورو ډېر شهیدان یې د لاسه ورکړه؟

**ځواب:** د احد هزیمت په سبب د شوم د عصیان د بعضي کسانو چي د علیه الصلوة والسلام د امر مخالفت یې وکړی چي هغه د عبدالله بن جبیر رضي الله عنه په مشری په یوه دره کي پنځوس کسان کښېنولي وه، اولاً کفارو ته شکست ورکړل سو، چي جنګ پای ته ورسېدی د عبدالله رضي الله عنه ملګرو ده ته وویل چي نور نو موږ دلته د څه لپاره ناست یو هغه دی کفارو شکست وکړی او په عین حال کي یې دا هم وویل یا قوم الغنیمة، هرڅو چي عبدالله رضي الله عنه په قرار د وصیت د علیه الصلوة والسلام دوی منع کول خو دوی نه سوه منع، صرف ۱۴ کسه د عبدالله رضي الله عنه سره پاته سوه، خالد بن الولید چي په هغه وخت کي لا مسلمان نه ؤ، د دوو سو کسو په مشری له هغې درې څخه پر را ووت هغه څورلس یې سره د مشر شهیدان کړل.

**درويش وايي:** چي وقد مر الفصيل لغزوة احد فيما قبل فتذكر.

فَتَوَلَّ عَنۡهُمۡ حَتّٰى حِيۡنٍۙ

(فتول) جواب د شرط محذوف دى اى اذا علمت ان النصرة والغلبة لك ولاتباعك فاعرض عن كفار مكة واصبر على آذاهم (حتى حين) اى مدة يسيرة اى مدة الكف عن القتال (يعني چي د جهاد امر در كړل كيږي) نو دا آيت محكمه دى په آية القتال منسوخ نه دى، ولي چي په قتال سره مقيد دى. نو څوک چي وايي چي دا آيت منسوخ دى په آيت القتال سره لم يأت بشئ فافهم

وَّاَبۡصِرۡهُمۡ فَسَوۡفَ يُبۡصِرُوۡنَ

ته ګورې دوى ته مغلوبين مقتولين معذبين (په دې اشاره ودوى ته چي دا مغلوبيت ددوى كائن لامحالة لكه دده په مخ كي چي وي، واقرب مثاله مغلوبية المشركين يوم بدر وهكذا سائر غزواته او فتح مكة) ژر دى چي دوى به هم ويني ستا نصرت والتائيد في الدنيا والثواب في الآخرة آه، او يا د دارين جزاء به ويني لان عذاب الآخرة وان كان بعيدًا لكنه قريب لانه آتٍ لا محالة، حتى كه څوک قسم واخلي چي قيامت نژدې دى تر پرون ورځي حانث نه دى، قالوا ما اقرب ما هو آتٍ وما ابعد ما هو فات.

**پوهه:** چي ابن جرير له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت كړى دى چي انه لما نزل نسوف يبصرون مشركان د مكې وويل متى هذا العذاب فنزل.

اَفَبِعَذَابِنَا يَسۡتَعۡجِلُوۡنَ

آيا زموږ د عذاب تلوار كوي استفهام لپاره د انكار او توبيخ دى. والفاء للعطف على محذوف كما هو القانون النحوي وقد مر مرارًا تقديره ههنا ايجهلون شاننا (زموږ د قدرت حال دوى ته نه دى معلوم اذا اراد شيئًا فيقول له كن فيكون) فبعذابنا يستعجلون، يعني بايد دوى د عذاب غوښتنه ژر تر ژره نه وي كړي.

فَاِذَا نَزَلَ بِسَاحَتِهِمۡ فَسَآءَ صَبَاحُ الۡمُنۡذَرِيۡنَ

چي نازل سو عذاب يعني پر غولي ددوى، الفراء وايي چي عرب يكتفى بذكر الساحة من القوم، فالمراد بالساحة القوم او بعض مفسرينو يو له مقام څخه بعيد

احتمال راوړی دی یعني ضمیر د نزل یې و علیه الصلوة والسلام ته راجع کړی دی، حیث قال اذا نزل الرسول ﷺ مع جیشه بساحة الکفار انتهی وجه د بعد یې ظاهره ده (فساء صباح المنذرین) نو بد دی سهار د منذرینو له عذاب څخه، نو ساء په معنی قبح دی او لام المنذرین لپاره د عهد دی ای صباحهم.

**پوه سه:** چې په عربي کې مستعار دی لپاره د وخت د نزول د عذاب اي وقت کان، یعني که ماښام وي او که ماپښین وي او که بل وخت وي، ولما کانت الهجوم والغارة عادةً في وقت الصباح یعني حین الغفلة سموا الغارة صباحًا وان وقعت في وقت آخر کما ورد في الحدیث المروي عن انس بن مالک رضی الله عنه چې رسول الله ﷺ چې اراده د جنګ او غزاء د خیبر وکړه اتاها لیلاً (د شپې خیبر ته ورسېدی، او عادت د علیه الصلوة والسلام دا ؤ چې د شپې به یو ځای د کافرانو د جنګ لپاره ورغلی تر سهاره یې حمله نه کول (سر یې دا ؤ چې د شپې د ښځو او د کوچنیانو تمیز د لویانو څخه نه کېږي، او د ښځي او صبیانو وژل ممنوع دي په شرع کې) نو چې سهار سو یهودان د خیبر ناخبره د باغو د کارو لپاره راووتل او یو مان او بیلچې ورسره وې، او ټوکرۍ او سودې هم ورسره وې، علیه الصلوة والسلام وویل: الله اکبر خربت خیبر (یعني په آلاتو د خراب چې ددوی سره ورسره وه نېک فالي یې وکړه) او دا خبره یې وکړه انا اذا انزلنا بساحت قوم فساء صباح المنذرین یعني و مضمون ته د آیت فاذا انزلنا بساحتهم فساء صباح المنذرین ته یې اشاره وکړه، په وروسته آیت کې خدای پاک مکرر کړی تاکیدًا لوعید العذاب، وقال:

وَتَوَلَّ عَنْهُمْ حَتّٰى حِيْنٍ ﴿۱۷۸﴾ وَّاَبْصِرْ فَسَوْفَ يُبْصِرُوْنَ ﴿۱۷۹﴾

مخ واړوه له وی څخه تر یو وخت پورې ته ووینه عذاب چې پر دوی واقع سي، دوی به هم ووینې.

**درویش وایې:** چې معنی یې هغه ده چې قبلاً قریبًا ذکر سوه.

سُبْحٰنَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُوْنَ ﴿۱۸۰﴾

پاکي ده رب لره ستا یعني مما لایلیق بشانه وسلطانه چې رب د قوت او غلبې دی.
**فائده:** رب چې یې و العزة ته مضاف کړی لپاره د دې چې عزة او قوة او غلبه

خاص په خدای ﷻ پوري ده یا په هغه څه پوري ده چي خدای ﷻ ته منسوب وي لکه رسول دده او مؤمنان (عما یصفون) له هغه څه څخه چي مشرکان او کافران يې ده ته نسبت کوي چي په دې سورت کي تېره سوه چي صفات...... او سلبيه ټولو ته شامل دي، او دا آیت اجمالاً و هغو صفاتو ته شامل دی.

وَسَلَٰمٌ عَلَى ٱلْمُرْسَلِينَ ۝

او سلام دی د خدای ﷻ له خوا څخه پر رسولانو چي د خدای تعالیٰ ټوله اوامر او منهيات او شیون او صفات يې په اکمله وجه سره خلګو ته بیان کړه.

وَٱلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ ٱلْعَٰلَمِينَ ۝

او حمد کامل یا جنس د حمد یا ټوله محامد خدای تعالیٰ لره دي چي رب د ټولو عالمیانو دی، د امیر المؤمنین علي رضي الله عنه څخه روایت دی چي ده وویل چي که چاته په ډکه پیمانه (يعني عظيم ثواب) خدای تعالیٰ ورکړي په ورځ د قیامت، نو باید آخیر کلام دده چي له مجلسه ولاړیږي دغه آیت وي سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ۝ وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ ۝ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝ رواه البغوي في تفسيره.

وقد اخرج الخطيب البغدادي رحمه الله عن ابی سعید الخدري رضي الله عنه چي رسول الله ﷺ به د لمانځه څخه سلام وګرځاوه دغه آیت به يې وایه، واخرج الطبراني عن زید بن ارقم رضي الله عنه عن رسول الله ﷺ من قال دبر کل صلوة (که چا ووایه په وروسته کي د هر لمانځه) سبحان ربک تر اخیره پوري درې واره) فقد اکتال بالمكيال الاوفى من الاجر (نو ده ځان ته پیمانه کړه په ډکه پیمانه د ثواب) واخرج ابن ابی حاتم عن الشعبي قال قال رسول الله ﷺ من شره ان يكتال بالمكيال الاوفى من الاخير يوم القيامة فليقل اخير مجلسه حين يريد ان يقوم سبحان ربک الى اخير الآية.

**درویش وايي:** چي زه هم ددې سورت د تفسیر له ختم کولو څخه فارغ سوم د مازدیګر لمانځه ته ولاړیږم: ۲ شهر ذی الحجة سنه ۱۴۳۱ هـ ، فاقول:

سُبْحَانَ رَبِّكَ رَبِّ الْعِزَّةِ عَمَّا يَصِفُونَ ۝ وَسَلَامٌ عَلَى الْمُرْسَلِينَ ۝ وَالْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَالَمِينَ ۝

سُوْرَةُ صٓ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ ثَمَانٌ وَّ ثَمَانُوْنَ اٰيَةً وَّخَمْسُ رُكُوْعَاتٍ
بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

**درويش وايي:** چي شروع په تفسير د سورة صٓ په تاريخ ۲ شهر ذی الحجة سنه ۱۴۳۱ھ د مابنام پر شپږ بجي شروع سو.

الحمد لله رب العلمين. مالك يوم الدين جل جلاله وعم رحمته واحسانه والصلوة والسلام على سيد المرسلين رحمة للعالمين شفيع المذنبين وعلى آله واصحبه المختارين الطيبين وبك نستعين واشهد ان لآ اله الا الله وان محمدًا رسول الله.

اللهم سهل على عبدك الظلوم الجهول تفسير هذه السورة بالخير والعافية والصحة والسلامة انك على كل شيئ قدير وبالاجابة جدير.

صٓ وَالْقُرْاٰنِ ذِی الذِّكْرِ ①

روايت کړی دی ترمذي، احمد، نسائي او الحاکم رحمهم الله چي ابو طالب چي د عليه الصلوة والسلام مهربان اکا ؤ ناجوړی سو، نو اشراف د قريشو پوښتني ته راغله ولي چي ابو طالب د بني هاشم مشر سړی ؤ، او نبي کريم ﷺ يې هم پوښتني ته راغلی، نو د مشرکانو رئيسانو د عليه الصلوة والسلام شکايت وکړی چي دی زموږ خدايان په بد نامه يادوي، نو ابو طالب و عليه الصلوة والسلام ته وويل: يا ابن اخي (ای د ورور زويه!) ما تريد من قومک، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي له دوی څخه يوه خبره غواړم چي هغه خبره که دوی وکړي عرب به ټول ددوی منقاد سي، وتؤدی اليهم العجم (او عجم به دوی ته جزيه ورکوي) ابو طالب ورته وويل يوه کلمه؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل نعم! ابو طالب ورته وويل چي هغه کلمه کومه خبره ده عليه الصلوة والسلام ورته وويل لا اله الا الله، حاضرينو مشرکانو ناړي کړي اجعل الآلهة الٰهًا واحدًا. ان هذا لشيئ عجاب (دا ټول خدايان يې پر يو ودرول) دا عجيبه خبره ده، فنزل صٓ الى قوله تعالى بل ما يذوقوا العذاب.

**يوه مسله:** چي که څه هم په صٓ کي اختلاف دی، بعض وايي چي نوم د دغه صورت دی لکه په نورو حروف تهجي ؤ کي يعني (قٓ، نٓ، حٰمٓ) وغيرها، محمد بن

کعب[1] وايي چي ص مفتاح د نوم د خدای[2] ده چي صمد او صادق الوعد دی، ضحاک[3] وايي چي معنی يې ده صدق الله، او له ابن عباس رضي الله عنه څخه داسي روايت منقول دی چي معنی يې صدق محمد رسول الله ﷺ ده، لکن مظهري[4] وايي والحق انه من المتشابهات (يعني کسائر المقطعاتت القرآنية)

**درويش وايي:** چي آنفًا ذکر سو کلمة د واو د عطف لپاره نه ده بلکي د قسم لپاره ده، د ذی الذکر ترجمه ابن عباس رضي الله عنه داسي کړی ذی البيان لما يحتاج اليه في الدين من العقائد والشرائع والمواعيد، او مجمل معنی يې داسي بيان کړې ده ذی عظة خاوند د نصيحت دی، فيشمل کل مامر وغيرها فافهم، وقال الضحاک[5] معناه ذی الشرف.

بَلِ الَّذِينَ كَفَرُوا فِي عِزَّةٍ وَشِقَاقٍ ﴿٢﴾

بل لپاره د انتقال دی بلکي هغه کسان چي مشرکان په استکبار کي دي د متلو د قرآن بناءً علی حمية الجاهلية (وشقاق) په خلاف کي د قرآن او په عداوت لمحمد ﷺ، او يا معنی د شقاق دا ده چي په اختلاف کي دي د مايقتضيه العقل والنقل.

**فائده:** تنکير د عزة او شقاق للدلالة علی شدتهما.

**سوال:** کلمه د واو چي والقرآن ده که د قسم لپاره سي نو جواب د قسم څه شی دی؟

**ځواب:** د قسم جواب محذوف دی دل عليه مابعده، والتقدير المشرکون لايؤمنوا به ای بالقرآن، نو کلمه د بل لپاره د انتقال ده له جواب څخه و اغلظ تر جواب کما لا يخفى فتدبر، او روح البيان خو جواب د قسم محذوف بولي، او جواب يې داسي مقدر کړی دی ان محمدًا لصادق في دعوی رسالته وحق نبوته وليس في حقيته شک ولا فيما انزل عليه ريب.

**درويش وايي:** وهذا الجواب ايضًا صحيح فتأمل.

كَمْ أَهْلَكْنَا مِن قَبْلِهِم مِّن قَرْنٍ فَنَادَوا وَّلَاتَ حِينَ مَنَاصٍ ﴿٣﴾

**بوه سه:** چي کم خبريه مفيد د کثرت دی يعني څو مره ډېر هلاک کړي دي موږ تر کفارو د مخه من قرن.

**فائده:** قرن سل (۱۰۰) کاله ته وايي، مراد دلته څخني اهل د قرن دي، او روح البيان يې تفسير په دې سره کړی دی والقرن القوم المقترنون في زمن واحد.

**پوه سه:** چي كم منصوب محلاً دى په اهلكنا سره، يعني مفعول به دى، فالمعنى قرنًا كثيرًا اهلكنا من القرون المتقدمة اى امة من الامم بسبب الاستكبار والانكار على رسلهم.

**درويش وايي:** چي دا آيت وعيد دى وكفارو ته د مكې على استكبارهم وشقاقهم مع رسول الله ﷺ.

(فنادوا) نو ناري كړې دوى يعني كفارو د امم ماضيه وُ حين نزول العذاب بهم، يا استغاثةً يا توبةً واستغفارًا.

**درويش وايي:** چي په وخت كي د نزول د عذاب نه استغاثه او نه توبه او استغفار فائده كوي، كما قال الشيخ السعدي قدس سره.

تو پيش از عقوبت درعفو كوب ..... كه سودى ندارد فغان زير چوب

(ولات حين مناص) نه دى وخت د خلاصون ستاسي له عذاب څخه، دا جمله حال ده له ضمير څخه د نادوا، والعائد محذوف.

**پوه سه:** چي جمله د كم اهلكنا آه بيان د مآل ده ددوى وروسته تر بيان د حال ددوى يعني په قوله تعالى بل الذين كفروا في عزة الخ، والحاصل انهم يهلكون كما هلک من قبلهم يعني هلاک ددوى حتمًا مقضيًا دى.

**فائده:** كلمه لا مشبه بليس ده تا د تانيث پر زياته سوه لتاكيد معناها وهو النفي لان زيادة البنا تدل على زيادة المعنى، او يا ددې لپاره چي تاء ګاهي د مبالغې لپاره راځي كما في علامة، يا تا يې ددې لپاره زياده كړه چي مشابهت دلا د ليس سره محكم سي، ولي چي ليس درې حرف ساكن الاوسط وُ او لات وروسته تر زيادة تا هم درې حرف ساكن الاوسط ګرځي.

**فائده:** لات چي مشبه بليس دى نو اسم يا خبر يې محذوف دى والغالبة حذف المرفوع اى الاسم پر قرائت د جمهورو قراؤ اى ليس الحين (وهو الاسم المحذوف المرفوع) حين مناص دا يې خبر منصوب مذكور دى، هذا مذهب الخليل وسيبويه، او مذهب د اخفش دادى چي كلمه د لا نافيه للجنس ده تا يې پر زياته كړه لتاكيد النفي كما مر عنقريب، نو د اخفش پر مذهب لا عمل د ان كوي فحين مناص اسمها والخبر محذوف يعني لفظ لهم اى كائنًا لهم، او بعض مفسرين وايي چي كلمه دلا

نافيه للفعل ده والفعل محذوف، تقديره لاترى حين مناص حاصلاً لهم.
**فائده:** وقف پر لات په نيز د الزجاج په تا سره دی وعند الكسائي وقف په لاه تا سره نه دی.
**فائده:** مناص مصدر ميمي دی مشتق دی د ناسه ينوسه اذا فاته، او قاموس والا وايي چي د نوص معنی تاخر ده او مناص منجًا يعني ځای د نجات، او رضي په شرح کي د كافيه وايي چي تا د لات لپاره د تانيث ده په تأويل د لا په كلمه سره د تكون لتاكيد التانيث واختص بلزوم لاآه والله اعلم بالصواب.

وَعَجِبُوٓا۟ أَن جَآءَهُم مُّنذِرٌ مِّنْهُمْ ۖ

او كفار مكه تعجب كوي (دا جمله عطف ده پر عامل د في عزة وشقاق تقديره كانوا في عزة وشقاق وعجبوا) چي دوی ته بېرونكی راغلی دی له دوی څخه ای بشر مثلهم لاملك، چي رسول الله ﷺ دی چي دوی وبېروي د خدای ﷻ له عذاب څخه يعني في يوم القيامة.

وَقَالَ ٱلْكَـٰفِرُونَ هَـٰذَا سَـٰحِرٌ كَذَّابٌ ۝٤

او وويل كافرانو (هذا ساحر) يعني دا معجزې چي دی يې دليل د رسالت خپل بولي سحر او جادو دی، نو دوی جادوګر او سخت درواغ ويونكی دی.
**پوښتنه:** ځای خو د ضمير ؤ ای قالوا لسبق المرجع، نو د اسم ظاهر د راوړلو څه حكمت دی؟
**ځواب:** لپاره د دلالت پر دې چي كفر دوی دلاوره كړه چي دا وروسته خبره يې وكړه، او بل پاره د ذم ددوی او د اظهار د غضب الهي.
(كذاب) صيغه د مبالغې ده يعني دعوه رسالت يې درواغ ده، چه خوش گفته شاعری كه ميگويد:
گشتۀ طالع آفتاب اينچنين عـالم فروز... ديدۀ خفاش رايكذره ازوی تورنه
ازشعاع روز روشن روی گيتی مستنير... تيرگی شب هنوز ازديده وی دورنه

أَجَعَلَ ٱلْـَٔالِهَةَ إِلَـٰهًا وَٰحِدًا ۖ إِنَّ هَـٰذَا لَشَىْءٌ عُجَابٌ ۝٥

استفهام لپاره د تعجب دی يعني څرنګه، دا توحيد د محمد (ﷺ) يو لوی

عجب کار او کردار دی چې زموږ د نیکه ګانو دین په اجماع سره باطل دی. او بل د تعجب وړ خبره داده چې دا دومره لوی عالم من العلویات والسفلیات والحیوانات والنباتات وغیرها څرنګه د یوه خدای تر قدرت لاندې راتلای سي او یا تر علم لاندې کېدای سي، قال البغوي: چې عمر بن الخطاب رضي الله عنه چې مسلمان سو چې په ټوله مکه کې د زړه ډک سړی ؤ (حتی چې رسول کریم ﷺ د عمر یا د عمرو بن هشام چې د ابو جهل په نامه یې مسلمانان پېژني) د ایمان راوړلو خدای ته خواست کړی ؤ، نو دا اسلام د عمر رضي الله عنه پر قریشو ډېر سخت اثر د غم وکړی. او په عین حال کې مؤمنان دده په ایمان سره ډېر خوشاله سوه.

**درویش وایي:** چې عمر رضي الله عنه د اسلام قصه تخمیناً څو صفحې بیان غواړي، نو ولید بن المغیرة وجماعت ته د قریشو چې پنځه ویشت تنو ته بالغ ؤ او دا ټوله د قریشو اشراف او رئیسان وه چې په عمر کې تر ټولو دغه ولید بن المغیرة مشر شخصیت ؤ، ده داسي وینا ودوی ته وکړه چې درځئ ابو طالب ته ورسو (ابو طالب د بني هاشم مشر او سردار ؤ) نو دوی ټوله ورغله ابو طالب ته یې داسي وینا وکړه: انت کبیرنا وشیخنا، وقد علمت ما فعل هؤلاء السفهاء (یعني چې ته خبر یې چې دغه بېوقوفان چې مراد یې مسلمانان وه چې یو په بل پر له پسې ستا د وراره د سحر په دام کې داخلېږي) وانا اتیناک لتقضی بیننا وبین ابن اخیک. فارسل ابو طالب الی النبي ﷺ چې ته راسه، علیه الصلوة والسلام چې راغلی ابو طالب ورته وویل یا ابن اخی هؤلاء اشراف قومک یسئلونک. فلا تمل کل المیل علی قومک (ته هم ډېر میل ددوی له خبرو څخه مه کوه) قال رسول الله ﷺ ماذا یسئلون؟ قالوا یعني (۲۵) ورته وویل چې پرېږده ذکر زموږ د معبودانو په بد نامه (یعني چې دا جمادات دي لاتنفع ولاتضر شیئًا) موږ به تا او ستا خدای سره پرېږدو، علیه الصلوة والسلام ورته وویل چې تاسي زما یوه خبره ومنئ، تملکون بها العرب او ستاسي اطاعت به کوي عجم، ابو جهل ورته وویل چې ته یوه یا دوې خبرې یادوې موږ به ستا لس خبرې ومنو قال رسول الله ﷺ چې زما یوه خبره داده چې: قولوا لآ اله الا الله، فتفرقوا دوی سره متفرق سوه وقالوا اجعل الالهة الهًا واحدًا الی اخیر الآیة، چې ودې قصې ته خدای پاک په دې آیتو کې اشاره کړې ده،

وَانْطَلَقَ الْمَلَأُ مِنْهُمْ أَنِ امْشُوا وَاصْبِرُوا عَلَىٰ آلِهَتِكُمْ ۖ إِنَّ هَٰذَا لَشَيْءٌ يُرَادُ ﴿٦﴾

ولاړه هغه اشراف چي پنځه ويشت کسه وه له مجلس څخه د ابو طالب يعني ناکام ولاړه (منهم) اى من قريش.

**يوه سه:** چي جمله د انطلق عطف ده على قالوا اجعل الالهة الهًا واحدًا (ان امشوا) دا جمله حال ده په تقدير د قول اى قائلين ان امشوا. درځئ چي ځو له دې ځايه څخه (واصبروا) صبر وکړئ يعني ثابت او محکم اوسئ (على الهتكم) په حذف د مضاف اى على عبادة الهتكم پر عبادت د خپل خدايانو يعني خبري او عذر فائده نه کوي (ان هذا) اى توحيد المعبود (لشيئ يراد) دا جمله تعليل ده لامر بالثبات يعني دغه چي مونږ واورېدى له محمد (ﷺ) څخه من امر التوحيد ونفي الهتنا بالمرة هر آئينه يو شى دى چي له جهت څخه د محمد (ﷺ) امضاء او تنفيذ پر مونږ مراد دى يعني دى له دې خپلې خبري څخه نه اوړي چي د خپل اکا ابو طالب شفاعت يې زمونږ په حق کي هم نه ومانه، او بعض مفسرين يې ترجمه داسي کوي ان هذا الذي نرٰى من زيادة اصحاب رسول الله ﷺ لشيئ من الله يراد بنا فلا مرد له.

**درويش وايي:** چي دا توجيه نهايته ضعيفه ده، ولي چي که دوى دا منلاى چي داد خداى له جانبه څخه ده رد يې څوک نسي کولاى، بيا يې ولي ويل واصبروا الخ کما لا يخفٰى، او بعض مفسرين وايي ان هذا ما يراد محمد اى يتمناه من الرياسة على العرب والعجم الى غير ذالک من تفاسير المفسرين.

مَا سَمِعْنَا بِهَٰذَا فِي الْمِلَّةِ الْآخِرَةِ إِنْ هَٰذَا إِلَّا اخْتِلَاقٌ ﴿٧﴾

مونږ نه دا اورېدلي دا دده دعوٰى د توحيد د معبود په مخکي ملتو کي.
ابن عباس رضي الله عنهما، او کلبي او مقاتل هم چي مراد ددوى له ملة الآخرة څخه نصرانيه دي چي اخير د ملتو دي، يعني هغه هم د توحيد المعبود قائله نه دي بل يقولون ثالث ثلاثة، او مجاهد وايي چي مراد ددوى خپل د قريشو دين شرک دى يعني اخيري اجداد او نيکه ګانو د توحيد د معبود خبره نه ده کړې.
(ان هذا الا اختلاق) نه دى دغه دين چي دى دعوه کوي يعني التوحيد مګر دروغ دى چي له ځانه جوړ کړى دى.

ءَأُنزِلَ عَلَيْهِ الذِّكْرُ مِنۢ بَيْنِنَا ۚ بَلْ هُمْ فِى شَكٍّ مِّن ذِكْرِى ۚ
(الذكر) اى القرآن

**پوه سه:** چي همزه لپاره د استفهام انكاري دى په معنى د نفي فهو تاكيد لمضمون قولهم ان هذا الا اختلاق (من بيننا) زموږ په منځ كي يعني موږ موجود يو، ددوى غرض دا ؤ چي نه خو دى پر موږ مشر دى او نه دده دومره مال، جاه او جلال سته لكه موږ چي يې لرو.

**فائده:** له دې خبري څخه دا معلومه سوه چي تكذيب ددوى مبني صرف پر حسد ؤ، او نظريې پر اموال، جاه او جلال ؤ د دنيا ؤ.

بَل لَّمَّا يَذُوقُوا۟ عَذَابِ ۝٨

بلكې دوى په شك كي دي زما د ذكر يعني القرآن الكريم چي الله تعالى پر ما نازل كړى دى چي قرآن كريم مملو او ډک دى له توحيد څخه، نو ځكه دوى په باره كي د قرآن يوه قطعي فيصله نه كوي، كاهي وايي چي مختلق من عند محمد ﷺ دى، كاهي وايي كهانت دى، كاهي وايي يعلمه البشر، كاهي وايي چي يوه معجزه ووينې دا سحر دى (بل ما يذوقوا العذاب) دا بل اضراب دى له مجموع څخه د كلامينو سابقينو چي يو حديث يعني خبره د حسد وه في قوله- انزل عليه الذكر من بيننا، او بل حديث ؤ في قوله بل هم في شك، يعني لم يذوقوا دوى ته نه دى رسېدلى عذاب زما، يعني اذا ذاقوا العذاب زال مابهم من الحسد والشك ويضطروا دوى په هغه وخت چي عذاب زما ووينې يعني مجبور به سي و تصديق ته، لكن لاينفعهم التصديق حين نزول العذاب، لكه فرعون چي د غرق عذاب وليدى چي اوبو راپورته كړى، نو ده وويل: لا اله الا الذي آمنت به بنوا اسرائيل، لكن دې كلمې فرعون له غرق څخه خلاص نه كړى.

أَمْ عِندَهُمْ خَزَآئِنُ رَحْمَةِ رَبِّكَ ٱلْعَزِيزِ ٱلْوَهَّابِ ۝٩

آيا ددوى سره كلي د خزانو د رحمت د رب ستا يعني النبوة چي دوى هغه چا ته وركوي چي هغه ددوى خوښ وي، يعني ليس الامر كذالك فان النبوة موهبة عطية من الله ﷻ يتفضل بها على ما يشاء من عباده ولا مانع لما اعطاه الله لانه عليم حكيم يفعل مايشاء لامعقب لحكمه، او نبوت په كبر سن يا ثروت مالي يا په رياست پوري

د چا اړو نه لري (العزيز) چي دی غالب دی هيڅ شی يې نه سي مغلوبولای (الوهاب) صيغه د مبالغې ده يعني ماشاء لمن يشاء، نو ام منقطعه دی په معنی د بل، نو بل لپاره د دعوی څخه د مشركانو چي نبوت بايد په اختيار كي وای وبل دعوی ته چي نبوت هبه الهي ده. انكار د دوی پر خبره وكذالك ام في قوله تعالى:

## أَمْ لَهُم مُّلْكُ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا ۖ فَلْيَرْتَقُوا فِي الْأَسْبَابِ ﴿١٠﴾

آيا دوی لره سلطنت او تصرف د هغو شيانو چي په اسمانو كي دي من الملائكة والشمس والقمر والكواكب وغيرها او د مځكي من الحيوانات والنباتات والجبال وخزائن الارض.

**فائده**: اولاً خدای ﷻ انكار پر دوی وكړی د تصرف په نبوت كي بيان ليس عندهم خزائن رحمته التي لانهايت لها، په دې آيت كي رد دی چي دوی لره په امر كي د عالم علوي او سفلي مدخل نسته چي دا عالم جسماني يو كوچنی جزء دی د قدرت الهي.

(فليرتقوا في الاسباب) دوی دي پورته سي په لارو كي د اسمانو او تر عرش دي ځانونه ورسوي نو پر چا چي يې د نبوت پېرزوينه وي هغه ته دي وحي ورواستوي او نبي دي وګرځوي، قتاده او مجاهدؒ وايي چي مراد له اسبابو څخه دروازې د اسمانو دي، او بعض وايي چي مراد طرق د اسمانو، اهل لغت وايي چي هر شی چي تا و يو شي ته وصل كوي من باب او طريق فهو سببه (پوهه سه! چي دا امر د توبيخ او تعجيز دی).

## جُندٌ مَّا هُنَالِكَ مَهْزُومٌ مِّنَ الْأَحْزَابِ ﴿١١﴾

**پوهه سه**: چي تنوين لپاره د تحقير او تقليل دی، او هنالک بيان د ما دی، او خبر د جند خبر د مبتداء محذوف دی، والتقدير ای هؤلاء الذين يقولون هذا القول جند قليل حقير (مهزوم) يعني شكست به وخوري عنقريب، دا صفت د جند دی (من الاحزاب) قال قتادهؒ اخبر الله تعالى نبيه ﷺ انه سيهزم جند المشركين كما قال سيهزم الجمع ويؤلون الدبر فجاء تأويلها يوم بدر، دی وايي اشاره و بدر ته ده، لكن اكثره مفسرين يې دا سي معنی كوي چي دا كافران ستا د زمانې يا رسول الله، له جملې څخه د هغو كفارو دي چي دوی د رسولانو د خپلو زمانو سره سوي وه في

القرون الماضية چي د رسولانو سره مقابله وكړي او د رسولانو دين پر شا وتمبوي، هغه مغلوب او هلاک سوه، نو ستا قوم چي په تدابير الهيه كي لاس وهنه كوي او تصرف په امور ربانيه وكي كوي چي نبوت ستا دى دوى به هم مقهور او مغلوب سي.

**درويش وايي**: قد تحقق هذا الموعود بفتح مكة وقبل ذالک بفتح بدر.

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَعَادٌ وَفِرْعَوْنُ ذُو الْأَوْتَادِ ﴿١٢﴾

تكذيب كړى وُ تر مخه د اهل مكه د نوح؏ قوم او قوم د عاديانو (نبيهم هود؏) او قوم د فرعوه چي ذوالاوتاد وه (نبيهم موسٰى؏) ابن عباس رضي الله عنهما او محمد بن كعب؏ تفسير په ذو البناء المحكم سره كړى دى، او بعض مفسرين وايي محكمه مملكت. او ضحاک؏ وايي ذو القوة والبطش الشديد، او عطيه وايي ذوالجنود والجموع الكثير يعني ډېر دروند فوج يې درلودى او اتباع كثير يې درلوده.

**سوال**: قوم خو لفظ مذكر دى، نو فعل مسند وده ته يعني كذبت يې ولي مؤنث راوړى؟

**ځواب**: قوم په اعتبار د معنى مؤنث دى اى الجماعة.

**درويش وايي**: چي اوتاد جمع د وتد ده چي موږى يا مختبيله يې بولي په پښتو. نو چنانچه خېمه په موږيو او مختبيلو محكمه كېږي، دغه رنګه خېمه د مملكت د فرعون د لوى لښكر په موږيو او د ډېرو اتباعو په درولو سره چي لكه مختبيلې وي محكم او مضبوطه وه. او بعض تاريخ پوهان وايي چي فرعون به وچاته ډېر په غضب سو، نو ده په خپل دربار كي څلور متفرق موږي ټكوهلي وه، نو هغه سړى به يې دربار ته حاضر كړى او قميص به يې ځني وكښى، يو لاس به يې په يوه موږي پوري وروتړى، بل لاس به يې په بل موږى پوري وروتړى، داغه رنګه يو ه پښه په يوه موږي پوري بله په دوهم موږي پوري او ستوني ستغ به يې پرې ايستى، نو لړمان چي ده ساتلي وه ور ايله به يې كړه پر ځيګر او نس باندي تر څو چي مړ كېداى. او بعض تاريخ پوهان وايي چي د فرعون په دربار كي څلور ځګي مختبيلې ده ټكوهلي وې چاته چي به په غضب سو د هغو مختبيلو په سر پوري به يې وتاړه يعني يو ځاى يو لاس بل لاس بل ځاى وهكذا دواړي پښي، نو تر مرګه به

پر هغه ځلورو مختبيلو پر هواءؤ.

**فائده:** د فرعون د لښکرو او د اتباعو اندازه له دې څخه معلومېږي چې بني اسرائيل په امر د خداى ﷻ د موسىٰ او هارون عليهما السلام چې د شپې ووتل، فرعون چې سهار خبر سو، خپل جند او اتباعو ته يې داسي وويل: ان هؤلاء (يعني بني اسرائيل) شرزمة قليلون، نو ده بني اسرائيل لږ ډله وبلل، او سره ددې چې بني اسرائيل شپږ لکه په څه بالا وه.

وَثَمُودُ وَقَوْمُ لُوطٍ وَأَصْحَابُ لْـَٔيْكَةِ أُولَٰٓئِكَ ٱلْأَحْزَابُ ﴿١٣﴾

(ثمود نبيهم صالح، قوم لوط نبيهم لوط) او اوسېدونکي د لوى ځنګله چې قوم د شعيب وه، اللام في الاحزاب للعهد الذكري يعني دغه مذكوره احزاب په دې آيت كي هغه احزاب وه چې د مخه يې ذكر تېر سو، يعني مهزوم من الاحزاب.

إِن كُلٌّ إِلَّا كَذَّبَ ٱلرُّسُلَ فَحَقَّ عِقَابِ ﴿١٤﴾

نه دي دغه احزاب (كلمه د ان نافيه ده او د كل تنوين عوض د مضاف اليه دى اى الاحزاب، الا استثناء ده د محذوف څخه، والتقدير ماكل حزب فعل شيئًا الا كذب الرسل، (فحق عقاب) اى وجب عليهم او انزل بهم عذاب زما (كسره د عقاب عوض د مضاف اليه ده محذوف اى عقابي، يعني عذاب د كفر د دوى مناسب لحال كفرهم.

**بوه سه:** چې په كل كذب الرسل مقابلة د جمع ده د بلې جمعې سره لان كل جمع معنى.

وَمَا يَنظُرُ هَٰٓؤُلَآءِ إِلَّا صَيْحَةً وَٰحِدَةً مَّا لَهَا مِن فَوَاقٍ ﴿١٥﴾

انتظار نه كوي دغه كسان يعني كفار د قريشو، عطف على قوله وقال الكافرون (الا صيحة واحدة) اى نفخة الصور يعني دوى ايمان نه راوړي تر هغو چې عذاب اليم و نهويني چې هغه ايمان هيڅ فائده نه كوي.

**درويش وايي:** چې په يو كتاب كي ما وليدل چې د ابدي دوږخ لپاره نه داخلېږي و دوږخ ته الا المؤمنون، په درياب كي د تعجب او د تحير غرق سوم چې كلمې د حصر يې راوړې او د خلود په قيد يې هم مقيد كړې يا يې هم حكم پر مؤمنون كړى دى، فالهمني الله ﷻ او رئيته في كتاب انا اشك في ذالک ي مراد په دې مقوله مؤمنان د

هغه ورځې د قیامت دي فقط یعني چې په دنیا کې یې ایمان نه وي راوړی، نو زه پوهه سوم چې مؤمنان د هغې ورځې د قیامت فقط خو ټوله کافران دي وهم خالدون فيها.

**پوه سه**: چې (مالها من فواق) صفت بعد الصفة دی لصيحة، ابن عباس رضي الله عنه وایي معناه من رجوع، او مجاهد رحمه الله وایي انتظار کول، او الضحاک رحمه الله وایي صرف یې نسته.

**درویش وایي**: چې نوري متحدة المآل ترجمې هم کړل سوي دي، کلبي رحمه الله وایي چې څه وخت چې په سورة الحاقة کې دا آیت نازل سو فاما من اوتی کتابه بیمینه آه، واما من اوتی کتابه بشماله آه کفارو د مکې استهزاءً داسې وویل ربنا عجل لنا قطنا، نو خدای ددې قول حکایت وکړی او رد یې پر وکړی.

وَقَالُوا رَبَّنَا عَجِّل لَّنَا قِطَّنَا قَبْلَ يَوْمِ الْحِسَابِ ﴿١٦﴾

(وقالوا) عطف علی قال الكافرون، سعيد بن جبير رحمه الله له ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چې ددوی مراد دا ؤ یا ربنا موږ ته راکړې کتاب یعني عمل نامه په دې دنیا کې کې چې د عجل ترجمه ده (قبل يوم الحساب) د مخه تر ورځې د حساب.

**سوال**: د یوم الحساب څخه مشرکان منکر وه نو څرنګه دوی قبل یوم الحساب وو وایې؟

**ځواب**: دا خبره ددوی استهزاءً وه یعني لکه محمد (ﷺ) چې وایي او دده کتاب هم دا غه خبره کوي، او الحسن، قتادة مجاهد او سدي رحمهم الله وایي ددوی قصد دا ؤ چې زموږ برخه د عقوبت او د عذاب اوس په دنیا کې راکړی لکه النضر بن الحارث چې به ویل اللهم ان كان هذا (ای ما يقوله محمد ﷺ) هو الحق من عندك فامطر علينا حجارة من السماء آه، یعني موږ خو یې حق نه بولو، نو موږ ته په دې دنیا عذاب راکړې، او له مجاهد رحمه الله څخه دا هم روایت راغلی دی قطنا ای حسابنا، او له سعيد بن جبير رحمه الله څخه دا هم روایت راغلی دی چې معنی د قطنا حظنا ونصيبنا من الجنة في الدنيا التي يقول محمد، وهذا المعنى بعيد جداً الا انيكون استهزاءً.

اصْبِرْ عَلَىٰ مَا يَقُولُونَ وَاذْكُرْ عَبْدَنَا دَاوُودَ ذَا الْأَيْدِ ۖ إِنَّهُ أَوَّابٌ ﴿١٧﴾

صبر وکړه یا محمد هغه څه چې دوی یعني اهل مکه استهزاءً وتکذیباً وعطف علیه قوله واذکر آه.

**پوښتنه:** د (واذكر عبدنا داوٗد) د ماقبل يعني معطوف عليه سره چې اصبر ؤ څه مناسبت سته؟

**ځواب:** ذكر د قصو د انبياء عليهم السلام د صبر فائده كوي پر مكروهاتو د طبع بشري او حبس پر طاعت (ذا الايد) چې خاوند د قوت ؤ پر طاعت او د بطش شديد ؤ پر كافرانوا.

**پوهه:** چې اوب رجوع ته وايي، اواب صيغه د مبالغې وه اى رجاع الى الله عما سواه او الى الطاعة عن المعصية، وقال ابن عباس رضي الله عنه مطيع اى لله او سعيد بن جبير وايي چې د اواب معنى په لغت كي د حبشو مسبح ده يعني تسبيح سبحان الله په ډېره ويل.

**سوال:** قرآن كريم خو عربي دى نو د حبشي لغت را ورل پكښې څرنګه صحيح دى؟

**ځواب:** په قرآن كريم كي لغات مشتركه بين الالسنة ډېر دي لكه لفظ د تنور چې د ټولو ژبو مشترك لفظ يا قرطاس چې د رومي او عربي مشترك لفظ دى الى غير ذالک، په صحيح حديث كي چې روايت يې بخاري، مسلم، احمد، ابن ماجه، او نسائي كړى دى عن ابن عمر رضي الله عنهما عن النبي صلى الله عليه وسلم قال احب الصيام الى الله صيام داوٗد كان يصوم يومًا ويفطر يومًا، واحب الصلوة الى الله صلوة داوٗد (اى صلوة الليل) كان ينام نصف الليل ويقوم ثلث الليل (اى التهجد) وينام السدس الآخير من الليل.

**درويش وايي:** چې دا حديث تائيد د ټولو معناؤ د اوّاب چې ذكر سوې كوي والله اعلم.

## إِنَّا سَخَّرْنَا الْجِبَالَ مَعَهُ يُسَبِّحْنَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِشْرَاقِ ۝

**پوهه:** چې له دې ځايه څخه الى قوله فصل الخطاب بيان د كرامت د داوٗد عليه السلام عند الله تعالى، نو بعيد نه ده چې بدل اشتمال وي د اى اذكر كرامة داوٗد عند الله حيث سخرنا له الجبال آه.

**فائده:** داوٗد بن ايشا من سبط يهودا بن يعقوب عليه السلام ؤ، او دده او د موسىٰ عليه السلام تر منځ (۵۶۹) كاله وه او پر شريعت د موسىٰ ؤ او عمر يې سل (۱۰۰) كاله ؤ.

(يسبحن) چې دوى به تسبيح ويلې (يسبحن، حال دى له سخرنا څخه)

**پوښتنه:** يسبحن چې حال ده نو مضارع يې د څه حكمت لپاره راوړه سَبَّحْنَ يې ولې نه وو ايه؟

**ځواب:** هو ! لکن جمله فعلیه لپاره د احضار د حالت ماضیه یې راوړه او بل لپاره د تجدد د تسبیح منه حالاً بعد حال ویدل علی کلا الفائدتین الفعل المضارع (بالعشي والاشراق) الکبي ؒ وایي ای غدوة وعشیًا والاشراق هغه وخت دی چې لمر راوخېژي او رڼا بنه پر مځکه پیل سي. فسره ابن عباس ؓ بصلوة الضحٰی یعني د څاښت لمونځ.

**فائده:** د څاښت د لمانځه ادنٰی څلور رکعته دي په یوه تحریمه، اګرچه تعین د سورتو کوم شرط نه دی، لکن اهل تجربه علماء وایي چې په اول رکعت کې دي سورة والشمس والضحٰها الخ ووایي، په دوهم رکعت کې والليل اذا يغشى ووایي بیا دي قعده وکړي یعني د مابین ناسته، اللهم صل دي پوره ووایي کما هو قانون الفقه في النوافل الرباعیة چې دریم رکعت ته ولاړ سي بیا دي سبحانک اللهم پوره ووایي کما هو قانون النوافل الرباعیة او په دریم رکعت کې دي والضحی ووایي او په څلورم رکعت کې دي الم نشرح ووایي، او له عشی څخه مراد اخیر د ورځې دی، روح البیان او بغوي ؒ په خپل سند سره له ابن عباس ؓ څخه روایت کړی دی چې مابه دغه آیت د قرآن عظیم الشان تلاوت کاوه، لکن په دې نه پوهېدم چې صلوة الاشراق د څه وخت لمونځ دی حتی چې ماته ام هاني بنت ابی طالب وویل چې رسول الله ﷺ په کال د فتح د مکې زما کور ته راغلی او اوبه یې زما څخه طلب کړې، ما چې اوبه وروړلې ده اودس تازه کړی ثم صلی الضحٰی فقال یا ام هاني هذا صلوة الاشراق، ای نهایة سورة الاشراق، والله اعلم.

وَالطَّيْرَ مَحْشُوْرَةً ۭ كُلٌّ لَّهٗٓ اَوَّابٌ ⑲

مور مسخر کړي وه ده ته مرغان (والطیر عطف دی پر جبال یعني سخرنا الطیر) چې راجمع کېدلې به په وخت کې د تسبیح د هر جانبه څخه.

**پوښتنه:** چې طیر جمع د طائر ده څکه یې محشورة مؤنث راوړی (کل) ای کل واحد من الجبال والطیر (له اواب) یعني رجوع یې و تسبیح ته کوله په تسبیح د داؤد، یعني په تسبیح ویلو کې به یې د داؤد سره ګډون کاوه.

**پوښتنه:** په تېر سوي حدیث کې صلوة الاشراق د صلوة ضحٰی نوم سو، او په بل حدیث کې راغلي دي من صلی صلوة الفجر بجماعة ثم قعد یذکر الله تعالی حتی

تطلع الشمس (يعني رمح او رمحين) ثم صلى ركعتين كان له كاجر عمرة تامة تامة وهي صلوة الاشراق، نو ددې دوو حديثو تر منځ به تدافع نه وي؟

**ځواب:** جمع يې ممكنه ده په دوو وجهو سره، اول چې اشراق دى په معنى د اشرق القوم في وقت مشروع يعني لمر يوه يا دوې نېزې را پورته سي، اى الصلوة بالقدر المذكور فلا يدل على الضحى الذي هو الوقت بين طلوع الشمس وزوالها والوجه الثاني ان اول وقت الاشراق هو اذا طلع بقدر رمح او رمحين واخير وقتها هو اول الضحى، وحاصل الجوابين ان الاشراق لفظ مشترك بين الاول وبين الثاني، لكن په اوسنى زمانه كې صلوة الاشراق اول ته وايي او ثاني ته صلوة الضحى وايي د اشراق په نامه سره نه دى مشهور.

**درويش وايي:** چې دا يو سر خفي ؤ چې اميان خو څه كوې بعض علماء يې په دقيقه نه دي پوهه فافهم.

## وَشَدَدۡنَا مُلۡكَهُۥ

مو رقوي كړه بادشاهي ده، يا په دې چې د خلكو په زړو كې خداى ﷻ ده ده هيبت ورواچاوه يا په ډېر والي د جنود ده، ابن عباس رضي الله عنه وايي كان داؤد اشد ملك الارض سلطانًا حتى چې محراب ده (له محراب څخه يا محراب متعارفه مراد دى، يا قلعه ده چې قلعې ته هم په عربي وايي چې ځاى د جنګ د دښمن دى لكه محراب متعارف چې ځاى د جنګ دى د شيطان سره) نو هره شپه (۳۶۰۰۰) عسكرو پهره پر كول، مفسر قديم للقرآن الكريم حسين كاشفي الهروي وايي: ومحكم كرديم بادشاهى وى را بدعاى مظلومان يا به رايهٔ نصيحت كنندگان يا بكوتاه كردن دست ظلم از رعيت يا بالقاى رعب وى در دلهاى دشمنان يا به بافتن زره (زغره چې جنګي قميص ؤ په پخوا زمانه كې) وساختن آلات الحرب يا به بسيارى لشكر او يا بكثرت پاسبانان وى (يعني پهره كونكي) كه هر شب (۳۶۰۰۰) مرد پاس خانه او ميداشتند، انتهى كلامه.

**فائده:** په بخاري او نورو كتابو كې د حديث چې عليه الصلوة والسلام چې اول مدينې ته راغلى چونكه دښمنانو د دين اسلام او د عليه الصلوة والسلام ډېر وه من اليهود وغيرهم، نو هره شپه به له انصارو او مهاجرينو څخه څلوېښت (۴۰) كسانو تر

سهاره پهره پر کول تاچي دا آیت نازل سو: والله یعصمک من الناس، تا ساتي خدای ﷻ له خلکو یعني اعداؤ څخه، چي سهار سو علیه الصلوة والسلام خلکو ته یعني پهره کونکو ته وویل فقد رضی عنکم نبي الله وعصمني الله، وروسته تر دې عصمت الهي رسول الله ﷺ به د شپې یوازي په کوڅو کي د مدینې ګرځېدی.

**درویش وایي:** چي هم دا قانون د پهره داری هم تر او سه پوري پاته دی چي د هر باچا سره ساتندویان د شپې او د ورځي په حضر او په سفر کي ورسره وي او د دوی تنخوا ورکول کېږي.

روی البغوي عن عکرمة عن ابن عباس ؓ چي په دوره د حکومت د داؤد ؑ یو سړي د بني اسرائیلو د دوی پر مشر سړي دعوی دائره کړه په نېز د داؤد ؑ چي ده زما څخه غویی په زوره بېولی دی، له مدعي علیه څخه چي داؤد ؑ پوښتنه وکړه هغه له غصب څخه د غوایي منکر سو، داؤد ؑ له مدعي وغوښتل چي شاهدان لري؟ هغه ورته وویل یا! داؤد ؑ دوی ته وویل چي تاسي اوس ولاړ سئ زه به ستاسي په دعوی کي غور وکړم، نو خدای پاک په خوب کي داؤد ؑ ته وویل یعني خوب یې ولیدی چي دغه مدعي علیه قتل کړه، چي راویښ سو د ځان سره یې وویل چي دا خو یو خوب ؤ او زه تلوار باید و نه کړم، چي ښه راته ثابته نه سي، دوهمه شپه یې بیا هغسي خوب ولیدی، بیا داؤد ؑ مدعی علیه قتل نه کړی، دریمه شپه یې بیا خوب ولیدی او ورته وویل سول چي یا به دغه سړی قتل کوې یا به پر تا عقوبت نازل سي، نو داؤد ؑ هغه مدعی علیه ته سړی ور واستاوه، هغه چي راغلی داؤد ؑ ورته وویل: ان الله قد اوحی الي ان اقتلک! هغه ورته وویل: اتقتلني بغیر بینة یعني چي مدعي ګواهان نه لري، داؤد ؑ ورته وویل نعم والله لا نفذن امر الله فیک هغه سړی چي پوه سو چي وژني دي، نو یې وویل چي ته تلوار زما په قتل کي مه کوه چي زه صورت حال در ته ووایم، داؤد ؑ اجازه ورکړه چي ووایه: هغه وویل والله ما حکم الله علي بالقتل یعني تا ته یا داؤد بهذا الذنب یعني د غوایي د غصب په سبب، بلکي ما د دغه مدعی علیه پلار په پټه په چم وژلی ؤ، نو ځکه خدای ﷻ تا ته زما د قتل امر وکړی، نو داؤد ؑ د قتل امر صادر کړی هغه سړی قتل سو، د دې قصې په اورېدلو سره په بني اسرائیلو کي غم او شدت پیدا سو په دې معنی چي داؤد ؑ په ناحقه دعوه کي

خدای پاک وحي کوي فاشتد ملکه او پر ټولو بني اسرائيلو د رعب کمبله وغوړول سول، دا قصه روح البیان مختصرًا بدون السند بیان کړې ده، او مظهري "له بغوي" څخه کمامرت مطولا سره د سنده نقل کړې ده.

# وَآتَيْنَاهُ الْحِكْمَةَ وَفَصْلَ الْخِطَابِ ﴿٢٠﴾

موږ داؤد ته ورکړې وُ حکمت.

**پوهسه:** د حکمت معنی دلته نبوة او کمال علم او محکم عمل دی (وفصل الخطاب) په شرح کي د فصوص للمولی الجامي" راغلي دي چي مراد له فصل الخطاب بیان د خپل حکمت دی علی الوجه المفهم چي څوک په ده پوهیږي، نو حاصل د معنی یې دادی چي خطاب الفاصل الممیز بین الحق والباطل، نو په دې تقدیر فصل په معنی د فاصل دی او یا فصل په معنی د مفصول دی یعني الخطاب المخلص الذي ینبه علی المرام، روح المعاني د فصل الخطاب تعبیر داسي کړی دی الکلام الذي یفصل (چي جلا والی کوي) بین الصحیح والفاسد، والحق والباطل والصواب والخطاء وهو کلامه علیه السلام في القضایا والحکومات وتدابیر الملک، او دا ترجمه هم جواز لري چي مراد له فصل الخطاب څخه دي کلام متوسط مراد وي چي نه دومره مختصر وي چي مخاطب یې فهم نسي کولای، او نه دومره طویل وي چي مخاطب په ملال کي واچوي چي کلام د نبینا ﷺ داغسي وُ، او د حضرت علي رضي الله عنه روایت دی چي فصل الخطاب دا دی چي "البینة علی المدعي والیمین علی من انکر، لان کلام الخصوم ینقطع ینفصل به" ویروی ذالک عن ابی بن کعب، حیث قال فصل الخطاب الشهود والایمان وهو قول مجاهد وعطاء بن ابی رباح، او مشهوره داده چي فصل الخطاب قول الانسان بعد الحمد لله والثناء علیه امابعد، یعني چي شروع په مقصود کوي، بیضاوي" وایي انما سمي به لانه یفصل المقصود عما سبق من الحمد لله والصلوة علی رسوله.

# وَهَلْ أَتَاكَ نَبَأُ الْخَصْمِ إِذْ تَسَوَّرُوا الْمِحْرَابَ ﴿٢١﴾

**پوهسه:** چي دا استفهام دی معنی یې تعجب د سامع ده، والتشویق الی استماع القصة والجملة معطوفة علی اذکر، او خصم په اصل کي مصدر دی، نو

اطلاق يې پر تثنيه او جمع دواړو روا دی، مراد په دې ځای کې دوه کسه دي چې خصومت يې سره ؤ.

(اذا تسوروا) چې دوی د قلعې پر دېواله راووښتل.

**سوال:** متخاصمان خو دوه وه، نو صيغه د جمع يې څرنګه راوړه؟

**ځواب:** د جمع راوړل مجاز دی كما في قوله تعالى فقد صنعت قلوبكما مكان قلباكما لان المخاطب في الآية المتلوة اثنان.

(المحراب) المحراب كمامر دلته په معنی د کلا دی، او بعض وايي محراب د مسجد دی.

درويش وايي: چې وجه تسميه د دواړو په محراب سره وړاندي تېره سوه.

**درويش وايي:** چې د داؤد ﷺ قصه په مختلف ډول قصه کونکي بيانوي، چې په بعضو کې د کذب آثار ښکاره معلومېږي او په بعضو کې توهين د داؤد ؑ ناري وهي، نو فقير لپاره د بيان صحيح د قصې د داؤد ؑ څو فوائد بيانوم، بيا به د قصې بيان وکړم (۱) د تسوروا معنی ای علوا سوره ونزلوا اليه يعني د کلا د لوړي خوا څخه و داؤد ؑ ته دوه خصم راشوه سوه، نو باب د تفعل لپاره د علو دی نحو تسنم الجمل ای علا سنامه يعني پر بوک يې سپور سو وقذری الجبل يعني سر ته د غره ورسېدی.

**تفريع على هذه الفائدة:** هغه قصه خوانان چې وايي چې داؤد ؑ ته دوه کسان راغله په حقيقت کې انسانان وه غلطه خبره ده، ولې حقيقت انسانان دده د کلا د لوړي خوا څخه څرنګه راشوه سوه؟ ولې چې دده د کلا (قلعې) دېوال ډېر لوړؤ او بل (۳۵۰۰۰) نفر پهره پر ولاړ وه فافهم، ابن عباس ؓ وايي چې داؤد ؑ د ژوند شپې او ورځې څلور حصې کړې (۱) يومًا للعبادة (۲) للقضاء بين الناس (۳) د ځان په خصوصي مشغوليت به بوخت ؤ (۴) لعامة بني اسرائيل چې دوی ته به يې نصيحت کاوه او دوی به ژړل.

إِذْ دَخَلُوا عَلَىٰ دَاوُودَ فَفَزِعَ مِنْهُمْ

دی ځنې وېرېدی، ولې خدای ؑ دوې ملکي ورته را استولي وې په صورت د انسان چې جبرئيل او ميکائيل ؑ وه، سبب د فزع هم دا ؤ چې دوی يعني دا دوو ملکو د پهره کونکو څخه وغوښتل چې موږ ور پرېږده چې موږ د داؤد سره ملاقات

کوي، هغو منع ورته وکړه، نو ملکي د کلا پر دېوال د لوړي خوا ورغلي چي دده د عبادت ورځ وه، او بعض وايي چي شپه وه او (۳۵۰۰۰) پهره داران پر کلا چار چاپېره موجود هم وه، دی وېږدی چي دا دوه خلګ تا ته يو ازار پېښ نه کړي من القتل وغيره، بعض علماؤ يې سبب د نورو شيانو بيان کړی دی.

قال روح المعاني والظاهر ان سبب فزعه (يعني د بېري) ليس الا لتوقع الاذی بمخالفة المعتاد يعني چي سره د دېوال د کلا د جګوالي او سره د (۳۵۰۰۰) پهره دارانو دوی څرنګه راغله؟ دې ملکو چي د داؤد خوف محسوس کړی، نو يې ورته وويل:

قَالُوا لَا تَخَفْ خَصْمَانِ بَغَىٰ بَعْضُنَا عَلَىٰ بَعْضٍ

هغو وويل بېړېږه مه چي موږ به تا ته ازار د رورسوو (خصمان) خبر د مبتداء محذوفي دی ای نحن خصمان.

تېري او ظلم کړی دی بعض زموږ پر بعض آخر.

**سوال:** دوی خو ملکي وې، نو دا خبره ددوی به دروغ نه وي، او ملکي خو له کذب څخه پاکي دي؟

**ځواب:** دا کلام ددوی مبني پر فرض دی يا غرض يې تعريض پر داؤد دی کذب به هلته وای که د دوی مراد اخبار حقيقت وای.

فَاحْكُمْ بَيْنَنَا بِالْحَقِّ وَلَا تُشْطِطْ وَاهْدِنَا إِلَىٰ سَوَاءِ الصِّرَاطِ ﴿٢٢﴾

نو ته حکم وکړه زموږ تر منځ په حق سره يعني ملامت به ملامت وو ايه، او ظلم او تجاوز تر حق مه کوه.

**بوه سه:** چي سواء مصدر دی په معنی د فاعل او اضافت د سواء بالمعنی المراد اضافت د موصوف و صفت ته دی ای الطريق المستوي چي مراد ځني عدل دی، دا وروسته جمله مستانفه ده لپاره د بيان د مافيه اختلافهما.

إِنَّ هَٰذَا أَخِي لَهُ تِسْعٌ وَتِسْعُونَ نَعْجَةً وَلِيَ نَعْجَةٌ وَاحِدَةٌ

بېشکه دا زما ورور دی (ای في الدين والطريق) دده نهه نيوي (۹۹) ماينې دي، او زما يوه ماينه ده.

**بوه سه:** چي نعجة په اصل لغت کي مېږي ته وايي لکن عرب د ماينې کنايه په

نعجه سره کوي، دا هم تعریض دی پر داؤد کما سیئاتي او دی پوهه کوي.

فَقَالَ أَكْفِلْنِيهَا وَعَزَّنِي فِي الْخِطَابِ ﴿۲۳﴾

نو ده ویل دا ستا یوه نعجه ماته راکړه کذا قال ابن عباس رض، مجاهد" وایي چې ته یې طلاقه کړه چې زه نکاح ورسره وکړم، وحقیقة الکفالة الضم، فالمعنی ضمها الي والمآل واحد.

(وعزني في الخطاب) او پر ما غالب سو په دلائلو کي، عطف دی پر قال، الضحاک" وایي که زه دلیل ورسره وایم دی تر ما افصح دی، او که جنګ ورسره کوم دی تر ما قوي دی.

**درویش وایي**: چې صورت حال د داؤد" څه ؤ چې خدای ﷻ جبرئیل او میکائیل ورته راواستول، او څه تنبیه یې داؤد" ته ورکوله، بعض مفسرین وایي چې داؤد" ماینه د یو سړي چې نوم یې اوریاؤ (چې د مؤمنانو څخه د قوم داؤد" ؤ او په بعض روایاتو کي راغلي دي چې دده وزیر ؤ) ولیدل او میل طبعي یې ورته وسو. یعني داسي نه وه چې په اختیار وه بلکې طبع انساني ددې تقاضا کوي چې ښائسته ښځه ووینې د انسان میل ورته کېږي، نو یې اوریا ته وویل چې دا ماینه دې طلاقه کړه چې زه یې په نکاح کړم اوریا ځنې وشرمېدی ماینه یې طلاقه کړه او داؤد" په نکاح کړه، داؤد" دغه وخت نهه نیوي (۹۹) ماینې وې او د اوریا داغه یوه ماینه وه.

**تنبیه**: د داؤد" په شریعت کي دا کار روا ؤ او په امت کي رواج ؤ، مخل په مروة او غیرت سره هم نه ؤ چې د سړي به د بل ماینه خوښه سوه د هغې مېړه ته به یې وویل چې ته ستا ماینه را طلاقه کړه یا به سره اشنایان وه یا به یې ورته وویل چې زه ستا پر ماینه عاشق یم، دا دی تر پر خپل طبعیت ماینه پیدا کړه ولور به زه درکړم. یا به طالب د قوم مشر سړی ؤ چې ماینه والا به یې خوانسوای بدولای الی غیر ذالک.

**سوال**: دا کار چې د داؤد" په زمانه کي روا ؤ، نو د اوریا د ماینې د طلاق چې ده طلب وکړی نو پر ده څه ملامتیا وه چې خدای" ده ته تنبیه ورکول؟

**ځواب**: د داؤد ﷺ منزله په دربار کي د خدای" لوړه وه تر افرادو د امت دده، نو باید داؤد" چې نهه نیوي ماینې یې هم درلودې د اوریا د یوې ماینې طالب باید ګرځېدلی وای، بلکې مناسبه دا وه چې ده خپل محبت قلبي مهار کړی وای او خپل

نفس يې مغلوب کړي واى او د امت پر دول رفتار يې نه واى کړى، لما قيل ان حسنات الابرار سيئات المقربين، او بعض مفسرين وايي چي داؤد عليه السلام له اوريا ځخه د ماينې د طلاق طلب نه دى کړى، بلکې په زړه کي يې دا وه چي اوريا چي هميشه په د داؤد له طرفه قومندان د لښکر ؤ چي که دى قتل کړل سو ماينه به يې زه په نکاح کړم، والى هذا مال الحافظ ابن حجر في التحفة (چي دده تصنيف دى) او بعض علماء وايي چي اوريا دا ښځه نه وه په نکاح کړې صرف مرکه يې ورته کړې وه، وروسته داؤد عليه السلام مرکه ورته وکړه، او د ښځې قريبانو داؤد ته په نکاح ورکړه، نو دى لعلو شانه عند الله په دې ملامت سو چي خطبه پر خطبه دا خيه المسلم ولي کوله (يعني ورور د داؤد يعني في الدين چي مرکه ورته کړې وه، نو ده ولي مرکه ورته کول، او بعض علماء وايي چي په شريعت کي د داؤد حکم داسي ؤ چي يو سړى چي به مړ سو او ماينه به يې پاته سوه اول هغه اولياء د ميت لکه ورور، اکا وغيره حق دار د نکاح ؤ (لکه په پښتنو کي چي هم دا رواج سته) نو که هغو اولياء د ميت نه په نکاح کولاى بيا د بل مېړه اجازه ورته وه، نو اوريا چي قتل سو داؤد مرکه ورته وکړه په گمان د دې چي د قريبانو د اوريا نه ده په کار، نو چي داؤد مرکه ورته وکړه نو اوليا د ميت يعني اوريا جلالت شان او هيبت د داؤد منع کړه له اظهار ځخه د خپل ارادت، نو ملامتيا د داؤد چي ده به اولاً د اوريا له اولياؤ ځخه پوښتنه کړې واى، چي په تاسي کي څوک راغب د اوريا د ماينې سته او که نه. او بعض علماء وايي چي داؤد په عبادت بوخت ؤ، چي يو نر او يوه ښځه په يو خصومت کي چي د دوى تر منځ ؤ ورته راغله، داؤد و ښځې ته صرف د تعين لپاره وکتل چي دا کتل مباح دي و قاضي ته وروسته يې ميل د طبع پيدا سو، نو بعض نوافل عبادات ځني پاته سول، د عتاب سبب يې دا ؤ.

**درويش وايي:** وقيل غير ذالک لکن علامه بغدادي السيد محمود آلوسي په روح المعاني کي وايي چي المقبول من هذه الاقوال وامثالها مايبعد من الخلال بمنصبة النبوة لداؤد عليه السلام وللقصاص کلام مشهور لايکاد يصح لما فيه من مزيد الخلال بمنصبه عليه الصلوة والسلام انتهى کلام آلوسي.

**درويش وايي:** چي شايد په كلام كي د آلوسي اشاره و هغو قصو ته وي چي مظهري ذكر كړي، يا البغوي" ويلي دي چي تاسي له (۱٦۲) څخه تر (۱٦۷) صفحې پوري مطالعه كړئ عجائبي قصې به پكښې ووينې والله اعلم بالصواب، واقول سبحان ربک رب العزة عما يصفون وسلام على المرسلين والحمد لله رب العالمين.

قَالَ لَقَدْ ظَلَمَكَ بِسُؤَالِ نَعْجَتِكَ إِلَىٰ نِعَاجِهِ

داؤد عليه السلام وويل، لام موطئه د قسم دى قصد له راوړلو څخه يې انكار دى له قول څخه د ذى النعجات الكثيرة او عيب د صنع د هغه دى.

**پوښتنه:** لقد ظلمک خو يکطرفه حکم دى يعني د هغه بل سړي څخه چي ذى نعجة واحدةٍ معلومات يې نه وكړى او يكطرفه حكم خو نه دى روا؟

**ځواب:** په كلام كي د داؤد" قيد محذوف دى يعني لقد ظلمک كلام محذوف دى اى فاقر المدعى عليه فقال لقد ظلمک آه.

**سوال:** په قرآن كريم كي يې ولي اعتراف د مدعى عليه نه راوړى؟

**ځواب:** لانهٗ معلوم من الشرائع كلها انه لايحكم الحاكم الا بعد جواب المدعى عليه يعني بلفظ نعم، او له دې سببه بعض مفسرين داسي وايي بعد اعتراف صاحبه به آه.

**پوه سه:** سوال مصدر دى مضاف ومفعول او متعدي والى يې وبل مفعول ته په الى سره په سبب د تضمن دى معنى لره د اضافت، والتقدير ظلمک بسوال ان يضيف نعجتک الى نعاجه يعني چي سل پوره سي.

**فائده:** بعض جاهلان وايي چي د داؤد" حكم داغه وه چي د مدعى تصديق يې وكړى او حكم د ظلم يې صادر كړى دمخه تر سوال د مدعى عليه څخه.

**درويش وايي:** چي هذا كذب ينافي ما سيئاتي في القرآن.

وَإِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْخُلَطَاءِ لَيَبْغِي بَعْضُهُمْ عَلَىٰ بَعْضٍ

په تحقيق ډېر د شريكانو چي مالونه يې سره ګډوي، خلطا جمع د خليط ده.

**درويش وايي:** چي شراكت كه څه هم عام دى لكن شائع د ماشيه په شراكت كي دى ظلم كوي يو پر بل يعني مراعات د حق د شركت او صحبت نه كوي.

إِلَّا ٱلَّذِينَ ءَامَنُواْ وَعَمِلُواْ ٱلصَّٰلِحَٰتِ وَقَلِيلٞ مَّا هُمۡۗ

مګر نه هغه کسان چي ایمان يې راوړی وي او عمل د خصلات صالحات کوي، ولي چي دغه کسان ظلم پر هيڅ چا نه کوي، يعني دغه کسان لږ دي.

**پوه سه:** چي جمله د ان کثيرًا عطف ده على قوله لقد ظلمک.

**پوه سه:** چي قليل خبر مقدم دی او هم مبتداء او کلمه د ما زائده ده لپاره د ابهام والتعجب ولقلتهم، او په روح المعاني او مظهري کي وايي چي داؤد ؑ چي دا فتوی صادر کړې دی دوو کسانو يعني په صورت کي د انسانانو وه او په حقيقت کي جبرئيل او ميکائيل وېيو و بل ته يې وکتل وه يې خندل او اسمان ته ولاړل.

**درويش وايي:** چي هغه احتمالات چي بعض مفسرين ورته تللي وه او فقير د مخه هغه احتمالات چي په بعضو کي يو نر او يوه ښځه راغلي وه، او په بل روايت کي راغلي دي وه چي دواړه حقيقةً انسانان وه، نو له د مابين څخه ولاړل او دا يقيني سوه چي دا دوه کسه ملکي وې چي د اسمان و خوا ته ولاړې.

وَظَنَّ دَاوُۥدُ أَنَّمَا فَتَنَّٰهُ فَٱسۡتَغۡفَرَ رَبَّهُۥ وَخَرَّۤ رَاكِعٗاۤ وَأَنَابَ ۩ ﴿٢٤﴾

(وظن داؤد) عطف دی پر لقد ظلمک.

**پوه سه:** چي ظن دلته په معنی د علم او يقين دی، په تفسير بحر العلوم کي وايي چي ظن چونکه طرف راجع ته وايي نو علم ته نژدې دی، ځکه په دې ځای کي يې مجازًا په علم او يقين کي استعمال کړی.

(انما فتناه) يعني خدای ؕ له ده څخه امتحان واخست په دغه قضاوت سره چي دی به وپوهېږي چي د نهه نيوي (۹۹) نعجة درلوونکو څخه ته مراد يې او د نعجة واحدة درلوونکي څخه اوريا مراد دی (فاستغفر ربه) طلب د مغفرت يې وکړی له خدای ؕ څخه. يعني ما ذکر من قصته وقصة اوريا (وخر راكعًا) او پرې وتی پر سجده، نو رکوع دلته مجازًا په معنی د سجدې ده، وجه د مجاز يې داده چي چونکه سړی ور کوع ته ځي نو ګويا رکوع سبب د سجدې ده، فاستعمل السبب في المسبب، يا دا اطلاق استعاره ده يعني مبني پر مشابهت د رکوع او سجدې په انحناء او خضوع کي، عرب وايي نخلة راكعة ونخلة ساجدة.

(واناب) يعني رجوع يې و خدای ؕ ته وکړه بالتوبة.

# فَغَفَرْنَا لَهُ ذَٰلِكَ ۖ وَإِنَّ لَهُ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَآبٍ

موږ بخښنه ورته وکړه د ماجرې، اخرج احمد وعبد بن حميد عن يونس بن حبان ان داؤد عليه السلام بكى اربعين ليلة حتى چې ده د سجده ګاه پر شا وخوا وابنه راشنه سوه چې ده اوښکې به بهېدلې (ثم قال يارب قرح الجبين) تپې سو تندی مي (ورقاء الدمع) اوښکې مي ودرېدلې، يعني سترګې مي وچې سوې (وخيئتي كماهو) يعني ګناه مي پاته ده، راويان وايي چې داؤد به په هغه اوږده سجده کې څلوېښت شپې داسې به يې ويل: يا رب ذل داؤد ذلة ابعد مما بين المشرق والمغرب، رب ان لم ترحم ضعف داؤد ولم تغفر له ذنبه جعلت ذنبه حديثًا في المخلوق يعني که ته نه وبخښې ګناه ده، نو تا ده ګناه قصه وګرځولې په وروسته زمانو کې، فجائه جبرئيل بعد اربعين ليلة، فقال يا داؤد ان الله غفر لك الهم الذي هممت به (اشاره ده و قصې ته د اوريا كمامر) فقال داؤد الرب قادر على ان يغفر لي الهم الذي هممت به واخرج احمد وغيره عن ثابت عن صفوان وعبد بن حميد من طريق عطاء بن ثابت عن ابى عبد الله الجدلي، ما رفع داؤد رأسه الى السماء بعد الخطيئة حتى مات.

(وان له عندنا) او په تحقيق زما په نېز يعني بعد المغفرة (لزلفى) اى قربًا بلا كيف او مكانة حصلت له بكمال الندم والاستغفار، بحيث لو لا تلك الخطيئة لما حصلت له تلك المنزلة (وحسن مآب) او ښه مرجع په آخرت کې.

**درويش وايي:** چې ما تاسې ته وړاندې وويل چې تاسې د تفسير مظهري فلانی او فلانۍ صفحه مطالعه کړئ عجيبه قصې به ووينئ، يوه له هغو څخه دا قصه ده چې ده په دې ځای کې يعني حسن ماب ته چې را رسې. لې دی، نو يې داسې ليکلي دي قلت والظاهر ان ان من روى ان داؤد بعث اوريا مرة بعد اخرى الى المغازي واراد ان يقتل ليتزوج زوجته فهو كذب مفترى حاشاه عن ذالك انتهى بعبارته، نو درويش و مظهري ته تعجب کوي چې دا قصه خو تا په خپله کړې وه په صفحه (۱۶۳) کې نو چې ظاهر په نېز ستا دا وای چې دا قصه دروغ ده، اول خو دې ولې راوړه؟ يا چې رادې وړل په ډېر شدّ و مد او تفصيل سره، نو خو هم هورې يعني په (۱۶۳) کې به دې ويلي وای چې دا قصه دروغ ده، لکن نه دې وويل دلته چې ورسېدې ودې ويل چې

دا قصه درواغ ده، د ځان تکذيب دي په خپله وکړي، نو ستا د تفسير مطالعه کونکي
چې هغه ځاى يعني (۱۶۳) صفحې ته ورسېږي خو دوى په مزه مزه دا قصه کوي،
دوى څه خبر دي چې مفسر مظهري" په اخير کي دد قصې تکذيب کوي يعني په
(۱۷۱) صفحه کي يعني تخمينًا دوولس صفحې وروسته.

**پوښتنه**: انبياء عليهم السلام خو له ګناه څخه معصوم دي قبل النبوة و بعدها، نو له
داؤد ﷺ څخه دا ګناه څرنګه صادره سوه هم د عين نبوت په حال کي؟

**ځواب**: روح المعاني په خپل تفسير د (۲۳) جزء صفحه (۱۸۶) کي ليکلي دي
انه لم يکن منه" الا ترک ماهو الاولى بعالي شانه والاستغفار منه (لکه اقرب الى
الله انبياء عليهم السلام يا اولياء کرام رحمهم الله پر ترک الادنى دومره بخښنه د خداى ﷻ
څخه غواړي چي عمومي خلک پر کبائرو ګنهو دومره استغفار او خداى" ته ژړل
لکه دمخه د داؤد" د استغفار بيانولو په تفصيل کي چي تېر سو) په پاى کي روح
المعاني ويلي دي وهو لا يخل بالعصمة انتهى.

**فائده**: درويش په عصمت کي د انبياء عليهم السلام (۳۵) کال تخمينًا دمخه يوه
رساله تصنيف کړې وه چي پر هغه رساله د علماؤ ټولو د قندهار او د هرات د
حضراتو امضاوي او دستخطونه درج دي، او چهاپ ته هم په هغه وخت کي سپارل
سوې وه او په زرو نسخې چهاپ او خرڅې سوې، اوس نه پوهېږم چي په کتب
فروشانو کي د کوټې د ښار يا د قندهار د ښار به دستياب سي او که نه، د رسالې
نوم "کشف الغطاء عن عصمة الانبياء" دى.

## يٰدَاوُدُ اِنَّا جَعَلْنٰكَ خَلِيْفَةً فِى الْاَرْضِ

اليا للنداء دا جمله په تقدير د قلنا عطف ده على قوله فغفرنا له، والتقدير
فغفرنا له وقلنا له يا داؤد. موږ ګرځولى يې ته مسلط پر ملک د ځمکي، او يا معنى
داده چي جاى نشين يې په ځمکه کي د من قبلک من الانبياء العالمين بالحق.
په حديث کي راغلي دي چي عمر بن الخطاب رضي الله عنه چي د امير المؤمنين پر وظيفه
مقرر سو، نو پوښتنه يې وکړه د طلحة، عبدالله بن الزبير، کعب او سلمان فارسي رضي الله عنهم
څخه چي (ما الخليفة؟) يعني څه فرق دى د خليفه او د ملک تر مابين؟ نو طلحه رضي الله عنه او
زبير رضي الله عنه خو وويل (ماندري) او سلمان الفارسي رضي الله عنه ورته وويل چي خيفه هغه چا ته

وايي چي په رعايتو كي عدل كوي او تقسيم د غنيمت يا د بيت المال په برابري سره كوي يعني مراعات د قوميت وغيره نه كوي او د ومره شفقت پر رعيتو لري لكه سړى چي يې پر اهل كوي، ويكفى بكتاب الله وسنة رسوله ﷺ، فقال كعب ما كنت احسبه زما ګمان نه ؤ چي په دې مجلس كي دي څوک خبر وي په فرق د خليفه او ملک بېله ما. له سلمان رضي الله عنه څخه روايت دى چي عمر رضي الله عنه ده ته وويل انا ملك او خليفة؟ سلمان رضي الله عنه ورته وويل چي كه تا ته راغلى د مځكي د مسلمانانو څخه يعني د بيت المال لپاره يو درهم يا اقل يا اكثرهم وصنعته في غير حقه فانت ملك لا خليفة. عمر رضي الله عنه وژړل، او روح المعاني كي وايي چي ابوبكر رضي الله عنه خليفه سو صحابه كرامو رضي الله عنهم به ده ته وويل يا خليفة رسول الله (وبذالک يدعىٰ الى ان توفى) وروسته تر ده چي عمر رضي الله عنه دا وظيفه سنبال كړه يا خليفة خليفة رسول الله ﷺ، وروسته صحابه كرامو رضي الله عنهم اتفاق پر دې وكړى لپاره د اختصار په عبارت كي پر لفظ د امير المؤنين: هر څوک چي وي. نو دا لفظ متعارف سو

فَاحْكُمْ بَيْنَ النَّاسِ بِالْحَقِّ وَلَا تَتَّبِعِ الْهَوٰى فَيُضِلَّكَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ ؕ

كلمه د فا، لپاره د سببيت ده يعني ستا خلافت له جانبه څخه د خداى ﷻ سبب د دې دى چي ته به حكم كوې په منځ د خلكو په حق سره يعني په حكم د خداى ﷻ، (ولا تتبع الهوى) عطف دى پر فاحكم عطف الانشاء على الانشاء ته به متابعت نه كوې د هوىٰ يعني چي ستا د نفس خوښه وي يعني كه د حكم الله سره مخالفه وي.

(فيضلک) منصوب دى په جواب كي د نهي يعني هغوى به تا ګمراه كړي د لاري څخه د خداى ﷻ يعني د هغو دلائلو څخه چي پر حق باندي قائم دي.

**فائده:** له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي څوک متابعت د هوا نفساني كوي د هغه قوت عاقله ګډوډ كېږي او اجتهاد يې ناكامه كېږي لكه د دوشپېته ډلو د اهل الهوى چي دعوه د اسلام هم كوي، ناكام سوه يوازې اهل السنة والجماعة پاته سوه.

اِنَّ الَّذِيْنَ يَضِلُّوْنَ عَنْ سَبِيْلِ اللّٰهِ لَهُمْ عَذَابٌ شَدِيْدٌۢ بِمَا نَسُوْا يَوْمَ الْحِسَابِ ۟

په تحقيق هغه كسان چي ګمراه سي د لاري څخه د خداى ﷻ دوى لره عذاب دى سخت چي عبارت له جهنم څخه دى، كلمه د ما مصدريه ده او كلمه د با سببيه ده؛ والمعنى بسبب نسيانهم چي دوى هېره كړې وه ورځ د حساب چي قيامت دى، ولي

څوک چي په حقه سره معتقد د حساب وي په ورځ کي د قيامت هغه به حتمًا ملازم د سبيل الله وي او معاند د سبيل الهوىٰ وي.

**درویش وايي**: چي په سلسلة الذهب (چي د خواږه کتاب نوم دی په فارسي ژبه) کي داسي راغلي دي:

نص قرآن شنو که حق فرمود .... در مقام خطاب به داؤد
که ترا ازان خليفگی داديم .... سوی خلقان فرستاديم
تادهی ملک را از عدل اساس .... حکم رانی بعدل بين الناس
هر کرا نه زعدل دستور است .... از مقام خليفگی دور است
آنکه گيرد ستم زديو سبق .... عدل چون خواندش خليفة حق
پيشه کرده خلاف فرمان را .... گشته تائب متاب شيطان را
حق زشاهان بغير عدل نخواست .... آسمان وزمين بعدل بناست
شبان باشد شبان خلق همه .... رمه وگرگ آن رمه ظلمه
بهر آن های وهوی شبان .... تابيابد رمه زگرگ امان
چون شبان سازگاری گرگ بود .... رمه را افت بزرگ بود
هر کرا دل بعدل شد مائل .... طمع از مال خلق گو بگسل
طمع وعدل آتش وآبند .... هر دورا يکجا قرار کی يابند
هر که را از خليفگی خدای .... نشود اسير نفس بد فرمای

وَمَا خَلَقْنَا السَّمَاءَ وَالْأَرْضَ وَمَا بَيْنَهُمَا بَاطِلًا ۚ

او نه دي پيدا کړي ما اسمانونه او ځمکه او په مابين کي د اسمان او د ځمکي من کرة الهوىٰ باطل، يعني عبث چي هيڅ حکمت دي نه وي پکښې، بلکې د حق لپاره مي پيدا کړي دي چي دليل پر وجود د صانع وګرځي بلا مشارک. او دا دي لپاره چي خلګ د خدای شکر ووايي يعني او امر يې پر ځای کړي او له منهياتو ځنې يې پرهېز وکړي، دا جمله معترضه ده وکذالک قوله.

ذَٰلِكَ ظَنُّ الَّذِينَ كَفَرُوا ۚ فَوَيْلٌ لِّلَّذِينَ كَفَرُوا مِنَ النَّارِ ﴿٢٧﴾

دا د هغو خلګو ګمان (يعني چي آسمانونه، ځمکي او ما بينهما عبث دي) د

هغو کسانو چي کفر يې اختيار کړی وي يعني المشرکين چي نه بعث بعد الموت
مني، نه ثواب د مؤمن مطيع مني او نه عذاب د کافر عاصي مني.

**پوښته:** چي "فويل" کي تنکير د تعظيم لپاره دی ای ويل عظيم (کلمه د فاء
لپاره د سببيت ده يعني د دوی کفر او انکار سبب د ويل عظيم وګرځيدی)

**پوښتنه:** چي ويل لهم ويل سوی وای اخصر به نه وای، ولي د دې سببه چي الذين
کفروا خو قبلاً قريبًا ذکر سو، نو په اسم ظاهر راوړلو کي څه حکمت الهي دی؟

**ځواب:** حکمت يې ذم او تقبيح د شان د دوی ده.

أَمْ نَجْعَلُ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ كَالْمُفْسِدِينَ فِي الْأَرْضِ

**پوښتنه:** چي کلمه د ام منقطعه ده په معنی د بل او همزه لپاره د انکار د برابری
دی د دې دوو ډلو چي مؤمنان او عمل صالح والا دي، او هغه کسان چي په مځکه
کي فساد کوي بالکفر والمعاصي او کلمه د بل لپاره د اضراب ده عما سبق چي
کافرانو به خلق السمٰوات والارض باطل باله.

أَمْ نَجْعَلُ الْمُتَّقِينَ كَالْفُجَّارِ ﴿٢٨﴾

دا (ام) هم منقطعه دی په معنی د بل او همزه لپاره د انکار دی پر ظن الذين
کفروا، او بل پاره د انتقال دی، په حديث شريف کي راغلي دي چي کافرانو د
قريشو به مؤمنانو ته ويل چي بعث بعد الموت لکه تاسي چي وايا ست واقع سي،
موږ ته به خدای هغه نعمتونه او جنتونه راکوي لکه تاسي ته بلکي تر تاسي بالا،
او دا به يې هم ويل: نحن اکثر اموالاً و اولادًا ومانحن بمعذبين، فنزل هذه الآية.

كِتَابٌ أَنْزَلْنَاهُ إِلَيْكَ مُبَارَكٌ لِيَدَّبَّرُوا آيَاتِهِ وَلِيَتَذَكَّرَ أُولُو الْأَلْبَابِ ﴿٢٩﴾

دا کتاب (کتاب) خبر د مبتداء محذوفي دی ای هذا القرآن کتاب من الله
تعالی موږ نازل کړی دی تا ته يا محمد (ﷺ) چي مبارک او کثير الخير دی چي
خير د دنيا او آخرت پکښي بيان سوی دی، چي غور او فکر وکړئ ته او ستا د امت
علماء، نو به دوی ته تأويلات او معاني صحيحه د قرآن معلومي سي يا په دې
پوهيدو وروسته له غور او فکر څخه چي دا قرآن بلاشک وشبه من الله ﷻ دی او د
بشر په طاقت کي ممتنع ده چي مثل د دې کتاب دي جوړ کړي بلکي مثل د لسو

سورتو بلکې مثل د يوه سورت، کريمه: ان کنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فأتوا بسورة من مثله، تفصيل يې د سورة بقره په تفسير کې تېر سو.

(وليتذکر اولوا الالباب) او ددې لپاره قرآن نازل سو چې پند او نصيحت ځنې واخلي لرونکي د عقولو سليمه ؤ چې د وهم ګمون نه وي پکښې.

**يوه سه:** چې لب په لغت کې مغز ته وايي يعني لکه د بادام مغز يا د جوز مغز، نو اصلي مغز د انسان عقل سليم دی او بدن يې قشر دی (يعني پوست) او کالي يې قشر القشر دي.

**فائده:** تدبر يې عام کړی لعموم العقلاء والعلماء او تذکير يې خاص کړی په خاص د علماؤ لکه مجتهدين د امت يا روات د احاديثو مبارکه ؤ.

**حکايت:** شبلي رحمه الله وايي: چې ما څلور زره احاديث زده کړه يعني له استاذانو څخه، چې په ګردو کې ما فکر وواهه يو حديث مې مختار کړی چې علم د اولينو او د اخيرينو په هغه ورځ وي، او دنياوي او اخروي کار آمد احکام په هغه کې موجود وه چې هغه دا دی چې رسول الله صلى الله عليه وسلم و اصحابو رضي الله عنهم ته وويل: اعمل لدنياک بقدر مقامک فيها واعمل لآخرتک بقدر بقائک فيها واعمل لله بقدر احتياجک اليه واعمل للنار بقدر صبرک عليها، انتهى کلام الشبلي النعماني رحمه الله، او اصحاب رسول الله صلى الله عليه وسلم به بعض سور قرآنيه پياد کړه ويسئلون العمل بها، فان المقصود من القرآن العمل به، په بل صحيح حديث کې راغلي دي چې يو سړي (يعني چې قرآن يې نه ؤ زده) و عليه الصلوة والسلام ته راغلی او ورته وه يې ويل: علمني مما علمک الله (مقصود يې قرآن مبارک ؤ) عليه الصلوة والسلام هغه سائل يوه صحابي ته وسپاری چې د قرآن بعض سورتونه په زده کړه، هغه صحابي رضي الله عنه سورة اذا زلزلت الارض الخ ورته شروع کړی، و دې آيت ته چې راورسېدی فمن يعمل مثقال ذرة خيرا يره (يعني ثوابه) ومن يعمل مثقال ذرة شرا يره (يعني عقابه) هغه سائل و صحابي رضي الله عنه ته وويل: حسبي زما بس دی نور سبق زه نه وايم، هغه صحابي و عليه الصلوة والسلام ته دا موضوع بيان کړه، عليه الصلوة والسلام ورته وويل دعوه فقد فقه الرجل (سړی فقيه سو) يعني د اعمال د خير او د شر جامع آيت يې زده کړی.

وَوَهَبْنَا لِدَاوُدَ سُلَيْمٰنَ نِعْمَ الْعَبْدُ اِنَّهٗ اَوَّابٌ ﴿۳۰﴾

او مونږ هبه کړی (دا جمله عطف ده په قوله تعالى: فغفرناله، او د مابين جملې يې تولي معترضه جملې وي) و داؤد ته سليمان عليه السلام، ښه بنده ؤ سليمان (انه اواب) دا جمله تعليل د ماسبق ده، يعني دی رجوع کونکی ؤ خدای ته بالتوبة.

اِذْ عُرِضَ عَلَيْهِ بِالْعَشِيِّ الصّٰفِنٰتُ الْجِيَادُ ﴿۳۱﴾

(اذ عرض عليه) ظرف دی يا د اواب يا د نعم العبد) چې پېش کړل سو پر ده يعني پر سليمان ؑ باندې، په (بالعشي) کې باء په معنی د فاء ده ای في العشي يعني بعد الظهر.

**پوهه:** چې صافن چې جمع يې صافنات ده په آسانو کې هغه آس ته وايي چې درې پښې پر مځکه ايږدي او د څلورمې پښې صرف نوک يې پر مځکه تکيه کړی وي، چې دا ډول ولاړه د صفات محموده څخه د آسانو ده، کما هو المتعارف في اصحاب الخيل، او جياد جمع د جيد ده، هغه آس ته وايي چې بېله تکليف ورکولو و راکب ته تېز رفتاره وي.

**فائده:** دوه وصفه د صفوف او جودة يې سره جمع کړه، اشاره ورکړې ته ده چې دا اسان په وخت کې د ولاړې او د تګ دوه صفته محموده درلوده، کلبي ؒ وايي چې سليمان ؑ چې د دمشق او نصيبين غزا وکړه دغه (۱۰۰۰) آسان يې په غنيمت راوستل.

**پوښتنه:** په دې اسانو کې نر اسان او ماديانې دواړې وې، نو جمع مؤنث يعني بالالف والتاء يې څرنګه ورته راوړه؟

**ځواب:** بعض مفسرينو په جواب کې داسې ويلي دي چې جمع بالالف والتاء کې يې تغليب د مؤنث پر مذکر کړی دی، لکن روح المعاني وايي چې دغه دواړه وصفه په مذکر او مؤنث دواړو کې د اسانو مستعملېږي، والجمع بالالف والتاء لايختص بالمؤنث انتهى، او مقاتل ؒ وايي چې اسان و سليمان ؑ ته د خپل پلار داؤد ؑ څخه په ميراث پاته سوي وه.

ورده المظهري ؒ بان النبي ﷺ قال نحن معشر الانبياء لانورث ماترکناه صدقة؟ واجاب عنه روح البيان و روح المعاني بان المراد في الحديث الملک، يعني زموږ

انبیا څخه چي پاته سي هغه د چا ملک نه ګرځي بلکي د بیت المال دی، او مقاتلؒ چي وویل دا اسان ورث لسلیمانؑ من ابیه داؤدؑ دا یې مراد نه دی چي د سلیمانؑ ملک وګرځېدل بلکي په تصرف کي د سلیمانؑ وه او په بیت المال کي حق د تصرف هر امیر المؤمنین لري، فافهم، او عکرمهؓ وایي: چي دا آسان شل زره وه (٢٠٠٠٠).

**فائده:** مظهري په څو سنده روایت کړی دی چي دې اسانو وزر درلوده، او په بعض روایاتو کي دا هم راغلي دي چي مظهري ذکر کړي دي چي دا زر اسان چي وزر یې هم درلوده له دریاب څخه خدای پاک د سلیمانؑ لپاره را ایستلي وه وزاد لم یکن لاحد قبله ولابعده انتهی عبارة المظهري، روح المعاني وایي ماسوی له استبعاد څخه بل مانع خو نسته لکن قدرة الله عامة (یعني المستبعد وغیرها) چي سړی و اخبار ته نظر ونه کړي، اذ لیس فیها خبر صحیح مرفوع او ما فیه حکمه چي سړی اعتماد پر وکړي، روح المعاني زیاته کړې ده قلنا ان تقول هي خیل کانت له (ای سلیمانؑ) کالخلیل التي تکون عند الملوک (یعني عادي اسان وه نه یې وزر درلوده او نه له دریابه راوتلي وه) وصلت الی سلیمانؑ بای سبب کان انتهی قول روح المعاني، په هر صورت سلیمانؑ چي اراده د لوی غزاء یې درلوده د ماپښین لمونځ چي یې وکړی په خپله کرسی، ورته کښېنستی آسان یې تېرولـه او سلیمان ﷺ په سبب د حسن ددې آسانو په دریاب کي د تعجب غرق ؤ نهه سوه (٩٠٠) آسان چي تېر سوه فکر یې سو د مازدیګر لمانځه ته چي لمر لوېدلی ؤ او د مازدیګر لمونځ قضا سوی ؤ، فافهم لذالک.

**سوال:** خلک خو د سلیمانؑ سره ډېر ناست وه بل چا ولي ده ته تر قضا کېدو دمخه خبر نه ورکاوه؟

**ځواب:** له جهته څخه د غایت هیبت دده، په کشف الاسرار کي وایي چي د مازدیګر لمونځ پر ده فرض ؤ، او بعض مفسرین وایي چي سلیمانؑ د مازدیګر په وخت کي یو ورد درلود دی هغه ځني قضا سو.

**فَقَالَ إِنِّي أَحْبَبْتُ حُبَّ الْخَيْرِ عَنْ ذِكْرِ رَبِّي**

(فقال آه) دا جمله عطف ده پر محذوف باندي والتقدیر فاشتغل بها وفاتته صلوة العصر فقال، ما محبت وکړی محبت د مال کثیر له ذکر الله څخه، یعني

اشتغلت بحب المال الكثير چي اسان وه چي يا د مازديګر لمونځ ؤ او يا دده ورد ؤ په دغه وخت کي.

**فائده:** اسان يې ولي خير وبلل؟ يا له دې سببه چي نهايت ډېر وه يعني زر (١٠٠٠) دانې وه، يا له دې سبب چي په حديث کي د بخاري او مسلم وغيرهما کي راغلي دي: الخيل معقود في نواصيها الخير الى يوم القيامة الاجر و المغنم.

**درويش وايي:** چي مظهري ؒ ويلي دي: اطلق الخير على الخيل لان العرب تعاقب بين اللام والراء فيقول ختلت الرجل واخترته اى خدعتها انتهى، زه وايم چي دا وجه د مناسبت د خير او د خيل تر منځ بعيد ده جدًا لانه يفهم منه انه القرائة في القرآن، د خير په ځای کي په خيل سره هم روا دی، وليس كذالك فافهم.

**پوه سه:** چي سليمان ؑ چي دا خبره وکړه يعني اني اجبت آه اعتراضًا بما صدر عنه من الاشتغال وندمًا چي پر هغه پښېمانه ؤ.

حَتّٰى تَوَارَتْ بِالْحِجَابِ ﴿٣٢﴾

چي لمر پټ سو په پرده کي د غروب يعني د مغرب تر افق لاندي سو.

**فائده:** اطلاق د حجاب استعارة دی لکه يوه حسنا ښځه چي پوړنی پر مخ واچوي مخ په پټ کړي.

**سوال:** لمر خو دمخه نه دی ذکر سوی، نو ارجاع د ضمير څرنګه ورته صحيح دی؟

**ځواب:** د عشي د لفظ څخه فهمېږي، ولي چي د عشي لفظ ما بعد زوال الشمس ته وايي.

رُدُّوهَا عَلَيَّ فَطَفِقَ مَسْحًا بِالسُّوقِ وَالْأَعْنَاقِ ﴿٣٣﴾

(ردوها علي) په تقدير د قول علي قال اني، والتقدير قال ردوا آه والمعنى راوګرځوئ دغه صافنات جياد پر ما باندي (فطفق) نو شروع يې وکړه.

**فائده:** طفق د افعال متقاربة څخه دی چي دلالت کوي پر شروع د فاعل په مضمون کي د خبر يعني (مسحًا بالسوق والاعناق) يعني وهل په توره پر پښو د اسانو، د پښو وهل يې ددې لپاره وه چي ذبح يې اسانه سي، او پر غاړه د خيل مذکور، وجاء في الحديث الصحيح عن ابى بن كعب ؓ عن النبي ﷺ قال قطع

سوقها واعناقها بالسيف وكان ذالك باذن الله تعالى توبة عما غفل عن ذكره وتقربًا اليه تعالى وطلبًا لمرضاته، راوي وايي چي سليمان ﷺ چي زر (۱۰۰۰) سره اسان ذبح کړه او غوښي يې خيرات کړې، خدای ﷻ د اسانو په عوض کي تر اسانو ښه شی ورکړی يعني باد چي دده تخت به يې په هواء وړی، ښه په دې وُ چي تر آسانو ډېر چابک وُ او علف او خورک ته يې هم ضرورت نه درلودی لکه اسان، او دده په اراده به يې رفتار کاوه حيث يشاء سرعة وبطوءا او ټوله کابينه به يې هم ور سره ناست وه پر تخت باندي وهذا فضل من الله على من ترک الهواء بطلب مرضات الله تعالى.

**مسئله:** د دې خيرات څخه د آسانو چي سليمانؑ وکړی، دا معلومه سوه چي د آس غوښي حلالي دي لکه زموږ په شريعت کي عند الجمهور خلافًا لابی حنيفةؒ چي هغه يې مکروه بولي، دی وايي چي اسان اله د جهاد دي، او بعض مفسرين وايي چي ذبح کړي يې نه دي بلکې في سبيل الله يې وقف کړه، او دغه مفسر مسح بالسوق والاعناق معنی دا کوي چي پر پښو او غاړه يې داغ د صدقة ولګاوه.

**درويش وايي:** چي بعض ضعيف روايتونه نور هم سته لا فائدة في ايرادها، روح المعاني د دې آيت په معنی کي ډېري اوږدي خبري کړي دي کما هو ديدنه او نقض او ابرام يې راوړی دی، او روح البيان هم د دې ايت تفسير و اوج ته د طول رسولی دی، نو چونکه د درويش د تفسير ميدان ډېر تنګ دی او پر متعلمينو د تفسير ډېر لوی بوج دی، له دې سببه هغه طويل ابحاث چي په ان قيل وقلنا سره بدرګه کېدل هغه مي صرف نظر کړه.

وَلَقَدْ فَتَنَّا سُلَيْمٰنَ وَاَلْقَيْنَا عَلٰى كُرْسِيِّهٖ جَسَدًا ثُمَّ اَنَابَ ﴿۳۴﴾

(جواب د قسم محذوف دی، او عطف دی پر وهبنا) والمعنى اختبرناه وابتليناه يعني امتحان دده مو وکړی.

له ابو هريرهؓ څخه روايت دی چي رسول الله ﷺ وويل: چي سليمان ﷺ وويل چي زه به طواف کوم (مراد له طواف څخه جماع دي) پر نهه نيوي (۹۹) مايِنو، او په بل روايت کي پر سلو (۱۰۰) مايِنو چي ټوله به نر اولادونه راوړي چي پر اسانو به سپاره في سبيل الله جنګ کوي، ملکي ورته وويل (او په روح البيان

کي وايي چي دده وزير آصف بن برخيا ورته وويل، وهذا اقرب الى الصواب) قل ان شاء الله تعالى، فلم يقل ونسي، نو ده طواف وکړی په معنى مذکور سره پر نهه نيوي يا سل ماينو باندي فلم تحمل منهن غير واحدة (يوه ماينه يې حامله سوه) وجائت بشق رجل (هغې هم غير تام الاعضاء زوی راوړی) قال رسول الله ﷺ و الذي نفس محمد بيده لو قال ان شاء الله تعالى فجاهدوا في سبيل الله فرساناً اجمعون، بخاري و مسلم يعني متفق عليه حديث دی.

نو دايي چي قابله يې بولي هغه نيم بدن زوی دده پر کرسى ورته کښېښنوی، فذالک قول الله تعالى ولقد فتنا آه.

(ثم اناب) بيا ده رجوع وکړه له ترک څخه د ان شاء الله په مستقبل کي، کذا قال طاؤس، مظهري وايي چي دا تأويل او ترجمه ددې آيت پر دغه ډول اقرب الاقاويل في تفسيرها لصحة حديث الصحيحين، اى البخاري ومسلم.

او دا تأويل پاک دی له نسبت څخه د سوء د انبياء عليهم السلام لان الجسد جسم لا روح فيه فيصدق على هذا التأويل بلا تکلف، قاضي عياض رح په خپل کتاب شفاء کي وايي چي که څوک پوښتنه وکړي چي سليمان ع ولي ان شاء الله ونه ويل:

(۱) اول جواب مافي الحديث الصحيح انه نسي ان يقول ذالک (۲) سليمان ع د صاحب دده يعني آصف خبره نه وا وريدل انتهى (۳) دغه قصه چي حديث متفق عليه کي راغلې ده، روح البيان، روح المعاني او مظهري ګردو راوړې ده، وروى الطبراني في الاوسط وابن مردوية چي د سليمان ع يو زوی پيدا سو، نو شيطانانو او پيرانانو پر دې اتفاق وکړی پر دې باندي چي د سليمان ع زوی به مړ کړو يا به يې ژوبل کړو يعني دماغ به يې ورخراب کړو، دا ددې لپاره چي دوی په خپلو دماغو کي دا سنجولي وه چي سليمان ع به يو وخت مري او موږ به ددوی د تسخير څخه ازاد سو، او که يې زوی ژوندی پاته سي، نو بيا به يې د زوی تر تسخير لاندي ژوند کوو ثم وثم، سليمان ع چي په دې خبر سو، نو يې وريځي ته امر وکړی چي ته دا زما زوی وساته يعني پټ يې کړه له شيطانانو څخه، راوي وايي چي غذاء دده به باد ورته راوړل، په دې کي د سليمان ع دا پړه که څه هم ګناه خو نه وه، ولي په عالم اسباب کي خلګ خپل د سرای دېوالونه ډېر جګ کړي چي غل را نسي يا د حفاظت لپاره ځان ته

پهره دار و دروي الى غير ذالک، په شرح المقاصد کي وايي وفيه خطاء سليمانؑ في ترک التوکل على الله، والقى ابنه کرسيه ميتًا فهو المراد من الجسد الملقى على کرسيه فاستغفر ربه واناب وغايته ان هذا الفعل ترک الاولى ؤ.

**درويش وايي:** چي محدثين وايي چي دا دي روايت سند ډېر ضعيف دی، والله اعلم، کاشفيؒ په تفسير حسيني کي وايي: ومشهور آنست که بواسطهٔ انگشتری مملکت سليمان که بر آن اسم اعظم نوشته هم بود، عادت سليمانؑ همين بود که به قضاء حاجت ميرفت انگشتری خود بزن خود ميداد چون بر می آيد انگشتری خود ازو ميگرفت، روزی بنام صخر از جن بشکل سليمانؑ درآمد قبل خروج سليمانؑ از زن وی انگشتری گرفت وبرخت سليمانؑ نشست چهل روز فيکون المعنى ولقد ابتليناه بسبب ملکه والقينا على کرسيه جسدًا وهو صخر صاحب البحر وسماه جسدًا لانه تمثل بصورة سليمانؑ ولم يکن هو فيکون جسدًا محضًا بلا معنى ثم اناب اى رجع الى ملکه بعد (۴۰) يومًا.

**درويش وايي:** چي دا وه ترجمه د کاشفيؒ د قول په عربي ژبه لکن هذا ليس بشيئ اول په دې سبب چي په دې کي معنا د القاء نسته، ولي چي جن خو پر کښېنستی را غورځول خو نسته، دوهم دا چې وله انبياء له دې څخه معصوم دي چي شيطان دي د دوی په صورت سي نومًا کان او يقظة ووقع عليه اجماع الامة المرحومة.

**درويش وايي:** چي دا قصه پر دغه ډول مشهوره ده په عربو او عجمو کي لکن قطعًا ويقينًا کذب محض دی، او روح المعاني وايي چي ابو حيان وغيره وايي چي دا قصه يهوديانو او زنديقانو وضع کړې ده، کذا في روح البيان او روح البيان په دې باره کي ډېر دلائل راوړي دي.

**درويش وايي:** چي مظهريؒ ډېر روايتونه راوړي دي په دې باره کي په نقل د وهب بن منبهؒ څخه چي عقل ورته حيرانېږي، تاسي يې مطالعه کړئ، والعلم عند الله تعالى.

قَالَ رَبِّ اغْفِرْ لِي وَهَبْ لِي مُلْكًا لَّا يَنبَغِي لِأَحَدٍ مِّنۢ بَعْدِيٓ

وويل سليمانؑ اى زما ربه ماته بخښنه وکړې او ماته راکړې داسي سلطنت چي نه ښايي لاحد يعني هيڅ چا ته وروسته تر ما، او بعض مفسرين وايي چي معنى د من

بعدي من سوائي، مظهري، روح المعاني او روح البيان وايي چي استغفار يي دمخه کړی پر طلب د هبه د ملک لايبقی لاحد مبني دی پر عادت د انبياء عليهم السلام او د صالحانو چي استغفار د مخه تر طلب د حاجت او سوال وايي له دې آيت څخه دا فهمېږي چي فتنه د سليمان انما كانت ابتلاء من الله اياه لرفع درجاته في الدنيا والآخرة. كفتنة ايوب عليه السلام ولم يكن معصية بل غايته خلاف الادبى ولي كه معصيت وايي نو سليمان به ډېره مبالغه په ندم او استغفار کي کړې وای ولم يسئل غير المغفرة، او که هغه معصيت وای خدای پاک به ويلي وای فغفرنا له ذالک کما في قصة داؤد عليه السلام، مقاتل وايي چي سليمان خو ملک ؤ نو مراد د لاينبغي لاحد من بعدي داؤد چي انس او جن والشياطين والرياح والطير يې تو له مسخر وه بدليل مابعده.

## إِنَّكَ أَنتَ الْوَهَّابُ

په تحقيق ته ای خدايه كثير الهبة يې (لفظ د وهاب صيغه د مبالغې ده)

**پوه سه:** چي دا جمله تعليل ده لسؤاله بقوله وهب لي ملكا الخ، د بعض جاهلانو دا خيال دی چي سليمان چي دا خواست وکړی ''وهب لي ملكا آه'' غرض يې بخل د مملکت عامه پر انس او جن والشياطين وغير ذالک او حسد ؤ د بني نوع انبياء عليهم السلام سره، او بل حرص پر دنيا جاه و جلال باندي.

**دروش وايي:** چي دا خيال غلط دی او د سليمان توهين دی بلکي اصل سبب د دې سوال دادی چي چونکه سليمان د مذکور سلطنت عامه ؤ بالمعنى المذكور، لهذا الهم اليه هذا السؤال، واما سلطان الانبياء صلى الله عليه وسلم فاختار لنفسه الجوع يومًا والشفع يومًا، وقال الفقر فخري واختار تجلى الذات في مرتبة الذات لم ينلها احد من افراد الخلق سابقًا ولا حقًا واكتفى صلى الله عليه وسلم على الرياسة المعنوية ولواء الحمد الذي تحته آدم ومن دونه واكتفى بما بشره الله من المقام المحمود في يوم الموعود للشفاعة اكبري في ذالک اليوم.

**فائده:** با اين همه وسعت مملکت سليمان لم يكن له نظر الى الدنيا ونعيمها بلکي د وسعت ملک خدا داده سره سره ده له کسب څخه د خپلو لاسو ډوډی پيدا کوله يو مسکين به يې بل را وباله هغه ډوډی به يې د هغه مسکين سره خوړل، او دا به يې ويل مسکين يأكل مع مسكين.

## فَسَخَّرْنَا لَهُ الرِّيحَ تَجْرِي بِأَمْرِهِ

موږ مسخر وګرځاوه دده لپاره باد، دا جمله عطف ده پر محذوف یعني فاستجبنا دعائه فسخرنا له الريح، د کلمه څخه د فا چي لپاره د تعقيب بلا فصل ده دا معلومه سوه چي سوال د سليمانؑ عقيب د دعائه بلا فصل زمان مقبول سو.

**سوال:** سليمانؑ خو د دوو شیانو خواست کړی ؤ اول رب اغفرلي، دوهم وهب لي آه، نو داسي د څه حکمت لپاره نه وويل سول فغفرنا له وسخرنا له؟

**ځواب:** دمخه موږ وویل چي سوال د مغفرت تمهید ؤ لپاره د سوال د وهب لي آه على عادة الانبياء عليهم السلام وعباد الله الصالحين، نو ځکه هغه نه کړی ذکر او بل جواب دادی چي اول سوال د اجابت و ذکر ته ضرورت لانه من ضروريات الدين ان الانبياء عليهم السلام معصومون مغفرون، ومعنى تسخير الريح اطاعت دی بالامر سليمانؑ حيث شاء ليلاً ونهاراً ورخاءً وسرعةً.

**پوهنه:** (لتجري بامر) صفت د ريح ده.

**سوال:** الريح خو معرفه دی باللام او جمله چي تجري ده په حکم کي د نکرې دی کما تقرر في النحو، نو څرنګه تجري صفت د الريح کېدای سي؟

**ځواب:** دا صفتيت د قسم د هغه قول د يو شاعر دی:

لقد امر على اللئيم يسبني .... معنى داده چي په اللئيم کي لام لپاره د عهد ذهني دی ای لئيم من اللئام لا لئيم معين فهو حكم النكرة فصح وقوع جملة يسبني صفت له وكذا اللام في الريح لپاره د عهد ذهني دی ای ريح من الرياح غير معين فهو نكرة فيصح جعل جملة تجرى صفت له والتفصيل لهذا الجواب في شرح المولى عبد الرحمن الجامي قدس سره في شرح الكافيه.

## رُخَاءً حَيْثُ أَصَابَ ﴿٣٦﴾

(رخاء) يعني جالس ته اضطراب نه ورکوي ولا تخالف ارادة سليمان (حيث شاء) چېري چي به د سليمانؑ اراده وه ظرف لتجري.

**پوښتنه:** په بل ځای کي د قرآن کريم راغلي دي (ولسليمان الريح عاصفة) عاصف خو تند باد ته وايي يعني ضد د رخاء فكيف التوفيق بين الآيتين؟

**ځواب:** دا ريح رخاء خو له جنس څخه د ريح عاصفة ؤ لكن چونكه په امر د سليمانؑ ؤ نو رخاءً يې رفتار كاوه، او بعض مفسرين وايي چي د سليمانؑ چي به يو ځاى ته تلوار ؤ نو باد به عاصف روان ؤ يعني بلا اضطراب جالسه كما هو طبعه، او چي سليمانؑ به معاينه د مصنوعاتو د خداىؑ كوله نو باد به رخاءً روان ؤ.

(حيث اصاب) ظرف دى د تجري او اصاب په معنى د قصد او ارادې دى كما روى عن ابن عباسؓ وقتادة والضحاكؒ، اوجاجؒ له عربو څخه حكايت كړى دى چي دوى وايي اصاب الصواب فاخطاء الجواب يعني دده قصد او اراده د حق وه په جواب كي خطاوتى.

## وَالشَّيٰطِيْنَ كُلَّ بَنَّآءٍ وَّغَوَّاصٍ ۙ﴿۳۷﴾

او شيطانان مو ده ته مسخر كړي وه (كل بناء) يعني بنايان به وه چي كوټياني او كلاوي به يې جوړولې (وغواص) چي په درياب كي به يې غوټې وهلې او له درياب څخه به يې ملغلري او مرجان سليمانؑ ته را ايستل، مفسرين وايي چي سليمانؑ اول سړى ؤ چي له درياب څخه يې ملغلري را ايستلي دي.

**فائده:** لفظ د كل بدل دى د شياطين څخه كما هو ظاهر.

## وَّاٰخَرِيْنَ مُقَرَّنِيْنَ فِي الْاَصْفَادِ ﴿۳۸﴾

عطف دى پر "على كل" او نور شيطانان چي تړلي يې وې په زولنو پښې د دوى او لاسونه يې اولچك وه، دا هغه ډله وه چي مردهٔ يعني سركښه ډله وه چي د سليمانؑ حكمراني يې نه منل، نو يو د بله سره به يې تړلي وه په ځنځيرانو چي شر پيښ نه كړي.

**سوال:** شيطان يعني ابليس يې ولي نه تاړه؟

**ځواب:** ابليس خو له خداى ﷻ څخه مهلت اخستى ؤ: بانك من المنظرين الى يوم الوقت المعلوم.

## هٰذَا عَطَآؤُنَا فَامْنُنْ اَوْ اَمْسِكْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿۳۹﴾

په تقدير د قول اى قلنا له هذا الذي اعطيناك من الملك والبسط (فراخي د مملكت) والتسلط على مالم يسلط غيرك (لكه بيان چي يې تاسي واورېدى)

عطا ز موږ ده (فامنن) ته احسان کوه يعني د من شئت سره، (او امسک) يا منع کوه د من شئت سره (بغير حساب) حال دی د مستکن ځخه في الامر، والمعنی چي ستا سره به حساب نه کړل کېږي علی منه وامساکه يعني خدای ﷻ تفويض و تاته کړی دی، او مقاتل وايي هذا ای تسخير الشياطين عطائنا اعطيناکه فامنن يعني خل منهم من شئت وامسک منهم في وثاقک من شئت لاتبعه عليک (يعني خدای به ستا ځخه بازخواست نه کوي) لا في الاطلاق ولا في الامساک.

وَإِنَّ لَهُ عِندَنَا لَزُلْفَىٰ وَحُسْنَ مَآبٍ

په تحقيق سليمان لره قرب ستنه (يعني په آخرت کي سره د ملک عظيم في الدنيا) او ښه ځای د رجوع ستنه يعني الجنة.

**درويش وايي:** چي قصه د سليمان عليه السلام پای ته ورسېده.

وَاذْكُرْ عَبْدَنَا أَيُّوبَ

ته ذکر کړه قصه د ايوب.

**پوه سه:** چي ايوب عطف بيان دی لعبدنا او دا جمله عطف ده پر واذکرنا عبدنا داوٗد.

**فائده:** نسب د ايوب عليه السلام دا دی: ايوب بن اموس بن رازخ بن روم بن عيص بن اسحاق بن ابراهيم عليه السلام، او دده مور د لوط عليه السلام له اولاد ځخه وه، او زوجه دده رحمة بن افرايم بن يوسف عليه السلام، قرطبي په خپل تفسير کي وايي چي پر ايوب ايمان نه دی راوړی مگر دري نفرو، او دده عمر درونيوي (۹۳) کاله وٗ، وهذا عجيب والله اعلم بالصواب.

**درويش وايي:** چي تمامه قصه د ايوب صابر عليه السلام سره د لوی تفصيل د سورة انبياء په تفسير کي فقير ذکر کړې ده، په دې ځای کي حسب ضرورت فهم المقام بعض بيانات به وکړل سي ان شاء الله تعالی.

**درويش وايي:** چي بناء پر تفصيل مذکوره له سببه ايوب عليه السلام تر موسی عليه السلام دمخه وٗ، وقال ابن جرير کان بعد شعيب عليه السلام، وقال ابن ابی خثيمة کان بعد سليمان.

**نکته:** په قصه کي د سليمان بي دا عنوان نه راوړی "واذکر عبدنا سليمان" لکمال الاتصال بين سليمان وبين داوٗد عليه السلام.

إِذْ نَادَىٰ رَبَّهُۥٓ أَنِّى مَسَّنِىَ ٱلشَّيْطَٰنُ بِنُصْبٍ وَعَذَابٍ ﴿٤١﴾

چي ده خواست وکړی خدای ﷻ ته (دا بدل اشتمال دی له ايوب څخه) اني بتقدير البا ای باني، ماته ورساوه شيطان (يعني د مس معنی ممس باليد نه ده) مشقت او سترپيا (تنوين لپاره د تعظيم دی يعني لوی مشقت) او عذاب، بعض مفسرين وايي چي مراد له عذاب څخه الم او درد دی وهو المراد بالضر وقيل النصب والضر في الجسد والعذاب في الاهل والمآل.

**فائده:** په دې آيت کي خدای ﷻ حکايت د قول د ايوب عليه السلام وکړی الذي نادی به ربه والا لقيل انه مسه په ضمير او صيغه د غائب، بعض مفسرين وايي چي اسناد د مس و شيطان ته پر ظاهر دی، ولي ابليس عليه اللعنة به واوريده ثنا او صفت د ايوب عليه السلام له ملکو څخه حسد يې ورسره پيدا سو، نو ده عليه اللعنة و خدای ﷻ ته خواست وکړی چي دده پر حسد او مال او اولاد آفت مسلط کړې، خدای هم دغسي وکړه ترغيمًا للشيطان وابتلاءً لايوب عليه السلام، او په بعضو روايتو کي راغلي دي چي دا رسوونکی د نصب او ضر او عذاب و ايوب عليه السلام ته يو شيطان ؤ چي نوم يې مسوط ؤ، لکن علامه زمخشري په کشاف کي چي دده د تفسير نوم دی دا خبره په کلکه رد کړې ده، دی وايي لايجوز ان يسلط الله تعالی الشيطان علی انبيائه عليهم السلام چي دوی دي په اتعاب (يعني تکليف) او تعذيب کي واچوي دی وايي چي که شيطان پر دې قادر سي لم يدع صالحًا ولا نبيًا الا قد اهلکه وقد تکرر في القرآن چي شيطان لره بله لار پر مؤمنانو نسته الا الوسوسة فحسب، او صاحب کشاف اسناد د مس و شيطان ته مجاز بولي، فقال لما کانت وسوسته الی ايوب ع وطاعته له (چي ايوب ع هغه د شيطان) په وسوسه عمل وکړی، سببٌ فيما مسه الله تعالی من النصب والعذاب نو ځکه ايوب عليه السلام نسبت و شيطان ته وکړی (يعني دا اسناد و شيطان ته مجاز دی له اسناد څخه و سبب و موسوس ته) مگر مع انه تعالی فاله ولايقر عليه الا هو انتهی کلام صاحب الکشاف.

**پوهسه:** چي بعض علماء وايي هغه وسوسه دا وه چي ايوب عليه السلام په خپله خواست د بلا وکړی تا چي امتحان د صبر ورکړي او دوی تجربه د خپل صبر وکړي علی ماتصيبه من البلاء في جسده وماله وعياله کما قال ابن الفارض رح وبما شئت في هواک (ای في

مجئتک) اختبر لي فاختاري ما فيه رضاکا، لکن سؤال د بلا بدون العافية ذنب بالنسبة لمقامه لا حقيقة والمقصود بنداته بذالک المذکور الاعتراف بالذنب لان حسنات الابرار سيئات المقربين، او نور غير مناسبة اقوال بمنصب الانبياء عليهم السلام يعني وقيل ان رجلاً استغاثه على ظالم فوسوس اليه الشيطان بترک استغاثته فلم يغثه فمسه بسبب ذالک بما مسه، وقيل کانت مواشيه في ناحية ملک کافر نو د هغه سره يې مداهنه کوله (ده به د هغه کافر سره غوره مالي کوله او غزاء يې نه ورسره کوله) بوسوسة الشيطان بذالک العمل فعاقبة الله بما اصحابه، روح المعاني وايي وکل هذه الاقوال عندي متضمنة ما لايليق بمنصب الانبياء عليهم السلام، او بعض علماء وايي چي وسوسه و ايوب عليه السلام ته نه وه بلکې بل چا ته وه (۱) قيل ان الشيطان تعرض لامرئته بصورة طبيب ومعه من الشياطين، نور مريضان وه ده به دوا ورکول، نو دا ورته ودريده چي زه هم يو مريض لرم تداوي به يې نه راوکړې؟ شيطان ورته وويل چي تداوي يې مفته درکوم په دې شرط چي دی چي جوړ سي دا خبره به کوي چي تا ماته شفا راکړه، نو دده د مايني دې ته رغبت وسو په دې معنی چي په دې خبره کي نو څه بدي سته؟ دا د شيطان خبره يې و ايوب عليه السلام ته وکړه، نو ايوب[ع] پوه سو چي شيطان دی تر خپلي ناجوړی دا خبره بده پر پرېوته، په دې سبب چي د شيطان زما و ارتداد ته طمع پيدا سوه، فنادی آه.

او بعض وايي چي ده دري کسه مؤمنان درلوده يو مرتد سو، ايوب عليه السلام پوښتنه ځني وکړه چي ته ولي مرتد سې؟ هغه ورته وويل چي زما په زړه کي دا راوګرځېدل چي خدای پاک لايبتلی الانبياء والصالحين (دا وسوسه شيطان و دغه سړي ته په زړه کي وراچولې وه) نو ايوب عليه السلام دې سړي ډېر خوږ کړی، فقال بعضهم لبعض ما اصاب هذا الا بذنب اصاب (دې نفرو ته دا وسوسه شيطان په زړو کي ورپيدا کړې وه) وقيل غير ذالک، والله اعلم.

**درويش وايي:** چي له قتاده[رح] څخه روايت دی چي ايوب عليه السلام مريض وُ يعني ابتلی وُ اووه کاله او څو مياشتي، نو خلګو دی وغورځاوه پر تېپ (ډېران) يعني چي خلک مرداري وغيره پر هغه ځای غورځوي چي دا کناسه او تېپ د بني اسرائيلو وُ، نو بدن يې چينجيان وکړه، فصبر ففرح الله عنه واعظم له الاجر، واحسن يعني ښه اجر يې ورکړی، او له ابن عباس[رض] څخه روايت دی چي ايوب عليه السلام د مابين القدمين څخه نيولې تر قرن

الرأس پوري يو ه دانه سوه چي توري وينې تر بهېدلې. نو خلګو پر امبارو وغورځاوه حتى چي حجاب القلب يې ښکاره سو يعني غوښه يې ټوله توى سوه، ماينې يې خدمت کاوه ولاړه په سوال به يې څه پيدا کړه ده ته به يې راوړه، يوه ورځ يې ماينې ورته وويل: اما ترى يا ايوب قد نزل الله بي واله من الجهد والفاتحة چي ما خپلې څو کوڅې خرڅي کړې پر يوه پتيره چي تا ته مي راوړه، فادع الله ان يشفيک ويرحمک. نو څه وخت چي امتحان د ايوب ﷺ پاى ته ورسېدى قال الله تعالى:

ارْكُضْ بِرِجْلِكَ ۖ هَٰذَا مُغْتَسَلٌ بَارِدٌ وَشَرَابٌ ﴿٤٢﴾

ووهه په پښه سره خپل، يعني مځکه وواهه (دا جمله مستأنفه ده په تقدير د قول يعني قلنا له ارکض آه) دا اوبه د غسل لپاره دي "بارد" (فاغتسل منه فذهب کل مرض بظاهر جسده) "وشراب" يعني اوبه و څښئه، چي د باطن ټوله امراض يې دفع سوه.

**درويش وايي:** چي ظاهر د قرآن خو دادى چي مغتسل او شراب دواړه يوه چينه وه، بعض مفسرين وايي چي دوې چينې وې په دوه واره د مځکي وهلو په پښه سره، يوه د ګرمو اوبو چي په هغه کي غسل وکړى او يوه د يخو اوبو چي هغه يې وڅښلې، راويان د قصې وايي چي ايوب ﷺ نوى ځوان غوندي وګرځېدى او د حسن او جمال خاوند سو، په دغه وخت کي يې ماينه په دوه وو دې پسي تللې وه او ايوب[۴] پر لوړ ځاى کښېنستى، او جبرئيل[۴] جنتي کالي ورته راوړه، دده ماينه چي راغله نو هغه ناجوړى ميړه يې پر ډېران د ايرو ونه ليدى، او ايوب ﷺ چي په بل لباس کي ؤ هم يې ونه پېژندى، نو دې ور ناري کړې يا عبد الله ابن المبتلى الذى کان ههنا، بغاري يې کړې چي سپو خوړلى دى که نورو ځناورو خوړلى دى، ايوب ﷺ يو ګړى خبري ور سره وکړې وروسته يې ورته وويل ويحک انا ايوب قد رد الله علي جسدي وشفاني من کل مرض.

وَوَهَبْنَا لَهُ أَهْلَهُ وَمِثْلَهُم مَّعَهُمْ رَحْمَةً مِّنَّا وَذِكْرَىٰ لِأُولِي الْأَلْبَابِ ﴿٤٣﴾

(ووهبنا له اهله) دا جمله عطف ده پر مضمون د کلام سابق اى فشفيناه ووهبنا له (ومثلهم آه) او يو مثل د هغو سره هغو چي مضاعف سي، دا رحمت ؤ زموږ له خوا، منصوب دى مفعول له دى د وهبنا او دا پند دى لپاره د عبرت د خاوندانو د عقلو.

**درويش وايي:** چي د مثلهم په معنى کي اختلاف دى، طبرسي د ابى عبد الله[ع]

څخه روایت کړی دی چي خدای ﷻ ژوندي کړه ده ته اهل الذين ماتوا قبل البلية واهله الذين ماتوا وهو في البلية.

**پوه سه:** چي ظاهره داده چي دا هبه په دنيا کي وه.

**سوال:** د ابی عبد الله رحمه الله په روایت چي دغه زامن دده چي ایوب علیه السلام په بلیه کي ؤ نو دمخه تېره سوه چي په بلیه کي د ایوب علیه السلام یې ماینې خدمت کاوه، نو دې زامنو یې ولي خدمت نه کاوه؟

**ځواب:** دغه زامن خو دده بلیه قربانیان سوه هغه دمخه چي مړه وه هغه د بلیه قربانیان وه، او د امام اعظم رحمه الله څخه روایت دی چي د مړو زامنو یعني د بلیه قربانیان خدای ﷻ په اخرت کي اجر جزیل ورکوي او هغو مړه زامن خدای پاک نور ورکړه یعني د هغې ماینې څخه برد قوتها، مطلب دا چي مړي یې نه دي ژوندي سوي.

**درويش وايي:** چي یوه ورځ چي رحمة د ایوب علیه السلام ماینې هغه د شیطان خبره و ایوب علیه السلام ته وکړه، نو ده قسم واخستی که زه جوړ سوم زه به تا سل لرګي وهم، نو ایوب علیه السلام چي جوړ سو د قسم په باره کي خدای ﷻ ورته وویل:

وَخُذْ بِيَدِكَ ضِغْثًا

**فائده:** دا جمله عطف ده پر (ارکض) یا پر (وهبنا) بتقدير وقلنا خذ بيدک تا چي عطف د انشاء چي خذ دی پر اخبار چي وهبنا دی رانه سي، والاول اقرب لفظا ولي تقدير ته د قلنا حاجت نه لري لانهما انشاءان، والثاني اقرب معنًى فان الحاجة الى هذا الامر يعني خذ بيدک لاتمس الا بعد تمام الصحة واعتدال الوقت.

**پوه سه:** چي ضغث یو لړ وښوو، شپیشتو وغیره ته وایي چي تارونه یې سل وي او سرې په خوړېږي نه، او ریحان او قضبان لکه جارو، وقيل غير ذالک.

فَاضْرِبْ بِّهٖ وَلَا تَحْنَثْ

په هغه سره وواهه، یعني خپل ماینه رحمة (فالمفعول محذوف) ځان مه حانث کوه بترک الضرب بالکلية.

**پوښتنه:** خدای پاک د دې ښځي په وهلو کي پر ایوب علیه السلام ډېره اساني نه وکړه؟

**ځواب:** دا د خدای ﷻ رحمت ؤ پر هم پر ایوب علیه السلام او هم پر رحمة لحسن خدمتها اياه ورضاه عنها هغه قسم دده څخه د غضب په وخت کي اخستل سوی ؤ.

**مسئله:** ورته حيله رخصت باقيه دی زمونږ په شريعت کي په حدودو کي هم باقي دی چي حدود مبني پر تخفيف دي مهما امکن.

إِنَّا وَجَدْنَٰهُ صَابِرًا ۚ نِّعْمَ ٱلْعَبْدُ ۖ إِنَّهُۥٓ أَوَّابٌ ﴿٤٤﴾

مونږ دی پیدا کړی دی صابر بنده فيما اصابه في النفس والمال والعيال (دا علت دی د وهبنا) ښه بنده ؤ يعني ايوب ؑ، مقبل پر خدای ؑ ؤ په ټولو حالاتو من الصحة والبلية.

**سوال:** د شکايت و خدای ﷻ ته ونه کړی د شيطان څخه، نو دا شکايت د صبر سره منافي نه دی؟

**ځواب:** دې ته خو جزع نه وايي چي مقابل د صبر ده، کتمنی العافية وطلب الشفاء اما بالدعاء او بالدواء.

وَٱذْكُرْ عِبَٰدَنَآ إِبْرَٰهِيمَ وَإِسْحَٰقَ وَيَعْقُوبَ أُو۟لِى ٱلْأَيْدِى وَٱلْأَبْصَٰرِ ﴿٤٥﴾

او ته ذکر کړه يا محمد (ﷺ) زما بندګان (الاضافة لتشريف المضاف) چي دا يې عطف بيان دی، وروسته ابراهيم وابنه اسحاق وابنه يعقوب عليهم السلام) الايدي جمع د يد ده معنی يې دلته قوة في العبادة ده والابصار جمع د بصر ده مراد ځني بصيرت د زړه دی او معرفت د خدای ؑ دی بصفات الجمال والجلال کذا قال ابن عباس ؓ ومجاهد و قتادة رح، تعبير يې وکړی د قوت في العبادة کي په ايدي ولي اکثر اعمال شاقه په لاسو کېږي، او تعبير يې وکړی د معارف الهيئة ؤ ځخه په ابصار سره، ولي چي سترګي د اقوی اسبابو څخه د معارفو دي.

إِنَّآ أَخْلَصْنَٰهُم بِخَالِصَةٍ ذِكْرَى ٱلدَّارِ ﴿٤٦﴾

مونږ دوی ګرځولي دي خالصين لنا، بخصلة خالصة فيهم.

**پوهه:** چي دا جمله تعليل او دليل دی د ما وصفو به يعني اولی الايدي آه، والباء للسببية او خالصة اسم فاعل دی تنوين يې لپاره د تعظيم دی.

(ذکری الدار) په يادول د دار آخرت دائمًا او تذکير يعني نصيحت کول دي د خلکو ته کما هو عادة الانبياء عليهم السلام.

**فائده:** ذکری مصدر دی مضاف دی و مفعول ته او ذکری الدار بیان دی د خصلة چې د مخه یې مبهم راوړی په دې کې هم تعظیم د خصلة دی قال العارف الجامي قدس سره:

چه خوش باشد که بعد از انتظاری ........ به امید رسد امیداوری

**فائده:** ذکری الدار یا مرفوع محلاً دی خبر د مبتداء محذوفي دی یا منصوب محلاً دی مفعول د اعني محذوف دی، یا مجرور محلاً دی بدل د خالصة دی.

**فائده:** تعریف د الدار د عهد دی یعني الدار المعهود وهي الآخرة په دې کې اشاره و دې ته ده چې دار په حقیقت کې اخرت دی او دار دنیا مجازاً دار بولي لفنائها، او بعض مفسرین وایي چې په ذکری الدار کې مضاف محذوف دی ای ذکری صاحب الدار وهو الله سبحانه و تعالی.

**فائده:** مالک بن دینار رح وایي چې ترجمه د آیت داده ونزعنا عن قلوبهم حب الدنیا وذکرها واخلصنا هم لحب الاخرة وذکرها.

وَإِنَّهُمْ عِندَنَا لَمِنَ الْمُصْطَفَيْنَ الْأَخْيَارِ ﴿٤٧﴾

او په تحقیق دوی زمونږ په نیز یعني په الهی دربار کې غوره کړه سوی دی تر نور ابنا جنس ددوی، اخیار جمع د خیر ده چې په اصل کې افعل تفضیل دی.

**سوال:** قیاس صرفي خو دادی چې افعل تفضیل پر افعال نه جمع کېږي، نو اخیار څرنګه جمع راغله؟

**ځواب:** دا قانون په هغه افعل تفضیل کې دی چې پر خپل اصل باندي پاته وي او د خیر سره خو تخفیف لازم دی فافهم.

وَاذْكُرْ إِسْمَاعِيلَ وَالْيَسَعَ وَذَا الْكِفْلِ

او ته ذکر کړه یعني خلګو ته اسماعیل ع یعني ابن ابراهیم ع، او الیسع چې زوی د اخطوب ؤ.

**بوه سه:** چې الیسع یعني الیاس علیه السلام پر بني اسرائیلو په طور د یو مقتداء تیا کل سوی ؤ، او بیا وروسته نبوت ورکړل سو.

**بوښتنه:** د اسماعیل علیه السلام ذکر یې د پلا یعني ابراهیم علیه السلام او ورور اسحاق علیه السلام له ذکره جلا وکړی، نکته یې څه ده؟



Scanned by CamScanner

**ځواب**: لپاره د اشعار پر دې چې دده رښتيني په صبر کي علی الذبح ډېري محکمي وې، او بله وجه يې داده چې عرب په اسماعيل ﷺ کي څوک له ځانه سره نه ګډوي.

**فائده**: د اليسع الف لام زائد دی لازم دی لمقارنتهما الوضع.

**سوال**: اليسع خو لفظ عجمي دی او الف لام په عربي الفاظو پوري خاص دی؟

**ځواب**: روح المعاني وايي چي دا منافات نه سره لري، ولي چي په نورو اسماؤ عجميهؤ کي هم الف لام لازم سته، نحو الاسکندر، لکن تحقيق دادی چي الف ولام چي د اسم اعجمي سره په اول وضع کي راغلی بيا حکم په زيادت سره خطا دی.

**پوهه**: چي ذ الکفل د اليسع د اکا زوی ؤ، او نوم يې بشر بن ايوبؤ او ذوالکفل يې لقب ؤ، اختلف في نبوته ولقبه ذوالکفل، ذوالکفل يې په دې بولي چي بعض علماء وايي چي ده ته فراره سوي وه سل (١٠٠) نبيان چي ده پناه ورکړې وه او دی به يې ضامن ؤ چي زه يې ستاسي په لاس درکوم ده به خوشي کړه، او بعض علماء وايي چي ذوالکفل د ايوب ﷺ زوی ؤ، له وهب بن منبه رحمه الله څخه روايي دی چي خدای پاک وروسته تر موت د ايوب ﷺ شرف بن ايوب نبي کړی و سمّاه ذوالکفل او امر يې کړی چي خلګو ته دعوت د توحيد ورکوه، وکان مقيمًا بالشام عمره حين مات (٧٥)، او نور غير تائيد شده اقوال هم سته.

وَكُلٌّ مِّنَ الْأَخْيَارِ ﴿٤٨﴾

دوی ټوله د ښو بندګانو څخه د خدای ج وه، دا جمله حال ده له مفعول څخه د اذکر، يعني اسماعيل ع آه.

هَٰذَا ذِكْرٌ ۚ وَإِنَّ لِلْمُتَّقِينَ لَحُسْنَ مَآبٍ ﴿٤٩﴾

اشارة الی ما تقدم من امور، ذکر ای شرف لهم يا معنی داده چي دغه آيتونه د قرآن کريم څخه پر تاسي يې تلاوت وکړل سو ذکر جميل دی ددوی، وروسته خدای پاک احوال د ما اعد الله لهم ولامثالهم في دار الآخرة، ن وايي: په تحقيق تقوا دارانو له مثل هؤلاء المذکورين وامثالهم هر آئينه ښه مرجع سته يعني په آخرت کي.

جَنَّاتِ عَدْنٍ مُّفَتَّحَةً لَّهُمُ الْأَبْوَابُ ﴿٥٠﴾

جنتونه دي د اوسېدو (جنات عدن، عطف بيان دی يا بدل دی د حسن مآب)

چي خلاصي به وي و دوي ته دروازې د هغو جنتو تاچي الم د انتظار پر رانه سي.

**درويش وايي:** چي عدن اقامت ته وايي، نو له جنات څخه ټول له جنتونه مراد دي، ولي چي هر جنت ځای د اقامت دی، دا معنی په دې ځای کي انسب ده، ولي متقين عام دی شامل و انبيا علیهم السلام او اوليا الله رح ته او عوامو مؤمنانو ټولو ته شامل دی، او په دې کي شک نسته چي جنتونه د مذکوره کسانو على حسب تفاوت درجاتهم من القرب الى الله متفاوت دي، نو جنات عدن په معنی مذکور سره هم ټولو جنتيانو ته شامل دی، او جنت عدن يوه معنی علمي هم لري چي د يو خاص جنت نوم دی يعني علم بالغلبة دی. لکه مظهري رح چي ويلي دي هي من الاعلام الغالبة چي په هغه کي روح البيان يو طويل حديث هم را نقل کړی دی، او دده له حديث څخه دا فهمېږي چي جنت مذکور ځای د خواصو د مؤمنانو دی، او لکل متقي فالانسب لعموم المتقين المعنى العام ده که څه هم معنی عام جنت عدن بالمعنى العلمي سره هم شامل دی، والله اعلم بالصواب.

**فائده:** مفتحة منصوب دی والعائد في الحال هغه فعل دی چي د متقين څخه فهمېږي ای الحصول والکون، او لهم الابواب مرفوع محلاً دی چي د مفتحة اسناد ورته سوی دی، والعائد الى ذی الحال محذوف، والتقدير مفتحة لهم منها الابواب او يا الف ولام عوض دی دی د مضاف اليه څخه ای ابوابها.

مُتَّكِـِٔينَ فِيهَا يَدْعُونَ فِيهَا بِفَاكِهَةٍ كَثِيرَةٍ وَشَرَابٍ ﴿٥١﴾

(متکئين فيها) حال دی له متقين څخه يعني دوی به تکيې وهلي وي پر بالښتانو کما في موضع آخر ونمارق مصفوفة، دوی به راغواړي يعني د غلمانو څخه په مېوو ډېرو سره لکه انګور، سېب، مالټې، انار وغيرها او شراب.

**پوه سه:** چي د شراب سره يې کثير نه راوړی اکتفاءً بالاول.

**فائده:** ښه دا ده چي يدعون جمله مستأنفه ده لپاره د حال ددوی، او متکئين حال دی له ضمير څخه د هغو يعني له ضمير څخه د يدعون وانما قدم الحال لکونه نکرة، ولي چي په نکره کي واجب دی تقديم د عامل ذی الحال.

**فائده:** د جنت ټولو مېوو ته يې فاکهة ويل که څه هم مېوې د جنت غذائي شيان دي لکن دوی يې د تفکهه لپاره خوري لعدم ضرورة ابدانهم الى التغذی، او بعض

مفسرين وايي چې د فاكهة سره يې كثيرة راوړي لكثرة انواعها بخلاف الخمر، وفيه نظر لان الخمر ايضًا يتعدد ويتكثر بتعدد انواع الاثمار وكثرتها فتأمل، الا ان يقال ان التعدد في الثمار باعتبار اسمائها ومسمياتها والتعدد في الخمر بالاضافة الى الثمار دون الاسم وهذا القدر كاف في توصيف الفاكهة بالكثرة دون الخمر فافهم.

وَعِنْدَهُمْ قٰصِرٰتُ الطَّرْفِ اَتْرَابٌ ﴿۵۲﴾

او ددوى سره (نساء) هغه ماينې وي يعني الحور چې قصر او حصر وي طرف كتل ددوى پر خپلو مړو باندي، چې په بل پسي د ستر ګو تر كنج نه ګوري، لكه په دنيا كي چې يوه ښځه تر خپل مېړه ښائسته نر ويني د ستر ګو تر كنج ورته ګوري الا ما شاء الله، يعني وهري حوري ماينې ته خپل مېړه تر ټولو رجالو ښائسته ايسي، يا معنى داده چې ازاوج ددوى يعني حورات قاصرات الطرف به وي پر خپلو زوجاتو من الحور يعني په بله حوره پسي بې ستر ګي نه وي كړي، ولي جنتي ته خپله ماينه تر ټولو حورانو ښائسته ايسي، وهذا الاحتمال ذكره روح المعاني.

(اتراب) هم سنه به وي مېړه او ماينه چې د درودېرش (۳۳) كالو په عمر كي به وي ابدًا لايهرمون، اى الازواج والزوجات لان الجنة ليس محل التغير بمرور السنين كما في الدنيا، او مجاهد رح وايي چې زوجات يعني حورانې د جنت يو د بل سره بغض او نفرت نه لري، يعني لكه ضرات (بوني) د دنيا.

**يوه سه:** چې جمله ظرفيه يعني عندهم حال ده، وقد جاء في الحديث الصحيح يدخل اهل الجنة الجنة جردًا (چې پر بدن به يې وېښتان نه وي، ماسيوا له هغو ځايو څخه چې وېښتان يې زينت وي لكه ورځي او باڼو ګان) مردًا (جمع د امرد ده يعني بې ږېري) مكحلين (ستر ګي به يې بيله استعماله د رنجو لكه په رنجو داسي توري وي) ابناء (۳۳) سنه به وي، الى اخير الحديث.

هٰذَا مَا تُوْعَدُوْنَ لِيَوْمِ الْحِسَابِ ﴿۵۳﴾

"هذا" اى المذكور من احوال الجنة "ماتوعدون" على صيغة الخطاب چې ستاسي سره يې وعده كړې ده يعني په دنيا كي په واسطه د رسولانو، وقرء مايوعدون بياء الغيبة فالضمير راجع الى المتقين (ليوم الحساب) د ورځي د حساب لپاره، ولي چې حساب علت وګرځېدى الى الوصول الى تلك النعم الاخروية.

إِنَّ هَٰذَا لَرِزْقُنَا مَا لَهُ مِن نَّفَادٍ

په تحقیق دغه مذکوره اشیاء من قوله تعالی وان للمتقین الی ههنا زموږ رزق دی چي نسته دې رزق لره انقطاع او نیستي والی.

**پوه سه:** چي جمله ماله من نفاد له رزقنا څخه یا خبر بعد الخبر دی، ان هذا یا مرفوع محلاً دی ای الامر هذا (یعني حال د اهل الجنة هم دغه دی) یا هذا کما ذکره یا منصوب محلاً دی ای خذ هذا و هو الاشهر في امثال ذالک.

هَٰذَا ۚ وَإِنَّ لِلطَّاغِينَ لَشَرَّ مَآبٍ

(وان للطاغین) عطف دی پر وان للمتقین آه مراد له طاغین څخه کافران دي من الطغیان (سرکښي کول) لشر مآب، بد مرجع دی وهو النار.

جَهَنَّمَ يَصْلَوْنَهَا فَبِئْسَ الْمِهَادُ

"جهنم" بدل یا عطف بیان دی د شر مآب "یصلونها" چي ذوی داخلېږي (جهنم مؤنث سماعي دی، دا جمله حال ده له جهنم څخه) "فبئس المهاد" بد فراش دی جهنم، مستعار دی له فراشه څخه، فافهم، په دنیا کي.

هَٰذَا فَلْيَذُوقُوهُ حَمِيمٌ وَغَسَّاقٌ

"هذا" دغه عذاب منصوب محلاً دی په فعل محذوف سره چي وروسته فعل دلالت پر کوي (ودې ته په نحو کي منصوب علی شریطة التفسیر وایي) "فلیذوقوه" ای لیذقوا هذا فلیذقون، وفائدة الحذف والتفسیر تاکید العذاب، یا خبر د مبتداء محذوفي دی ای العذاب هذا "حمیم" ای هو حمیم، نهایته تودې اوبه دي "وغساق" عطف علی حمیم.

**درویش وایي:** چي په معنی کي د غساق اختلاف دی، ابن عباس رض وایي چي غساق بلا نهایة یخي اوبه دي چي زمهریرېږ بولي چي په سبب د ډېر یخوالي د بدن غوښي سوځي لکه اور چي په ګرمۍ سره سوځي، او بعض وایي چي نهایت بد بویه اوبه دي، په لغت کي د ترک، او قتاده رح وایي چي غساق هغه نوونه او زوي دي چي له غوښو څخه د اهل النار بهېږي، او ابن جریر رح روایت کړی دی له کعب رض څخه چي غساق یو حوض دی په جهنم کي هغه حوض ته وربهېږي زهر د هر خاوند

د زهرو لکه لړم، مار، لنډۍ او غونډک چې کافر په حوض کې غوټه کړي، نو پوستکي او غوښې يې ټولي توی سي.

**وَءَاخَرُ مِن شَكْلِهِۦٓ أَزْوَٰجٌ ﴿۵۸﴾**

''واخر'' ای عذاب آخر ''من سكله'' صفت دی د آخر، يعني ای مثل الحميم والغساق ''ازواج'' يعني تور انواع د عذاب.

**سوال:** ضمير د شكله خو مفرد دی، نو دوو ته څرنګه راجع کېدای سي؟

**ځواب:** په تأويل مشهور ای ماذکر، او يا راجع دی و شراب ته چې د ماقبل څخه وفهمېدی چې هغه حميم او غساق دواړو ته شامل دی يا ضمير د مفرد راجع دی و عذاب ته چې هم غساق او حميم دواړو ته شامل دی.

**پوه سه:** چې ازواج خبر دی د آخر او يا صفت د هغه دی يا د درو سره صفت دی. او يا مرفوع دی په جار او مجرور يعني من شكله والخبر محذوف ای لهم.

**هَٰذَا فَوْجٌ مُّقْتَحِمٌ مَّعَكُمْ**

ابن عباس رضي الله عنهما وايي چې دا کلام دی د خزنة النار و مشرانو او رئيسانو ته د اهل النار يعني چې رئيسان د کافرانو چې دوږخ ته ورسي، او وروسته اتباع د دوی پسي ورسي، نو خزنه ورته ووايي چې هذا (ای الاتباع) يو فوج او ډله ده چې داخل سوه و دوږخ ته ستاسي سره (يعني ای رئيسانو د کفر) او بعض مفسران وايي چې دا قول د رئيسانو دی بعضهم الی بعض (يعني چې دا اتباع يو جماعت دی) خو داخل سوه اورته يعني دوی ای الاتباع خو هم هغه دي راغله اورته ستاسي سره.

**پوه سه:** چې د اقتحام معنی دا ده چې يو سړی په خپله ځان وغورځوي ويوې کندې ته.

**سوال:** له کندې څخه دوږخ مراد دی، نو دوی څرنګه خپل ځانونه دوږخ ته ورغورځوي؟

**ځواب:** کلبي رحمه الله وايي چې ملکي دوی په غمچينو د اور وهي حتی چې دوی د ېېرې د وهلو ځانونه دوږخ ته وغورځوي، والله اعلم بمراده في کتابه.

**لَا مَرْحَبًۢا بِهِمْ**

**پوه سه:** چې مرحبًا مصدر دی په معنی د رحب چې وسعت او فراخی ته وايي ولفظ بهم بيان دی د هغه چا چې لا مرحبًا ورته ووېل او نصب د مرحبًا په دې سبب

دی چي مفعول به د فعل مقدر دی ای لایصادفون رحبًا وسعة دوی دي نه کړي پیدا پراخي، دا د عربو بښرا ده چي يو چا ته یې کوي وحاصله لا کرامة لهم.

**فائده:** دا قول د رئیسانو د کافرانو دی، د بهم ضمیر راجع دی و تابعانو ته، حسین کاشفي" وايي: مرحبا کلمه ایست برائ اکرام مهمان می گویند وبرائ اظهار خوشنودی بآمدن مهمان چون کلمه لا برو داخل شود برائ دعای سوء است انتهی بزيادة، وفي بعض شروح الحديث التكلم بكلمة مرحبًا سنته يعني للضيف النازل اقتداءً بالنبي ﷺ حيث قال مرحبًا يا ام هاني، چي دا راغله و عليه الصلوة والسلام ته په کال د فتح د مکې واسلمت ایمان یې راوړی وهي بنت ابی طالب عم رسول الله ﷺ، او علیه الصلوة والسلام چي معراج ته تللی وُ دديې له خوني څخه ولاړی کما قال المولی الجامي قدس سره:

چو دولت شد بد خواهان نهائي ...... سوی دولت سرائ ام هانی

**فائده:** جمله د لا مرحبًا بهم په تقدیر د قول ای قالوا متصله ده په ماقبل پوري.

إِنَّهُمْ صَالُوا النَّارِ ﴿٥٩﴾

دا جمله علت ده لقوله لا مرحبًا بهم، يعني دوی یعني الاتباع داخل سوه اور ته په اعمالو سره خپل لکه موږ چي داخل یو په اور کي باعمالنا.

قَالُوا بَلْ أَنتُمْ لَا مَرْحَبًا بِكُمْ

("قالوا" جمله مستأنفه ده يعني جواب د سوال ده چي اتباعو و متبوعينو ته څه وويل فاجيب قالوا ای التابعين للمتبوعين) بلکې تاسي متبوعین د لا مرحبا لائق یاست ترموږ، او علت یې دا بیان کړی چي تاسي هم ضال او مضل یاست، دیل یې دا وواېه.

أَنتُمْ قَدَّمْتُمُوهُ لَنَا ۖ فَبِئْسَ الْقَرَارُ ﴿٦٠﴾

تاسي موږ اتباع ته پیش کړی دا کفر او ضلال او عذاب "لنا" موږ ته، يعني تاسي موږ ته دعوت راکاوه د کفر، نو بد ځای دی موږ او تاسي لره د قرار یعني جهنم.

قَالُوا رَبَّنَا مَن قَدَّمَ لَنَا هَٰذَا فَزِدْهُ عَذَابًا ضِعْفًا فِي النَّارِ ﴿٦١﴾

بل استيناف بياني دی یعني دوی وویل ای زموږ خدایه هر چا چي راپېش کړی دغه کفر موږ ته و هغه ته زیات کړې عذاب دوه چنده په اور کي يعني يو عذاب د خپل کفر او ضلال او بل زموږ د رابللو و کفر ته چي اضلال یې بولي.

وَقَالُوا مَا لَنَا لَا نَرَىٰ رِجَالًا كُنَّا نَعُدُّهُم مِّنَ الْأَشْرَارِ ﴿٦٢﴾

"وقالوا" دا جمله عطف ده علی قالوا ربنا من قدم لنا آه، او مقاتل" وايي چي ددې قول قائلين كفار د قريشو دي په دوږخ كي، نو دوی وايي څه سبب دی موږ لره چي موږ نه وينو يعني په دوږخ كي هغه كسان چي موږ به په دنيا كي دوی اشرار بلل، ددوی غرض فقراء د مؤمنانو دي لكه عمار بن ياسر و خبيب وبلال و صهيب او ابن مسعود ﷺ.

**پوه سه:** چي جمله د لا نرىٰ له ضمير څخه د متكلم په لنا كي حال ده، والاشرار جمع د شرير ده، والشرط ضد الخير والخير ما يرغب فيها الكل والشر ما يكرهه، يعني زموږ ددوی څخه كراهت كېدی او په نظر د تحقير مو ورته كتل په دنيا كي دوی ته، يعني كفارو د قريشو به ويل د دغو فقراؤ په باره كي اهؤلاء من الله عليهم من بيننا.

أَتَّخَذْنَاهُمْ سِخْرِيًّا

په قطع د همزه، ولي چي دا همزه د وصل نه دی بلكې همزه د استفهام دی اصل يې أ اتخذتم او همزه د وصل يې حذف كړی استغناءً عنه بهمزة الاستفهام، روح المعاني وايي چي دا قرائت دی د حجازيانو قاريانو او د ابن عامر او عاصم او د ابو جعفر او د اعرج او د حسن او د قتاده رحمهم الله انتهى او دا جمله مستأنفه ده محل د اعراب نه لري، دا خبره دوی هلته وكړه چي دوی فقراء المسلمين په دوږخ كي ونه ليدل چي دوی په دنيا كي اشرار بلل انكاراً على انفسهم، مظهري" وايي چي اهل بصرة او الكسائي يې په همزه د وصل وايي يعني په كسره د همزه چي يا صفت اخرىٰ دی د رجالاً يا حال دی په تقدير د قد كما هو القانون النحوي، او سخريا بضم السين وكسرها مصدر ده سخره يعني پسخند يې په وواهه، والاسم السخرية زياته كړه ياء النسبة مبالغة كما في احمري، والغرض من الاستفهام الانكار والتوبيخ وللثوم دوی پر خپلو ځانو.

أَمْ زَاغَتْ عَنْهُمُ الْأَبْصَارُ ﴿٦٣﴾

يا كړې سوې له دوی څخه زموږ ستر ګي يعني په دوږخ كي به وي لكن زموږ ابصار به يې نهويني، الفراء النحوي وايي چي دا استفهام د توبيخ او تعجب دی، و كلمة ام معادلة د هغه همزه ده چي و فهمېده من قوله مالنا، والتقدير مالنا لانرىٰ هؤلاء الذين اتخذناهم يعني اليسوا ههنا يعني في النار او زاغت عنهم الابصار.

إِنَّ ذَٰلِكَ لَحَقٌّ تَخَاصُمُ أَهْلِ النَّارِ ﴿٦٤﴾

په تحقيق دغه چي موږ حکايت وکړی (لحق) وقوعه وتکلهم به، د ذالک بيان يې په دې قول سره وکړی، مخاصمه يو د بل سره د اهل النار، مراد له مخاصمه څخه هغه خبره ده چي مشرانو او رئيسانو د کافرانو و خپل اتباع ته وکړه لا مرحبًا بهم آه، او اتباع دوی ته وويل بل انتم لا مرحبًا بکم آه.

**درويش وايي:** چي اغنياء بايد فقراؤ ته په نظر د حقارت ونه ګوري، حافظ شيرازيؒ وايي:

نظر کردن بدرويشان منافی بزرگی نيست
سليمان با چنان حشمت نظرها بود با مورش

يعني د مېږيانو خيال يې ساتی کما في سورة النمل.

قُلْ إِنَّمَا أَنَا مُنذِرٌ ۖ

ته ورته ووايه يا محمد (ﷺ) و قريشو ته د مکې.

**پوه سه:** چي کلمه د انما لپاره د قصر قلب ده متصل بقوله تعالی قال الکافرون هذا ساحر کذاب، د قصر قلب معنی داده چي د مدعی د خبرو رد وکړی بل خبريه په ځای کي وکړی يعني زه ساحر نه يم لکه تاسي چي واياست بلکې زه بېرونکی يم ستاسي له عذاب څخه د خدای ﷻ.

**پوه سه:** چي قل سه د مقولې جمله مستأنفه ده.

وَمَا مِنْ إِلَٰهٍ إِلَّا اللَّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ﴿٦٥﴾

نسته معبود بالحق بې يوه خدای ﷻ، دا جمله عطف ده پر انما انا الخ رد دی د هغه قول د کافرانو اجعل آلهة الهًا واحدًا (الواحد) چي يو دی او نه په ذات کي او نه په صفاتو جماليه او جلاليه ؤ کي شريک لري (القهار) چي غالب دی هر کار چي اراده ورته وکړي هغه کولای سي بلا امکان مانع عنه ومن جملتها الاحياء بعد الموت ده.

**فائده:** په دې عبارت سره بشارت دی للمؤمنين بالجنة و وعيد للکافرين بالنار.

رَبُّ السَّمَاوَاتِ وَالْأَرْضِ وَمَا بَيْنَهُمَا الْعَزِيزُ الْغَفَّارُ ﴿٦٦﴾

چي خالق او مالک دی د اسمانو او مځکي او د هغه شيانو چي په مابين کي د

اسمانو او مځکي دی چي کائنات الجو يې بولي لکه وريځ، پېلبو، تنا، تکه وغير ذالک مما يعلمه الله (العزيز) چي غالب دی که چاته عذاب ورکوي څوک يې نسي مغلوبه کولای (الغفار) چي بخښونکی دی د مايشاء من الذنوب صغائرها وکبارها لمن شاء ما عدا الكفر والشرک.

**فائده:** ددې اوصافو په راوړلو کي تاکيد د توحيد و وعد للمؤمنين و وعيد لکافرين.

**قُلْ هُوَ نَبَؤٌا عَظِيْمٌ ﴿٦٧﴾**

ووايه ته يا محمد (ﷺ) چي قرآن مبارک يو خبر عظيم دی، دا معنی ابن عباس رض، مجاهد او قتادة رح کړې ده، او بعض مفسرين وايي چي ضمير د هو راجع دی و يوم القيامة ته المفهوم من الآيات کما في قوله جل ذکره عم يتساءلون عن النباء العظيم.

**اَنْتُمْ عَنْهُ مُعْرِضُوْنَ ﴿٦٨﴾**

چي تاسي له هغه څخه اعراض کونکي ياست يعني القرآن، او يوم القيامة چي نه قرآن منئ او نه يوم القيامة منئ او سره ددې چي پر حقيت د قرآن عزيز دلائل واضحه ستة من المعجزات الظاهرة على يد رسول اللهﷺ بل القرآن في نفسه معجزة او دليل د حقيت دی کريمه: ان كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا فأتوا بسورة من مثله الآية، وقد مر بيانه في تفسير سورة البقرة، او د قيامت هم دلائل عقليه او نقليه موجود دي، فما لكم ايها الكفار عنهما معرضون.

**فائده:** في خواص الاسماء الآلهية في الآيات السابقة (۱) خاصية اسم الله الواحد چي څوک هره ورځ زر (۱۰۰۰) واره وايي خلک به يې له زړه څخه ووځي او يوازي محبت د خدای ﷻ بې په زړه کي قرار پيدا کړي، وهذا البيت يدل على هذا المعنى ..... بيت:

اذا كان ماتهواه في الحسن واحداً ..... فكن واحداً في الحب ان كنت تهواه

(۲) د اسم القهار مبارک خاصيت دادی، وتل د حب د دنيا دی لـه زړه څخه او تعظيم د ماسوى الله له زړه څخه، څوک چي دا اسم مبارک ډېر وايي اثار د غلبه پر دښمن به ورته ښکاره سي، او بل خاصيت يې دادی چي څوک چي په رښتيا گو ظالم وي، نو په وخت کي د لمر د راختلو او د تهجد په وخت پر دې دول، يا جبار يا

قهار یا ذا البطش الشدید یو وار وروسته داسي وو وایي خذ حقي ممن ظلمني وعدًا علي، هغه ظالم به خدای هلاک کړي ان شاء الله تعالی.

**درویش وایي:** چي دا بیتونه د خدای ﷻ د قهاریت بیان دی.

غیرتش غیر درجهان نگذاشت .... وحدتش اسم این وآن برداشت

گم شود ظلمت پندار .... نزد انوار واحد قهار

(۳) خاصیت اسم العزیز: شیخ السهروردي قدس سره وایي که څوک دا اسم مبارک او وه ورځي پرله پسې هره ورځ زر (۱۰۰۰) واره وو وایي اهلک الله خصمه ان کان مستحقًا للهلاک، او بل خاصیت یې دا دی که په مقابل کي د صف د کافرانو یعني په وخت کي د جنګ او وایا (۷۰) واره وو وایي او هر وار و لښکرو ته د کفارو اشاره کوي د کافرانو لښکر به ماتي وخوري، ان شاء الله تعالی.

(۴) خاصیت اسم الغفار وجود المغفرة: که یې څوک وروسته د جمعې تر لمانځه سل (۱۰۰) واره وو وایي ظهر اثار المغفرة، وقد قال رسول الله ﷺ من لزم الاستغفار جعل الله له من کل هم فرجًا ومن کل ضیق مخرجًا ویرزقه من حیث لایحتسب، په صحیح حدیث کي راغلي دي اذا قال العبد یا رب اغفرلي قال الله تعالی اذنب عبدي ذنبًا فعلم ان له ربًا یغفر الذنب ویأخذ به اشهد کم اني قد غفرت، یعني دا خطاب ملکو ته وکړي.

مَا كَانَ لِيَ مِنْ عِلْمٍ بِالْمَلَإِ الْأَعْلَىٰ إِذْ يَخْتَصِمُونَ ۝

(ای علم بوجه ماکان دل کلمة من الاستغراقیة بعد حرف النفي) ما لره نه وُ هیڅ علم په جماعت بلند سره چي مراد ځني ملائکه دي، هغه وخت چي ملکو بحث کاوه په یو امر کي د امورو د دنیا او الآخرة، ولي چي اخبار د تقاول او بحث څخه د ملکو و ماجری بینهم موافق د مافي الکتب المتقدمة من التورات والانجیل وغیرهما من غیر سماع ومطالعة الکتب کما هو حال وشان النبي ﷺ لکونه نبیًا امیًا لا یتصور الا بالوحي.

**فائده:** په دې آیت کي اثبات د نبوت او رسالت دده دی، او بعض مفسرین وایي لکه روح البیان مراد له اختصام څخه د ملکو اختصام ددوی دی چي خدای پاک مشورهٔ و دوی ته وویل اني جاعل في الارض خلیفة، ملکو ورته وویل (لا

على وجه الاعتراض على الله حاشاهم الله عن ذالک بل لان يزيل شبهم الذي كان في قلوبهم وطلب الحكمة الالهية في استخلاف آدم؏) قالوا اتجعل فيها من يفسد فيها (اى بالمعاصي والظلم ويسفک الدماء)

**پوه سه:** چي نسبت د فساد في الارض وسفک الدماء وآدم؏ ته په اعتبار د اولاد د آدم؏ دى لما طالعه من اللوح المحفوظ او لقياس اولاد آدم على الجن الذي كانوا ههنا قبل آدم وذريته كما مر في تفسير سورة البقرة.

إِن يُوحَىٰ إِلَيَّ إِلَّا أَنَّمَا أَنَا نَذِيرٌ مُّبِينٌ ۝

ان نافيه دى يعني من حال الملاء الاعلى وغيره من المغيبات (الا انما آه) والمعنى ماته نه دي وحي سوي د حالاتو د ملاء الاعلى او نورو غيبو شانو لكه احوال د آدم ؑ د سجدې و ملكو ته او احوال د امم ماضيه الى غير ذالک، مگر لانما (بحذف لام التعليل) چي زه يېرونكى يم د كافرانو له عذاب اليم څخه په ورځ د قيامت، والحاصل چي دا معلومات چي تاسي واورېدل دليل ددې دى چي نبي مرسل يم د خداى ﷻ له خوا څخه، فافهم... اعتذار لازم الاظهار.

**درويش وايي:** چي د مذكوره آيتونو په تفصيل كي روح المعاني ډېر طويل بحث كړى دى او نقل او رد د بعض تفسيرو يې راوړى دى، او لوى حديث كه څه هم صحيح خو دى لكن د متشابهاتو څخه دى چي طالبان خو څه كوې كاشكي د متوسطي درجې علماء د هغو په تأويل پوهېدلاى، او مظهري" هم ورته كار كړى دى يعني متشابه حديثونه يې راوړي دي، نو ما په خپل تفسير كي د هغو حديثو له راوړلو څخه ډډه وكړه تاچي زما د تفسير مطالعه كونكي چي اكثره يې د كښتني درجې يا د اوسطي درجې ملايان دي په سبب د نه پوهېدو په تأويل د هغو احاديثو صحيحه ؤ په لويه فتنه كي واقع نه سي.

إِذْ قَالَ رَبُّكَ لِلْمَلَائِكَةِ إِنِّي خَالِقٌ بَشَرًا مِّن طِينٍ ۝

څه وخت چي وويل ستا رب و ملكو ته چي زه پيدا كونكى يم د يو بشر له خټو څخه. دا جمله بدل ده له اذ تختصمون څخه او د هغې جملې بيانونكې ده، ولې چي هغه سابقه جمله چي اذ پر داخل ؤ مشتمل ده اجمالاً چي په دې آيتو كي بې تفصيل بيان سي،

فَإِذَا سَوَّيْتُهُ وَنَفَخْتُ فِيهِ مِن رُّوحِي فَقَعُوا لَهُ سَاجِدِينَ ﴿۷۲﴾

نو چي ما د هغه خلق تمام ته ورساوه، ما پکښې پوه کړی یعني داخل مي کړی خپل روح، تاسې په واقع کې سولاست و هغه ته پر سجده.

**پوه سه:** چي اضافت د روح و ځان ته لپاره د تشریف د آدم ﷺ دی یا لپاره د تشریف د روح انساني دی چي اشرف د روحانو دی.

**درویش وایي:** چي تفصیلي بیان د سجدې د ملکو و آدم ﷺ ته د سورة البقرة په تفسیر کې مطالعه کړئ.

فَسَجَدَ الْمَلَائِكَةُ كُلُّهُمْ أَجْمَعُونَ ﴿۷۳﴾

نو سجده وکړه ملکو (دا جمله عطف ده پر قال ربک، باندي) کلهم اجمعون: ددې دوو لفظو معنا جلا ده یعني کلهم تاکید افرادي دی یعني ټولو افرادو د ملکو سجده وکړه، او اجمعون تاکید د اجتماع د ملکو دی په سجده کې یعني په یوه وار پس او پیش په سجده کې د ملکو نه ؤ.

إِلَّا إِبْلِيسَ اسْتَكْبَرَ وَكَانَ مِنَ الْكَافِرِينَ ﴿۷۴﴾

مګر ابلیس چي طلب د کبریا، خپل یې وکړی تر آدم.

**پوه سه:** چي استکبر علت دی د استثناء د ابلیس د سجده کونکو څخه.

**پوښتنه:** ابلیس خو په ماضي کې د کافرانو څخه نه ؤ بلکې لوی عابد ؤ چي په نامه د عزازیل یاد بدی یعني عزت من بنده د خدای ﷻ، نو د ماضي د صیغې د راوړلو به څرنګه توجیه کوو؟

**ځواب:** بعض مفسرین وایي چي کان په معنی د صار دی یعني اوس و ګرځېدی له کافرانو څخه، او بعض مفسرین وایي کان في علم الله القدیم من الکافرین ... بیت:

تکبر عزازیل را خوار کرد .... بزندان لعنت گرفتار کرد

تکبر مَن زینها ای پسر .... که روزی زدستش بر آیی بسر

**پوښتنه:** د ډېر مسلمانان سجده یعني لمونځ نه کوي نو هغه کافران دي؟

**ځواب:** کفر د ابلیس په سبب د صرف نه سجده کولو نه دی، بلکې ده انکار

وکړی له حکم ځخه د خدای ﷻ او امر د سجدې د خدای له خوا ځخه و آدم ته یې بد وباله، کما يفهم مما سيأتي.

قَالَ يَا إِبْلِيسُ مَا مَنَعَكَ أَنْ تَسْجُدَ لِمَا خَلَقْتُ بِيَدَيَّ

خدای پاک ورته وویل چې ای ابلیسه ته څه شی منع کړې له سجدې کولو ځخه و هغه چاته چې په خپل قدرت یې پیدا کړی ؤ.

**پوهه**: چې لفظ د یدي له متشابهاتو ځخه د قرآن دی ولې چې خدای[۴] جسم او اعضاء نه لري نو سلف علماء یې تأویل نه کوي او ایمان یې پر دې دی چې څه چې د خدای ﷻ مراد وي هغه حق دی او تفصیلي علم یې و خدای ﷻ ته سپارلی دی، لکن متأخرین علماء یې تأویل کوي، ددې آیت معنی دا کوي خلقته بقدرتي خلقته بقدرتي من غير توسط الاب والام.

**سوال**: نو چې معنی یې قدرت دی نو یدي تثنیه ولې راوړه؟

**ځواب**: لپاره د مزید قدرت د خدای ﷻ په خلق کې د آدم من طين یعني خمیرول د ختو ده څلوېښت ورځې او خلقت د آدم مخالف ؤ، د نورو انباء جنس ځخه دده لکه نور حیوانات.

أَسْتَكْبَرْتَ أَمْ كُنْتَ مِنَ الْعَالِينَ ﴿۷۵﴾

همزه د استفهام د توبیخ او د انکار داخل سو پر همزه د وصل نو اصل یې أاستکبرت ؤ همزه د وصل یې حذف کړی استغناءً عنه بهمزة الاستفهام.

**پوهه**: چې ام په معنی د بل دی، بل لپاره د توبیخ پر شق اول دی یعني تا طلب د کبریاء وکړی او همزه یې لپاره د انکار دی پر شق ثاني چې ته دې په واقع عالي یې تر آدم[۴].

قَالَ أَنَا خَيْرٌ مِنْهُ خَلَقْتَنِي مِنْ نَارٍ وَخَلَقْتَهُ مِنْ طِينٍ ﴿۷۶﴾

ابلیس وویل چې زه تر ده اعلی رتبةً یم یعني شق ثاني یې مختار کړی او ابلیس د خپل خیروالی تر آدم داسې بیان کړی، یعني زما خلقت د اور دی چې جوهر مضئ دی، او دده ماده د ختې ده چې جوهر کثیف دی.

**پوښتنه**: د بعض شیطان پرستانو په زړو کې به دا شک وي چې د ابلیس جواب خو ډېر معقول ؤ، نو د لعنت ابدي ولې مستحق وګرځېدی؟

**ځواب:** (۱) معقول به هتله وای که د خالق خپل د امر بالسجود لآدم تقبیح یې نه وای کړې او له انا خیر منه څخه دا واضح من الشمس ده چې د ابلیس تقبیح د امر د خالق خپل وکړه (۲) طبعیت د اور فساد او اتلاف دی د هغه شي چې د اور سره تماس وکړي، بخلاف التراب ولې د خاورو چې شی په تماس کې سي لکه غنم، جوار، وریجي او نور خوراکي مواد چې په ځمکه کې یې وپاشي اضعاف مضاعفه د پاشلي تخم راباسي کما هو المشاهد (۳) طبعیت د اور بې کاري او تېزي او سپک والی دی بخلاف التراب طبع د خاورو او ثبات ده (۴) په ځمکه کې ارزاق د انسانانو بلکې د ټولو حیواناتو او لباس د انسانانو چې له پنبه یا وړیو څخه وي لکه شړی، تلتکان، قالین وغیرها هم پکښې سته، ولې د حیواناتو وړی، لکه د اوښ وړی چې په عربي یې وبر بولي او د پسو وړی چې په عربي یې صفوف بولي او د بزو وجغونې چې په عربي یې شعر بولي ټول د ځمکې د نباتاتو د خوړلو نتیجه ده او د غه رنګه په ځمکه کې خلګ کورونه او کلاوي جوړوي.

(۵) خاوره ضروري ده د هر حیوان لپاره ولې چې علف او هر خواړه د دوی د ځمکې څخه دي، او اور ته خو هر حیوان ضرورت نه لري بلکې بعض وخت انسانان ای بعض د دوی و اور ته په شبانه روزو او وختو کې بلکې په میاشتو کې لکه په حدیث شریف کې د سیدتنا عائشة ﷺ څخه روایت دی چې موږ په وخت کې د حیات اکرم د نبي ﷺ چې موږ به په دوو میاشتو کې درې سپوږمۍ ولیدلې چې د علیه الصلوة والسلام د ازواجو مطهراتو رضی الله عنهن په نهه حجرو کې اصلاً به اور نه سو بل، راوي پوښتنه څني وکړه چې تاسي په څه شي دا دوې میاشتې ګزاره کول؟ دې جواب ورکړی "الاسودان" په دوو تورو شیانو مو ګزاره کول الماء والتمر.

(۷) اور محتاج دی و خاورو ته، ولې په هواکي خو اور نه بلېږي، او ځمکه و اور ته نه ده محتاجه (۷) اور محتاج دی و محل حامل ته او ځمکه محل حامل نه غواړي، نو د محتاج درجه کښته ده تر مستغني (۸) الله تعالی د ځمکې ذکر په قطر آن مجید کې ډېر کړی دی او اخبار یې کړی دی د منافعو د ځمکې، او ویلي یې دي چې ځمکه فراش او بساط ده د انسانانو الاحیاء والاموات، او خلګ یې امر کړي په تفکر په آیاتو او عجائبو ولم یذکر النار الا في معرض العقوبة ذکرها تذکرة لنا الآخرة ومتاع لمقوین (مسافرو لره)

**درويش وايي:** چي الى غير ذالک من دلائل فضيلة الارض على النار.

قَالَ فَاخْرُجْ مِنْهَا فَإِنَّكَ رَجِيمٌ ﴿۷۷﴾

ووېل الله ﷻ نو ووځه له دې جنت څخه (وقيل من السموات) نو بېشکه ته ترټلى يې. لانک لست فيک خير اصلاً.

وَإِنَّ عَلَيْكَ لَعْنَتِي إِلَى يَوْمِ الدِّينِ ﴿۷۸﴾

او په تحقيق پر تا لعنت دى زما تر ورځې پورې د جزاء.

**پوښتنه:** آيا پر يوم الجزاء لعنت د خداى ﷻ ختم کېږي پر شيطان او که څرنګه؟

**ځواب:** د لعنت سره په يوم الدين عذاب د جهنم ورکول کېږي.

قَالَ رَبِّ فَأَنْظِرْنِي إِلَى يَوْمِ يُبْعَثُونَ ﴿۷۹﴾

ووايي شيطان اى زما ربه ماته مهلت راکړه يعني فوراً مي دوږخ ته مه استوه تر هغه ورځې پورې چي انسانان يعني اولاد د آدم ژوندي کېږي يعني النفخة الثانية.

قَالَ فَإِنَّكَ مِنَ الْمُنْظَرِينَ ﴿۸۰﴾ إِلَى يَوْمِ الْوَقْتِ الْمَعْلُومِ ﴿۸۱﴾

خداى پاک ده ته ووېل: ته د منظرينو له ډلې څخه يې يعني تا ته مهلت دى الى يوم يبعثون، تر ورځې پورې د وقت معلوم چي نفخه اولى ده.

**پوښتنه:** شيطان خو مهلت غوښتى ؤ تر الى يوم يبعثون پورې چي ورځ د قيامت ده؟

**ځواب:** خداى ﷻ هغه سوال مسترد کړى بلکې په ځاى کې يې د هغه مهلت ورکړى تر نفخه اولى يعني په نفخه اولى سره به شيطان او دده اولاد ټول له مري.

**پوښتنه:** څه حکمت د خداى ﷻ دى چي شيطان ته يې مهلت ورکړى تر نفخه اولى پورې او سمدستي يې و دوږخ ته نه واستاوه؟

**ځواب:** حکمت د خداى ﷻ امتحان دى د انسانانو چي څوک زما د رسولانو متابعت کوي او څوک د شيطان وړغندى و غاړې ته اچوي. کريمه: لئلا يکون على الناس حجة بعد الرسل.

**سوال:** خداى ﷻ ته خو په علم ازلي سره کافران منکران او مؤمنان ټول له معلوم وه نو امتحان ته څه ضرورت ؤ؟

**ځواب**: علم ازلي د خدای ﷻ مناط د ثواب او عقاب نه دی کریمه: هلا ارسلت الینا رسولاً.

قَالَ فَبِعِزَّتِكَ لَأُغْوِيَنَّهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٨٢﴾

شیطان وویل ستا په عزت او سلطان دي زما قسم وي چي زه به ګمراه کوم یا په کفر یا په عصیان سره ټوله اولاد د آدم چي د "انی جاعل في الارض خلیفة" ځخه وفهمېدی لان الخلافة لیست مقصورة علی آدم بل الخلافة له ولاولاده الی یوم النفخة الاولی.

**پوهنه**: چي کلمه د فا. سببیه ده ولي مهلت د خدای ﷻ سبب سو د عزم دده پر اغوا، د بني آدم.

إِلَّا عِبَادَكَ مِنْهُمُ الْمُخْلَصِينَ ﴿٨٣﴾

مګر ستا هغه بندګان له ذریت ځخه د آدم چي تا خالص کړي دي لپاره د طاعت او دوی دي له ضلالته ځخه پاک، دا ترجمه پر تقدیر د قرائت د مخلصین په فتح د لام ده چي صیغه د اسم مفعول ده، او پر هغه قرائت چي په کسره د لام دی ترجمه یې داده چي دوی خالص ګرځولي دي خپل زړونه د خدای ﷻ لپاره.

قَالَ فَالْحَقُّ وَالْحَقَّ أَقُولُ ﴿٨٤﴾

بالرفع خبر د مبتدا، محذوفي دی ای انا الحق، او یا مبتداء ده خبر یې محذوف دی تقدیره الحق یمیني. فالحق من اسماء الله تعالی اقسم به (والحق اقول) زه حق خبره کوم چي هغه داده.

لَأَمْلَأَنَّ جَهَنَّمَ مِنْكَ وَمِمَّنْ تَبِعَكَ مِنْهُمْ أَجْمَعِينَ ﴿٨٥﴾

زه به ډکوم جهنم "منک" ای من جنسک لتناول جمیع الشیاطین، او د هغه کسانو ځخه چي ستا متابعت کوي له بني آدم ځخه یعني لا اترک من بني آدم المذکورین (اجمعین) تاکید دی، والمراد بمن تبعک ههنا الکفار.

قُلْ مَا أَسْأَلُكُمْ عَلَيْهِ مِنْ أَجْرٍ وَمَا أَنَا مِنَ الْمُتَكَلِّفِينَ ﴿٨٦﴾

ته ووایه کفارو ته د قریشو یا محمد (ﷺ) چي زه ستاسي ځخه نه غواړم پر قرآن یا پر تبلیغ او انذار مزدوري، چي په عربي جُعل ورته وایي.

**پوه سه**: چي کلمه د من لپاره د استغراق د نفي ده يعني هيڅ مزدوري او تنخوا مثل ما من رجل في الدار يعني يو نر نسته په سراى کي.

(وما انا من المتکلفين) او نه يم زه له تکلف کونکو څخه چي قرآن دي په ډېر تکليف د ځانه جوړوم او خداى ؐ ته يې نسبت کوم. ولي څلوېښت کاله ما ستاسي سره تېر کړه چي تاسي هم خبر ياست چي امي وم، حتى چي يوه کلمه مي نسواى نوشته کولاى، نه تاريخ دان وم چي تاسي به دا توهم وکړئ چي دا قصې د انبياؤ او د ماضيه چي دى کوي تاريخونه پسي ګوري يعني لا ادعى النبوة بلا حقيقة کريمه: ان هو الا وحي يوحى الآية.

اخرج البخاري عن عمر ﷺ نهينا عن التکلف يعني في ترجمة القرآن، البغوي روايت کړى دى له ابن مسعود ؓ څخه چي مسروق وايي دخلنا على ابن مسعود ؓ فقال يا ايها الناس من علم شيئًا فليقل به (که څوک علم پر يو امر ديني لري خو هغه دي وخلکو ته بيان کړي) ومن يم يعلم فليقل الله (او که څوک په مسئله ديني نه وي خبر نو د خپتې حکم دي نه ورکوي) بلکې داسي دي سائل ته ووايي والله اعلم، ابن مسعود ؓ دا آيت دليل وګرخاوه، قال الله تعالى لنبيه: قل ما اسئلکم من اجر وما انا من المتکلفين، ولي هغه څوک چي اجر او تنخواه نه غواړي نو څه ضرورت لري چي په خبرو تکلف کوي. لکه بعض جاهلان ملايان چي له مقتديانو څخه اجر او تنخوا غواړي. نو که مقتديان له ده څخه د يوې مسئلې پوښتنه وکړي که څه هم دى نه وي په خبر تکلفًا د خپتې يو حکم ورته بيان کړي، والله اعلم نه وايي دفعًا للعار.

إِنْ هُوَ إِلَّا ذِكْرٌ لِّلْعَالَمِينَ ﴿٨٧﴾

نه دى قرآن مګر پند او نصيحت دى د ټوله اهل عالم لپاره يعني من الانس والجن. ماته يې وحي سوې دي او زه يې تاسي ته رسوم.

وَلَتَعْلَمُنَّ نَبَأَهُ بَعْدَ حِينٍ ﴿٨٨﴾

تاسي به پوه سئ يا کفار مکة (لام جواب د قسم محذوف دى) په خبرو د قرآن من الوعد والوعيد وروسته تر يو وخت تېر بدو. قتادة ؒ وايي اى بعد الموت. عکرمة ؒ وايي يوم القيامة.

**درویش وايي:** چي بحمد الله وحسن توفيقه پای ته ورسېدی تفسير د سورة صٓ من التفسير الايوبي (۲۰) د ذی الحجة الحرام د يكشنبې په ورځ پر نهه بجې سنه (۱۴۳۱ هـ ق) وروسته به تفسير د سورة الزمر ان شاء الله تعالى هم په دغه تاريخ شروع سي.

**درویش وايي:** چي تفسير د سورة چي تمام ته ورسېږي يو عالم بار مي له زړه څخه پورته کېږي او يو عالم خوشحالي راته پيدا کېږي.

**فائده:** په اتصال کي د اخير د سورة صٓ په اول پوري د سورة الزمر داده چي په اخير د سورة صٓ خدای ﷻ وويل: ان هو الا ذكر للعالمين، او د سورة الزمر په اول کي يې وويل: تنزيل الكتاب من الله العزيز الحكيم نو كه بسم الله الرحمن الرحيم په منځ کي نه وای لم يتنافر الكلام ويتلاهم كل الالتيام، وايضاً ذكر الله سبحانه په اخير کي د سورة صٓ قصة خلق آدم ؑ، او ذكر في صدر سورة الزمر قصة خلق زوجه منه وخلق الناس منه ای آدم الى اخيره.

لا إله إلا الله محمد رسول الله

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا

سكين او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ

۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹



سُوْرَةُ الزُّمَرِ مَكِّيَّةٌ وَهِيَ خَمْسٌ وَّسَبْعُوْنَ اٰيَةً وَّثَمَانِيْ رُكُوْعَاتٍ بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ

تَنْزِيْلُ الْكِتٰبِ مِنَ اللّٰهِ الْعَزِيْزِ الْحَكِيْمِ ﴿۱﴾

(تنزيل الكتاب) خبر د مبتداء محذوفي دى اى هذا، يا مبتداء ده خبر يې دا قول د خداى ﷻ دى (من الله العزيز الحكيم) د خداى ﷻ له خوا دى چي هغه غالب دى يعني مانع د ماشاء څوک نسي کېداى، او په هر کار او صنع کي حکمت لري، يعني عبث د ده په صنع کي نسته.

**تنبيه:** که هذا مبتداء سي نو ظاهره دا ده چي مراد له کتاب څخه قرآن دى او که خبر د مبتداء سي نو ظاهره دا ده چي مراد له کتاب څخه دا سورت دى.

اِنَّآ اَنْزَلْنَآ اِلَيْكَ الْكِتٰبَ بِالْحَقِّ فَاعْبُدِ اللّٰهَ مُخْلِصًا لَّهُ الدِّيْنَ ﴿۲﴾

په تحقيق موږ تا ته نازل کړى دى کتاب يعني القرآن متلبسًا بالحق (او يا کلمه د با سببيه ده اى بسبب اثبات الحق واظهاره چي مراد ځني توحيد دى) ته عبادت کوه د خداى (ظاهر که څه هم خطاب دى وعليه الصلوة والسلام ته لکن مراد ځني ټوله خلک دي) په داسي حال کي چي خالص به وي عبادت ستا له شرک څخه او داغه رنګه له رياء څخه چي شرک خفي دى.

**پوښتنه:** انا انزلنا به تکرار د تنزيل نه وي؟

**ځواب:** لا! ولي چي اول لکه عنوان د کتاب دى او دوهم تفصيل د ما في القرآن دى.

**پوه سه:** چي مراد له دين څخه عبادت دى کما في الجلالين وغيره ... مصرع:

گر نباشد نيت خالص چه حاصل از عمل؟

اَلَا لِلّٰهِ الدِّيْنُ الْخَالِصُ ؕ

خبردار سه چي الله لره دى هغه عبادت چي له شرک جلي او خفي څخه خلاص وي، له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دى، ده وويل چي ما له عليه الصلوة والسلام څخه پوښتنه وکړه چي زه يو شى خيرات کوم يا يو عمل کوم مراد مي وجه الله وي او ثناء د خلکو، فقال عليه الصلوة والسلام والذي نفس محمد بيده لايقبل الله شيئًا (که صدقه وي که بل عمل وي) شورک فيه (چي شريک کړل سوى وي يعني د خداى ﷻ سره بل شى) ثم قرء رسول الله ﷺ الا لله الدين الخالص، وقال عليه

الصلوة والسلام قال الله سبحانه وتعالی من عمل عملاً اشرک فيه معي غيري (که چا يو عمل وکړی او شريک يې کړی په هغه عمل کې د ما سره بل څوک، نو هغه عمل ټول د هغه غير دی) وانا بریٔ منه وانا اغنی الشرکاء عن الشرک.

بيت:.... ز عمرو ای پسر چشم اجرت مدار .... چو در خانهٔ زيد باشي به کار

## وَالَّذِينَ اتَّخَذُوا مِن دُونِهِ أَوْلِيَاءَ

بعض مفسرين وايي چې مراد له موصول څخه مشرکان د مکې دي چې د بتانو عبادت يې کاوه لکن ظاهره داده چې مراد مطلق مشرکان دي که د بتانو عبادت کوي، يا ملائکه بنات الله بولي د هغه عبادت کوي او يا عيسیٰ ابن الله بولي د هغه عبادت کوي لکه نصاریٰ، يا عزير ابن الله بولي د هغه عبادت کوي لکه يهودان وغير ذالک (من دونه) ماسویٰ له خدای ﷻ څخه.

**پوه سه**: چې من دونه حال دی ای حال کونهم متجاوزين الله وعبادته (اولياء) دوستان او معبودان.

## مَا نَعْبُدُهُمْ إِلَّا لِيُقَرِّبُونَا إِلَى اللَّهِ زُلْفَىٰ

(ما نعبدهم) په تقدير د قول يعني قالوا ما نعبدهم (الا ليقربنا) استثناء مفرغ ده ای ما نعبدهم لشيئ من الاشياء الا ليقربنا يعني د غه معبودان موږ نږدې کړي ؤ خدای ﷻ ته (زلفیٰ) مصدر دی په معنی د قرب دی، نو محلاً منصوب دی مفعول مطلق دی د يقربنا نحو قعدت جلوساً، او البغوي ؒ وايي چې اسم دی قائم مقام المصدر چې په نحو کې يې اسم مصدر بولي، نحو سبحت بتشديد الباء سبحانًا ولې چې د سبحت اصل مصدر خو تسبيحًا دی او سبحانًا چې مصدر د مجرد دی د هغه مصدر په ځای کې دريدلی دی، حسين کاشفي ؒ وايي: درخواست کنند تا به شفاعت ايشان منزلت يابم آه.

## إِنَّ اللَّهَ يَحْكُمُ بَيْنَهُمْ فِي مَا هُمْ فِيهِ يَخْتَلِفُونَ

په تحقيق خدای (ﷻ) به فيصله وکړي يعني په ورځ د قيامت په منځ کې د دوی يعني المخلصين والکافرين العابدين لغير الله، دا جمله خبر ده د موصول يعني والذين آه او فيصله د خدای ﷻ داده چې محق به جنت ته داخل کړي او مبطل به دوږخ ته (فيما فيه يختلفون) ای الدين الذي اختلفوا فيه من التوحيد والاشراک.

إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَنْ هُوَ كَاذِبٌ كَفَّارٌ ۝

په تحقيق خداى (ﷻ) توفيق د هدايت نه ورکوي (لان امور الدين اختيارية لا اجبارية) وهغه چاته چي دروغ ګويه وي په نسبت د ولد و خداى ﷻ ته و بقوله الاصنام تشفع عند الله (کفار) صيغه د مبالغې ده چي ناشکره وي د نعمتو د خداى ؓ حتى معطي د نعمتو خداى ﷻ دى، او دوى يې نسبت و اصنامو ته کوي.

لَوْ أَرَادَ اللَّهُ أَنْ يَتَّخِذَ وَلَدًا لَاصْطَفَىٰ مِمَّا يَخْلُقُ مَا يَشَاءُ

که چېري اراده د خداى ﷻ وي چي ځان ته ولد پيدا کړي لکه دوى چي ګمان باطل کوي چي ملائکه بنات الله دي يا عيسىٰ ابن الله دي يا عزير ابن الله دى، ده به مختاره کړى واى له ما يخلق څخه چي د خداى ﷻ اراده واى.

**بوه سه:** چي عائد و موصول ته محذوف دى اى ما يشائه، او موصول سره د صله مفعول دى د اصطفىٰ.

**فائده:** لو اراد الله الى اخيره استيناف دى لپاره د تحقيق د حق او ابطال القول بان الملائكة بنات الله، و عيسىٰ ابنه، تعالى الله عن ذالک علوًا کبيرًا، په بيان سره د اتخاذ الولد في حقه سبحانه وتعالى يعني مطلقًا ليندرج فيه ما يقولون اندراجًا اوليًا، حاصل د معنى د آيت دادى لو اراد الله سبحانه وتعالى اتخاذ الولد لامتنعت تلک الارادة لتعلقها بالممتنع اعنى الاتخاذ لکن لايجوز للبارى تعالى ارادة ممتنعة، ولي چي اراده د هغه په هغه شي پوري تعلق نسي چي هغه ممکن وي وجود او عدم يې برابر وي تا چي په تعلق د ارادة الهيه يوه ترجيح پيدا کړي اصل الکلام داسي ؤ، لو اتخذ الله الولد لامتنع ذالک لاستلزامه ما ينافي الالوهية. ولي ولد چي څوک غواړي د دې لپاره يې غواړي چي زما به معاون سي عند ضعفي وکبر سني، او يا به زما قائمقام او وارث وي عند موتي او دا دواړه شق محال دي په خداى ﷻ کي لعدم العجز والموت في حقه تعالى لانه الواجب الوجود الغني عن الاحتياج، وروسته يې اصل جواب چي لامتنع ذالک ؤ حذف کړى او پر ځاى يې دليل د هغه راوړى فافهم غاية الفهم.

سُبْحَانَهُ ۖ هُوَ اللَّهُ الْوَاحِدُ الْقَهَّارُ ۝

پاک دى خداى (ﷻ) له اتخاذ الولد څخه، خداى (ﷻ) يو دى په ذات او په

صفاتو کي لعدم وجوب الوجود لغیره کما ثبت في محله، کریمه: لو کان فیهما (ای السماء والارض) آلهة الا الله لفسدتا، پوه سه! چي دې ته برهان تمانع وایي چي تفصیل یې په کتابو کي د عقائدو دی، او معبودیت چي تابع د وجوب الوجود دی مستلزم دی امتناع المماثلة و المشارکة فاني یکون له ولد اذ الولد لایکون الا من جنس الوالد چي د بعض اجزاؤ څخه د والد به جلا سوی وي وذالک ممتنع علی الله عزوجل (القهار) او قهاریت مطلقه منافي دی له مشارکت څخه او د زوال څخه چي ولد ته حاجت پیدا سي، دا دلیل دی د سابق بیان د نفي د ولد له خدای ﷻ څخه.

**خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ بِالْحَقِّ ۚ يُكَوِّرُ الَّيْلَ عَلَى النَّهَارِ وَيُكَوِّرُ النَّهَارَ عَلَى الَّيْلِ**

پیدا کړي دي خدای ﷻ اسمانونه او مځکه متلبس په حق سره یعني عبث نه دي بل لیکون دلیلاً علی الصانع المطلق، پیچي یعني پټوي خدای ؒ شپه په ورځ کي یعني شپه چي راسي ورځ پټه سي، او پیچي ورځ پر شپه یعني ورځ چي راسي شپه ورکه سي لکه په لباس سره چي ملبوس پټېږي، یا لکه ولونه د لنګوټې چي یو پر اچول کېږي هغه بل پټوي، او الحسن و کلبي ؒ وایي چي معنی د آیت داده چي ساعتونه د شپې پر ورځ وراچوي یعني شپه لنډه سي ورځ اوږده سي لکه په دوبي کي او ساعتونه د ورځې په شپه کي بالا کي چي ورځ لنډه او شپه اوږده سي لکه په ژمي کي.

**وَسَخَّرَ الشَّمْسَ وَالْقَمَرَ ۖ كُلٌّ يَّجْرِيْ لِاَجَلٍ مُّسَمًّى ۗ**

او مسخر یې ګرځولي دي لمر او سپوږمۍ تر یو وخت معین پوري چي ورځ د قیامت ده یعني تر هغه وخته پوري لمر او سپوږمۍ په خپل فلک کي روان یې ګرځولي دي.

**پوښتنه:** تر له ستوري خو داسي دي لکه لمر او سپوږمۍ د هغو بیان خدای پاک نه و کړی؟

**ځواب:** د لمر او سپوږمۍ رفتار په خپل فلک کي مځکي والو ته معلوم او محسوس دی بخلاف سائر الکواکب، او بل جواب دادی چي مځکي وال لمر او سپوږمۍ ته دنیوي او دیني احتیاجات لري بخلاف سائر الکواکب کما لایخفی.

**اَلَا هُوَ الْعَزِيْزُ الْغَفَّارُ ۝**

آګاه او سئ چي خدای ؒ غالب دی او قادر دی پر هر شي، لامانع لخلقه

وارادته، او ډېر بخښونکی دی، ولي چي دروازه د رزق يې پر هر چا نه ده تړلې.

بيت: ... اديم زمين سفرهٔ عام اوست.... بدين خوان يغما چه ظالم چه دوست

او کافرانو ته يې مهلت ورکړی دی، او عاجل عذاب يې نه دی پر مسلط کړی او د رزق دروازه يې نه ده پر بنده کړې.

خَلَقَكُم مِّن نَّفْسٍ وَاحِدَةٍ ثُمَّ جَعَلَ مِنْهَا زَوْجَهَا

تاسي يې پيدا کړي ياست له يوه سړي څخه (چي ابو البشر آدم عليه السلام وُ، چي دې نفس نه مور درلوده او نه يې پلار، بلکې له خټو څخه يې جوړ کړی او روح يې پکښې داخل کړی، فصار انسانًا بعد ما کان جمادًا) وروسته يې پيدا کړه دده څخه نفس کور ودانه دده، يعني حوا عليها السلام.

**پوه سه:** چي دا بل دليل دی په عالم سفلي کي پر قدرت د خدای جل جلاله، او عطف يې په ثم سره وکړی له دې سببه چي په مابين کي د معطوف او معطوف عليه يعني خلقکم او د معطوف يعني جعل منها آه ډېر فرق سته، ولي چي معطوف عليه خو عادت مستمره دی بخلاف المعطوف اعني خلق الانثى من الرجل الذي هو زوج لها، هغه خلق د حوا رضي الله عنها داسي وُ چي پر آدم عليه السلام خدای پاک خوب غالب کړی او د چپه طرف د آدم يعني د پای يوه پوښتۍ يې څنې وکښله ماده د خلق د حوا رضي الله عنها يې وګرځول، لهذا عليه الصلوة والسلام د مايني په باره کي داسي ارشاد فرمايلی دی: د ماينو سره ښه کوئ ددوی بد اخلاق زهمت برداشتوئ، ولي دوی له پوښتۍ څخه پيدا کړل سوي دي، نو که څوک غواړي چي زه به پوښتۍ سيده کړمه که يې زور ورسره وکړی پوښتۍ حتمًا ماتېږي يعني که مېړه غواړي چي زما ماينه من کل الوجوه پر خپل طبيعت را اړوم، نو اخير نتيجه به يې دا وي چي طلاق به ورکوي، قال عليه السلام الا فاستوصوا بالنساء خيرًا.

وَأَنزَلَ لَكُم مِّنَ الْأَنْعَامِ ثَمَانِيَةَ أَزْوَاجٍ

او نازل کړي يې دي ستاسي لپاره له انعامو څخه، د انعام اته جوته يعني ذکر وانثى من الابل، و ذکر و انثى من البقر، وذکر و انثى د پسو او ذکر و انثى د بزو.

**پوښتنه:** انعام خو له اسمانه نه دي نازل سوي؟

**ځواب:** د نزول معنی دلته داده قضیٰ وقسم لکم، ولي قضایا او تقسیمات د خدای ﷻ په نزول د اسمان له خوا موصوف کېدای سي کما کتب في اللوح المحفوظ الذي هو في السماء، او یا معنی داده چي اسباب د انعام د اسمان له خوا څخه دي لکه بارانونه یا شعاع د ستورو لکه په هغه آیت کي قد نزلنا علیکم لباسًا الخ او سره ددې کالي خو له اسمانو څخه نه دي نازل سوي بلکې د اسمانه بارانونه نازل سوه چي سبب د پنبه ؤ او د وړیو د پسو وګرځېدل واللباس منهما.

يَخۡلُقُكُمۡ فِي بُطُونِ أُمَّهَٰتِكُمۡ خَلۡقٗا مِّنۢ بَعۡدِ خَلۡقٖ فِي ظُلُمَٰتٖ ثَلَٰثٖۚ

(یخلقکم) دا جمله مبینه ده د ماقبل ای یخلق الانس والانعام په نسو یعني په رحمو کي د میندو یو خلق وروسته تر بل خلق (یعني نطفه بیا علقه بیا مضغه بیا هډوکي بیا غوښي پر هوا رول بیا روح پکښي اچول) په درو تارکیو کي چي یو ظلمت د نس دی بل ظلمت د رحم دی بل ظلمت د بچه دانۍ دی.

**سوال:** ضمیر د کم خو په ذوی العقول کي استعمالېږي، انعام خو ذوی العقول نه دی؟

**ځواب:** په دې کي تغلیب دی د ذوی العقول لپاره علی غیرهم.

ذَٰلِكُمُ ٱللَّهُ رَبُّكُمۡ لَهُ ٱلۡمُلۡكُۖ لَآ إِلَٰهَ إِلَّا هُوَۖ فَأَنَّىٰ تُصۡرَفُونَ ۝٦

دغه افعال چي کړي دي الله تبارک وتعالی چي ستاسي تربیه کوونکی دی، ده لره دي ملک او سلطنت، نسته معبود بالحق بېله ده، ولي چي په صانعیت او خالقیت کي څوک دده شریک نه دی، نو په استحقاق کي د عبادت هم شریک څوک نه لري (فانی تصرفون) یعني پر کومه خوا تاسي مصروف سواست و عبادت ته د غیر الله او د حق لار مو پرېښول وروسته تر بیانا تو شافیه ؤ چي دال پر وحدت د خدای ﷻ دي.

**بوه سه:** چي ذالکم مبتداء ده لفظ الله یې خبر دی "ربکم" خبر ثاني دی "الملک" خبر ثالث دی "الاهو" یې خبر رابع دی.

**بوه سه:** چي کلمه د استفهام یعني انا لپاره د استبعاد ده او د تعجب ده.

إِن تَكۡفُرُواْ فَإِنَّ ٱللَّهَ غَنِيٌّ عَنكُمۡۖ

که تاسي کفر او شرک مختاره کړی نو خدای غني دی ستاسي له ایمان څخه (بحذف المضاف) ولي چي ستاسي په ایمان کي د خدای ﷻ کومه نفع نسته،

بلکې نفع د ایمان و تاسي ته راجع ده او ضرر د کفر ستاسي هم وتاسي ته راجع دی د خدای ﷻ کوم ضرر نشته.

**فائده:** ان تکفروا شرط دی جزاء یې محذوفه ده او دلیل د جزاء یې په ځای کې د جزاء درولی دی، والتقدیر ان تکفروا فان وبال کفرکم راجع الیکم لا الی الله تعالی (دا جزاء محذوفه ده) فان الله غني عن ایمانکم، دا دلیل د جزاء محذوفي دی. و دلیل ذالک انکم تحتاجون الیه تعالی لتضررکم بالکفر وانتفاعکم بالایمان.

## وَلَا يَرْضٰى لِعِبَادِهِ الْكُفْرَ

او راضي نه دی د بندګانو لپاره په کفر سره که څه هم اراده د خدای ﷻ تعلق پوري لري ای عدم الرضاء بکفر عباده، لپاره د منفعت د دوی ده، او لپاره د دفع د ضرر له دوی څخه رحمةً علیهم لا لتضرره تعالی.

**پوهسه:** چي لا یرضٰی آه، عطف دی پر شرطیه یعني ان تکفروا آه.

**فائده:** ددې آیت مفهوم دادی چي کفر مبغوض د خدای ﷻ دی وان کان بارادته وهو قول السلف وعلیه اجماع اهل السنة والجماعة خلافًا للمعتزلة، دوی وایي چي کفر د کافر او کذا عصیان د عاصي په اراده د خدای ﷻ نه ده لان الکفر والعصیان قبیح، دوی وایي د قبیح اراده قبیح ده ولا ینسب الیه تعالی القبح اهل السنة والجماعة وایي قبیح خو کفر او عصیان دی لا ارادته، وهذا معنی قولنا والقدر خیره وشره من الله تعالی... بیت:

تړوله اندازه د خیر او شر بوله له خدایه څخه
کله پیښیږي نیک او بد له خپلي رایه څخه

**درویش وایي:** چي د مبغوضیت د یو کار او اراده د هغه کار ژوندی مثال یې په افعالو کې د عبادو هم سته مثلاً: د یو غني سړي زوی پلار ته ووایي چي ماته پاسپورټ راوکړه زه امریکا ته ځم، پلار یې ورته ووایي چي زما د امریکا لپاره ستا سفر نه دی خوښ چي د کفر او ازادی ملک دی په ناروا به مبتلا سې، خو بیا هم زوی یې اصرار پر وکړي، نو پلار یې د امریکا پاسپورټ ور جوړ کړي، نو د غه د پاسورټ جوړیدل په اراده د پلار دي اما خوښه یې نه ده.

**درویش وایي:** ویدل علیه مذهب اهل السنة والجماعة قوله تعالی: ومن یرد

الله ان يهديه يشرح صدره للاسلام اى يوفقه ومن يرد الله ان يضله اى باختيار الضلال يجعل صدره ضيقًا حرجًا (يعني لايخلق فيه الايمان بالامر التكويني)

**درويش وايي:** چي دا مسئله د قدر روح المعاني په ورقو ورقو صفحې په ډکي کړي دي لکه دده چي عادت دی، لکن د تفسير ايوبي سره دومره تفصيل مناسب نه دی لحال المستفيدين منه فافهم.

## وَإِنْ تَشْكُرُوا يَرْضَهُ لَكُمْ

که تاسي شکر د خدای (ﷻ) ووایاست يعني بالايمان والطاعة (يرضه لكم) ومعناه يثيبكم به فان الرضٰى يستلزم الاثابة خصوصًا من رب كريم.

**فائده:** الف د يرضٰى په سبب د جزم د ان شرطيه يې حذف کړی.

## وَلَا تَزِرُ وَازِرَةٌ وِزْرَ أُخْرَىٰ

نه سي اخستلای يو نفس ګناه د بل نفس، نو نفس چونکه مؤنث سماعي ؤ ځکه نو فقير نفس ورسره مقدر کړی.

**پوښتنه:** په حديث شريف کي راغلي دي چي عليه الصلوة والسلام وايي: لاتقتل نفس ظلمًا، مګر قاتل د هابيل د قابيل له خوا ځکه چي دواړه د آدم ﷺ زامن وه ورسره شريک دي. نو دا پر قابيل د نورو خلکو قتل ظلمًا ګناه نه وارديږي؟

**ځواب:** په هغه حديث کي دده د سوال دفع راغلې ده بقوله عليه الصلوة والسلام لانه اول (يعني قابيل) اول من سن القتل ظلمًا يعني دا ګناه د نورو قتلو ظلمًا چي پر قابيل په سبب دده چي قابيل اول سړی ؤ چي طريقه د قتل ظلمًا يې وضع کړه كما جاء في الحديث الصحيح عليه الصلوة والسلام فرمايي: من سن في الاسلام سنة حسنة فله اجرها واجر من عمل بها الى يوم القيامة من غير ان ينقص من اجورهم شيئًا ومن وضع في الاسلام سنة سيئة (كالروافض والمعتزلة والجبرية وغيرهم من اهل الاهواء) فله وزرها و وزر من عمل بها من غير ان ينقص من اوزارهم شيئًا.

**درويش وايي:** چي دده په رڼا کي هغه سوال هم دفع سو چي بعض د کفارو د مکې خلک منع کول له ايمان ځخه پر عليه الصلوة والسلام او پر قرآن باندي چي هغه بل سړي به دده وی په دفع او منع سره عمل هم وکړی و هغو مانعانو ته جزاء

مضاعف ورکول کبرې، وجه الدفع چې يو عذاب او جزاء د مانع د ضلال او کفر جزاء ده او بل جزاء د اضلال يعني ده په منع سره د هغه ايمان نه راوړي.

**فائده:** په دې آيت کې اشاره و دې ته ده وبال د کفر ستاسي يا اهل مکة وتاسي ته راجع دی لا الى غيرکم فلا يتضرر به النبي ﷺ لان ما عليه انما هو الانذار وقد فعل نو دی چې پر ايمان ستاسي حرص لري لنفعکم شفقة عليکم.

**ثُمَّ إِلَىٰ رَبِّكُم مَّرْجِعُكُمْ فَيُنَبِّئُكُم بِمَا كُنتُمْ تَعْمَلُونَ ۚ إِنَّهُ عَلِيمٌ بِذَاتِ الصُّدُورِ ﴿٧﴾**

بيا ستاسي و خدای ﷻ ته رجوع ده يعني په ورځ د قيامت (نو مرجع مصدر ميمي دی) نو خدای ﷻ به تاسي خبر کړي په عملو ستاسي (نو کلمه د ما مصدريه ده) او يا په هغو عملو چې تاسي يې عمل کاوه (نو کلمه د ما موصوله ده والعائد الى الموصول محذوف اى ما تعملونه فافهم)

(انه عليم بذات الصدور) خدای ﷻ به ترا عالم دی بذات الصدور اى بما في الصدور فضلاً عن الاعمال الظارية. مطلب د دې آيت دا دی چې خدای ﷻ به تاسي ته جزاء در کړي که ظاهري عملونه وه که باطني.

**وَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ ضُرٌّ دَعَا رَبَّهُ مُنِيبًا إِلَيْهِ**

او کله چې ورسېږي و انسان ته يو ادنی ضرر په نفس کې يا په مال کې، مونږ ادنی وو ايه چې لفظ مس پر دې دلالت کوي (له دې انسان څخه مراد کافر دی بقرينة مابعدها) دی خواست کوي و رب ته د ده، چې ضمير راجع و خدای ج ته دی او استغاثه پر خدای ﷻ کوي.

**ثُمَّ إِذَا خَوَّلَهُ نِعْمَةً مِّنْهُ**

وروسته چې خدای ج و ده ته ور کړي د ده مطلوب، او دفع د ضرر ځني وکړي، او بعض مفسرين يې ترجمه داسي کوي جعله ذا حشم و اتباع يعني د دفع د ضرر علاوه لوی نعمتونه ور کړي دي.

**پوهه:** چې پر تقدير ثاني تنکير د نعمة لپاره د تعظيم دی، او نعمت که خوّله په معنی د اعطاء سي مفعول ثاني د خوّله دی چې اول مفعول يې ضمير د لهٗ او که په دوهمه معنی سي نو نعمة منه مفعول له دی.

## نَسِيَ مَا كَانَ يَدْعُوٓا إِلَيْهِ

**پوه سه:** چي د اليه ضمير راجع دی و خدای ج ته يعني هېر به يې سي هغه څوک چي ده خواست ورته کاوه، نو پر دې تقدير کلمه د ما په معنی د من ده على المشهور وانما قلنا ذالک لان بعض من النحات وايي چي کلمه د من د ذوی العلم لپاره د او کلمه د ما عامه ده کما في قوله تعالی وما خلق الذكر والانثى وغير ذالک.

## مِن قَبْلُ وَجَعَلَ لِلَّهِ أَندَادًا

ای قبل النعمة او خدای ﷻ لره وګرځوي شريکان کما کان قبل مس الضر.

**درويش وايي:** چي دا قرينه پر دې ده چي مراد له انسان څخه کافر دی، ولي چي مسلمان خو داسي نه دی چي خدای ﷻ لره انداد او شريکان وايي بلکې شکر د دفع الضر او د نعمت د خدای ﷻ وايي.

مثنوي معنوي مولانا جلال الدين الرومي قدس سره داسي ښه خواږه ابيات په باره کي د کافر مبتلى بالبلاء ويلي دي:

آن ندامت از نتيجهٔ رنج بود ..... نی ز عقل روشن چون گنج بود

چونکه شد رنج آن ندامت شد عدم ..... می نیرزد خاک آن توبه ندم

میکند او توبه و پیر خرد ..... بانگ لو ردو العادو امیزند

## لِّيُضِلَّ عَن سَبِيلِهِۦ

د دې لپاره چي خلګ ګمراهان کړي له لاري څخه د خدای ﷻ چي توحيد دی.

**سوال:** د دغه کافر خو دده په قصه کي دا غرض نه ؤ چي خلګ ګمراهان کړي بل غاية امره الرجوع الى الشرک، نو د لام په دې آيت کي معنی څه ده ولي چي لام في امثاله خو لپاره د غاية والغرض وي؟

**ځواب:** چونکه پر فعل د کافر چي رجوع يې و کفر ته وړه اضلال مرتب کېدی کما کان في الابتداء که څه هم دلته خو غرض دده نه ؤ نو دا اضلال يې مشابه وګرځاوه د علت غايي سره کما في قوله تعالى: فالتقطه (ای موسیٰ ؑ) آل فرعون ليكن (ای موسیٰ ؑ) لهم عدوًا و حزنًا، نو فرعون خو يې د دې غرض لپاره ژوندی نه پرېښو يعني موسیٰ ؑ چي زموږ دی دښمن وګرځېدی، دې لام ته لام غرض نه

وايي بلکې لام عاقبت وايي و کما في المقولة المشهورة لدوا للموت وابنوا للخراب، چې دې مقولې بعض کتابو دې نسبت و حضرت علي رضي الله عنه ته کړی دی، وان لم يثبت في حديث صحيح.

قُلْ تَمَتَّعْ بِكُفْرِكَ قَلِيلًا ۖ إِنَّكَ مِنْ أَصْحَابِ النَّارِ ﴿٨﴾

ووایه یا محمد ودغه کافر ته، ته فائده اخله پر خپل کفر سره لږ وخت د دنیا. یعني الی اجلک، په تحقیق ته له اصحابو څخه د اورېې یعني دوږخ دا جمله استیناف د علت ده د تمتع قلیل لپاره.

**فائده:** دا امر ته امر تهدید وايي او په دې کې نا امیدي د کافرانو لپاره ده تمتع في الآخرة کې.

أَمَّنْ هُوَ قَانِتٌ آنَاءَ اللَّيْلِ سَاجِدًا وَقَائِمًا

آیا هغه څوک چې قائم وي په وظائفو سره د طاعاتو، د ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی چې قنوت قرائت دی د قرآن، یعني په لمانځه کې وطول القیام وتقدیر الکلام امن هو قانت الله کمن جعل له اندادًا (اناء الیل) په ساعاتو کې د شپې (ساجدًا وقائمًا) دواړه لفظه حال دي له ضمیر څخه د قانت، یعني پر لمانځه ولاړ وي سجده او قیام تعبیر دی له کل څخه چې لمونځ دی په دوه اهم جزء سره.

**پوهه:** چې اناء جمع د انی بکسر الهمزة وفتحها مع فتح النون بمعنی الساعة.

يَحْذَرُ الْآخِرَةَ وَيَرْجُو رَحْمَةَ رَبِّهِ

او بیا هم له آخرت څخه بېرېږي یعني من عذابه تعالی په دې سبب چې زما لمونځ له جانب څخه د خدای جل جلاله قاصر وي... بیت:

بنده همان به که ز تقصیر خویش .... عذر بدرگاه خدا آورد
ورنه سزاء وار خداوندیش .... کس نتواند که بجا آورد

(ویرجوا رحمة ربه) او امید و رحمت ته د خدای جل جلاله هم لري، حاصل دا چې پوره اعتماد پر خپل عمل نه لري، بلکې په مابین کې د خوف او رجاء وي کما هو شان الصلحاء، او په خوف کې تر حد تجاوز نه کوي چې ایاس ته مفضي نه سي، کریمه: لاییئس من روح الله (ای رحمته) الا القوم الکافرون، او داسې هم باید نه وي چې له

عذابه بېغمه وي، کريمه: لايأمن مکر الله (اى عذابه) الا القوم الخاسرون.....دو بيت:

گرچه داری طاعتی از هیبتش ایمن مباش
ور گنه داری زفیض رحمتش دل بر مدار
نیک ترسان شو که قهر اوست بیرون از قیاس
باش پس خوشدل که لطف اوست افزون از شمار

**فائده:** دا دوې جملې واقع دي په ځای کي د حال.

**پوه سه:** چي په دې آيت کي تحريض يعني باعثه کول دي پر قيام الليل يعني التهجد، له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی: من احب ان يهون الله عليه الموقف يوم القيامة فليزه الله في سواد الليل ساجدًا وقائمًا.

ترجمه: که د چا خوښه وي چي اسان کړي خدای جل جلاله پر ده دريدل خدای ته په ورځ د قيامت نو دی دي خدای ته وويني په تاريکه کي د شپې په سجده او قيام کي يعني د شپې دي د تهجد لمونځ کوي.

**فائده:** علماء د امت مرحومه پر دې متفق دي چي افضل د نوافلو د تهجد لمونځ دی دوی دا هم وايي چي که يو سړی د تهجد لپاره وخت تاکلی وي مثلاً چي زه به د شپې نيم ساعت لمونځ کوم، نو په رکعتو کي دي اوږده سورتونه وايي تاچي طول القيام راسي.

قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ

ووايه ته (يا محمد ﷺ) خلکو ته چي آيا برابر دي (الاستفهام للانکار يعني نه دي سره برابر) هغه کسان چي خدای جل جلاله پېژني متصف په صفاتو سره د جلال، نو يې له عذاب څخه بېرېږي، او په صفاتو سره د جمال نو اميد يې و رحمت ته د خدای جل جلاله وي، نتيجه دا سي چي طاعات د خدای جل جلاله کوي او د معاصيو څخه پرهيز کوي، او هغه کسان چي خدای جل جلاله نه پېژني لکه چي ذکر سول نو نه طاعت د خدای جل جلاله کوي او نه له عصيان څخه پرهيز کوي.

إِنَّمَا يَتَذَكَّرُ أُولُو الْأَلْبَابِ ﴿٩﴾

پند اخلي په مواعظو د قرآن هغه څوک چي لرونکي د عقلو وي يعني عقول سليمه.

**پوه سه**: چي الالباب جمع د لب ده چي مغز ته د مېوې وايي لکه مغز د بادام مغز د جوزو وهکذا، نو د انسان پوستکي او کالي يې قشر القشر دي لکه بادام چي د وه پوستکي لري او يو مغز، کما هو المعلوم بالتجربة.

په صحيح حديث کي راغلي دي يشفع يوم القيامة ثلاث (۱) الانبياء (۲) العلماء (مراد ځني هغه علماء دي چي په خپل علم يې عمل کړی وي) والله اعلم.

مصرع:..... وگرنه چه آيد زمغز پوست

(۳) الشهداء اى لاعلاء كلمة الله تعالى فقط.

**فائده**: شرف د علم لوړ دی تر شرف د نسب، ولذا قيل، ان عائشة رضي الله عنها افضل من فاطمة الزهراء رضي الله عنها لان النبي ﷺ قال خذوا ثلثى دينكم من عائشة رضي الله عنها، واليه اشار صاحب الامالي ...... بيت:

وصديقة الرجحان فاعلم ..... على الزهراء في بعض الخصال

اى العلم واما في كثرة الخصال المحمودة فالرجحان للزهراء رضي الله عنها لقوله عليه الصلوة والسلام كمل من الرجال كثير (يعني في غير النبوة ولم يكمل من النساء الا مريم بنت عمران وآسية امرئة فرعون وخديجة بنت خويلد يعني زوج النبي ﷺ يعني الزوج الاولى، ومنها اولاد النبي ﷺ الذكور والاناث غير فانه من مارية القبطية.

(۴) وفاطمة بنت محمد ﷺ ورضى الله تعالى عنهن، وفي الحديث قال رسول الله ﷺ اعوذ بالله من علم لاينفع (اى لايعمل به)

**قُلْ يٰعِبَادِ الَّذِيْنَ اٰمَنُوا اتَّقُوْا رَبَّكُمْ ۚ لِلَّذِيْنَ اَحْسَنُوْا**

ته ووايه يا محمد (ﷺ) اى زما بندګانو (د انداء لپاره د اظهار د شرف د مؤمنانو ده، کسره د دال قائمقام د يا اضافت ده) چي ايمان مو راوړی دی، وېرېږئ له رب څخه خپل يعني له عذاب څخه د هغه يعني په امر او نهي د خدای ج عمل کوئ.

**پوه سه**: چي که څه هم ايمان مانع د خلود في النار دی لکن په صورت کي د عدم تقولى يعني په ترک د مأمور به يا په کولو د منهي عنه احتمال د دخول د دوزخ سته، نو د دغه احتمال د دفع لپاره خدای ﷻ امر په تقولى وکړی، او هغو کسانو لره چي عمل يې د احسان پر طريقه کړی وي يعني په خشوع او خضوع کما جاء في الحديث الذي رواه البخاري ومسلم عن عمر رضي الله عنه چي عليه الصلوة والسلام په

جواب كي د سائل "ما الاحسان" داسي وويل: الاحسان ان تعبد ربک کانک تراه فان لم تكن تراه فانه يراك (يعني يعلم بحالک ظاهرًا وباطنًا)

فِىْ هٰذِهِ الدُّنْيَا حَسَنَةٌ

په دغه ناقص ژوند كي، الظرف متعلق بقوله احسنوا (حسنة) ښه ځای سته په آخرت كي يعني الجنة.

**پوه سه:** چي حسنة مبتداء ده خبر يې الذين امنوا دى.

**فائده:** په سبب د تقديم د خبر ابتدائيه د نكرة صحيح دى نحو في الدار رجل كما في كتب النحو، او مجموع جمله تعليل ده د اتقوا ربكم.

وَاَرْضُ اللّٰهِ وَاسِعَةٌ

د خداى ﷻ مځكه فراخه ده يعني كه يو اى دي د خداى ﷻ طاعت نه سواى كولاى په سبب د مزاحمت د كافرانو نو مځكه د خداى ﷻ فراخه ده بل اى ته هجرت وكړهؤ ولهذا قال ابن عباس رضي الله عنه في تفسير هذه الآية ارتحلوا من مكة، لكه مؤمنانو چي په مكه مكرمه كي د خداى ﷻ طاعت په ازاده توګه نسواى كولاى عليه الصلوة والسلام دوى ته د خداى ﷻ په امر د هجرت اجازه وركړه چي بعض مؤمنان مديني منورې ته ولاړل چي هورې يې د انصارو په بركت خپل ازاد عبادت كولاى سواى، او بعض مؤمنان حبشې ته ولاړل، اخير الامر انحضرت ﷺ چي سيدنا ابوبكر رضي الله عنه هم ورسره ملګرى ؤ مديني منورې ته يې هجرت وكړى، مطلب دا چي د جار سوء څخه چي تا له عبادت څخه منع كوي هجرت لازم دى.

اِنَّمَا يُوَفَّى الصّٰبِرُوْنَ اَجْرَهُمْ بِغَيْرِ حِسَابٍ ﴿١٠﴾

په تحقيق وركول كېږي صبر كوونكو ته ثواب د دوى بېله حسابه.

**پوه سه:** چي مراد له صابرانو څخه په دې آيت كي هغه كسان دي چي صبر يې كړى وي پر خپل دين او دين د لاسه ورنه كړي په سبب د ازار د كافرانو، او يا معنى دا ده چي صبر يې كړى پر هجرت د خپل محبوب وطن څخه او پر مفارقت د قريبانو په وطن كي، بعض مفسرين وايي چي دا آيت په شان كي د جعفر بن ابى طالب رضي الله عنه او د ده د ملګرو مسلمانانو چي تعداد يې تخمينًا اتيا (٨٠) كسو ته

رسېدلی نازل سوی دی چي هجرت يې حبشې ته وکړی، چي د هغه ملک بادشاه اصحمة النجاشي چي په هغه وخت کي دی د نصارٰی ؤ په دین ؤ، لکن په سلطنت کي دده د هر دین ازادي وه چي هغه اصحمة النجاشي بیا مسلمان سو په دعوت د جعفر بن ابی طالب رضي الله عنه خو د علیه الصلوة والسلام سره يې ملاقات په برخه نه سو، لکن اصحمة چي وفات سو علیه الصلوة والسلام له مدینې منورې څخه غائبانه د جنازې لمونځ ورکړی، کما جاء في الاحادیث الصحیحة في مقامه.

**درویش وایي:** چي شان د نزول د آیت که څه هم جعفر بن ابی طالب او دده ملګري رضي الله عنهم دي، لکن لفظ د آیت عام دی چي دوی ته هم او نورو کسانو ته هم شامل دی چي پر بلا او مشقت د طاعت يې صبر کړی وي او ځان يې له معصیت څخه ساتلی وي، له انس بن مالک رضي الله عنه څخه روایت دی چي علیه الصلوة والسلام وویل چي ترازو ګان په ورځ د قیامت ودرول سي، لمونځ کوونکو کسانو ته د دوی ثوابونه ورکړل سي، او اهل صدقه والاؤ ته هم خپل د صدقاتو ثواب او اجر ورکړل سي وهکذا اهل الحج ته هم خپل ثوابونه ورکړل سي، نو اهل بلاء في الدين چي راسي هغو ته ترازو نه اېښوول کېږي او عمل نامه هم نه ورکول کېږي، بلکې پر هغو ثوابونه توییږي بغیر حساب حتی چي هغه کسان چي ژوند د دنیا يې په عافیت کي تېر کړی وي او بلاء في الدين يې نه وي لیدلي تمنٰی ددې به وکړي چي کاشکي زمونږ په دنیا کي داسي حال وای چي غوښي په غیچیو خلکو را څخه پرې کولای، یعني چي د اهل البلاء حال وویني غبطه يې وسي، وذالک قوله تعالی: انما یؤتی الصابرون اجرهم بغیر حساب، وفي حدیث صحیح علیه الصلوة والسلام وایي: من فر بدینه وجبت له الجنة.

**فائده:** فر بدینه يې ووایه ددې لپاره چي بل غرض نه پکښې لري لکه مهاجر د ام قیس، بخاري روایت کړی دی چي علیه الصلوة والسلام وویل: انما الاعمال بالنیات وانما لامرء ما نوی فمن کان هجرته الی الله ورسوله فهجرته الی الله والی رسوله ومن کان هجرته الی دنیا یصیبها او الی امرئة ینکحها فهجرته الی ما هاجر الیه انتهی (صحیح بخاري ص ١)

قُلْ إِنِّيٓ أُمِرْتُ أَنْ أَعْبُدَ ٱللَّهَ مُخْلِصًا لَّهُ ٱلدِّينَ ﴿١١﴾ وَأُمِرْتُ لِأَنْ أَكُونَ أَوَّلَ ٱلْمُسْلِمِينَ ﴿١٢﴾

ته کفارو ته د مکې وغیرهم ته ووایه چي زه امر کړل سوی یم یعني له جانبه څخه د خدای جل جلاله په دې سره چي زه به عبادت کوم د خدای ج په داسي حال کي چي خالص به

وي زما عبادت د واحد لاشريک لپاره، او زه په دې سره امر سوی يم چې زه اول د مؤمنانو مخلصانو به يم، دا د دې لپاره چې په دنيا او اخرت کې پيشوا وګرځم، يا يې معنی داده چې زه اول مسلمان د قريشو څخه وګرځم ومن علی ملة قريش ای الشرک.

**فائده:** مراد له اول المسلمين څخه مسلمانان د دې امت دي، والا فدين الاسلام دين قديم من لدن آدم عليه السلام الی بعثة محمد الامي ﷺ.

**فائده:** ظاهره داده چې کلمه د لام زائده ده کما في آيت اخری (وامرت ان اکون اول من اسلم)

**تنبيه:** مسبوق د سابق درجې ته نسي رسېدلای لکه تابعين يا تبع تابعين هلم جرا د اصحابو کرامو ﷺ و درجې ته نسي رسېدلای بالاجماع.

قُلْ اِنِّيْٓ اَخَافُ اِنْ عَصَيْتُ رَبِّيْ عَذَابَ يَوْمٍ عَظِيْمٍ ۝

ته ورته ووايه چې زه بېرېږم که زه عصيان وکړم د رب څخه زما (بترک الاخلاص يا ميل وکړم ستاسي مذهب ته چې شرک او عصيان دی) له عذابه څخه د لوی ورځې چې قيامت دی، په دې آيت سره بېرول دي له عصيان څخه او هڅول دي د دوی و اسلام ته بالاخلاص کما في الآية السابقة.

بغوي" وايي چې دا ايت هلته نازل سو چې کفارو د قريشو و عليه الصلوة والسلام ته دعوت ورکړی چې دين ته د اباؤ را اوره، موږ به ستا سره داسي او داسي وکړو کما فصل في موضع آخر.

قُلِ اللّٰهَ اَعْبُدُ مُخْلِصًا لَّهٗ دِيْنِيْ ۝

ته ورته ووايه چې زه عبادت کوم د خدای ﷻ چې خالص به وي خدای[۱۴] لره زما عبادت يعني شرک به نه وي ورسره ګډ، نو په دې سره د رخته د طمع د قريشو چې ده مبارک ته يې دعوت د رجوع الی دين الاباء ورکاوه له بېخه وکښل سوه.

فَاعْبُدُوْا مَا شِئْتُمْ مِّنْ دُوْنِهٖ ؕ

نو تاسي هر شي چې ستاسي ورته اراده سي د هغه عبادت کوئ.

**پوه سه:** چې دا امر لپاره د تهديد دی.

**فائده:** دا عبارت جواب د شرط محذوف دی تقديره ان لم توافقني في العبادة

لله خالصًا فاعبدوا ماشئتم يعني تاسي به و وينئ اخيره نتيجه د اصرار پر كفر من العذاب في الدنيا كما في يوم بدر وفي الآخرة اى النار.

قُلْ إِنَّ الْخَسِرِينَ الَّذِينَ خَسِرُوا أَنفُسَهُمْ وَأَهْلِيهِمْ يَوْمَ الْقِيَمَةِ

ته ورته ووايه چي په كامل خسران كي دي هغه كسان چي په تاوان كي يې اچولي وي خپل ځانونه يعني بالضلال والكفر، او خپل اتباع من الاولاد والازواج والخدم، يعني بالاضلال ودعوتهم الى الضلال، په ورځ د قيامت يعني په هغه وخت كي چي دوږخ ته داخل كړل سي، نو تابعان به جزاء د ضلال وويني او متبوعان به د ضلال او د اضلال دواړو جزاوي و ويني. له ابن عباس رض څخه روايت دى و ذالك (اى خسران الاهل) دادى ان الله خلق لكل انسان منزلاً في الجنة واهلاً (من الحور العين والخدم والغلمان) فمن عمل بطاعة الله كان ذالك المنزل والاهل له ومن عمل بمعصية كان ذالك المنزل والاهل لغيره فمن عمل بالطاعة (اى من شاء الله ﷻ)

أَلَا ذَٰلِكَ هُوَ الْخُسْرَانُ الْمُبِينُ ۝

خبردار دغه (يعني خسران يوم القيامة) تاوان دى لوى (چي ضمير فصل دلالت پر كوي) او ښكاره (بخلاف خسران الدنيا فانه سهل عسى ان يبدل)

**فائده**: په دې آيت كي ډېري مبالغې دي په خسران كي د دغو كسانو (۱) جمله مستأنفه يې راوړه (۲) مصدريه په حرف تنبيه چي الا دى وګرځول (۳) په مابين كي يې ضمير فصل راوړى چي دلالت پر حصر كوي (۴) خسران يې معرفه راوړى (۵) موصوف يې په مبين سره وګرځاوه، كذا قال المظهري رح.

لَهُم مِّن فَوْقِهِمْ ظُلَلٌ مِّنَ النَّارِ وَمِن تَحْتِهِمْ ظُلَلٌ ۝

دوى لره دي د لوړي خوا ددوى.

**پوهسه**: چي ظلل مبتداء ده او لهم يې خبر دى، والضمير راجع الى الخاسرين والظلل جمع ظلة ده لكه غرف جمع د غرفة ده، سحابة تظلل الشيئ (بالفارسية سائبان) والمعنى الخاسرين ظلل من النار كثيرة، يو پر بل سربېره حال كون تلك الظلل من فوقهم (نو من فوقهم) حال دى له ظلل څخه، والمراد طبقات النار ودخانها.

**سوال**: اوريې ولي ظلل وباله؟

**ځواب:** په سبب د غلظ او كثافت، او بل د دې سببه چي دا اور غليظ مانع د دې دى چي لوړ و ګوري يعني اطلاق مجازي دى قوله تعالى: ومن تحتهم آه. مظهري ؒ دا ترجمه كړې ده فرش ومهاد من النار آه فرش خو د ظلال د لفظ سره سمون نه خوري، وروسته مظهري ؒ رد كړې ده په دې سره چي دا خو په اخيره طبقه كي نه جوړيږي ولي چي اخيره طبقه خو من تحتهم نه لري چي د هغو لپاره ظلل سي، او په خپله روح المعاني وايي چي اطلاق د ظلل پر من تحتهم له بابه ځخه د مشاكلة دى د من وفوقهم.

**سوال:** ظلل چي په معنى د سائبان ده څرنګه يې ظلل وبولي، ولي چي ظلل خو لپاره د تبرد وي خصوصًا في الارض الحارة كارض الحجاز يعني مكة المكرمة واطرافها، نو چي دا ظلل د اور وي كانت اشد حرارة؟

**ځواب:** اطلاق د ظلل د اور پر سائبان تهكم بهم، واصل المراد احاطة النار بهم من جميع الجوانب كما في قوله تعالى: احاط بهم سرادقها، وهو الخيمة شبه مايحيط بهم من النار بالخيمة ونظير هذه الآية قوله تعالى (يوم يغشاهم العذاب من فوقهم ومن تحت ارجلهم)

ذٰلِكَ يُخَوِّفُ اللّٰهُ بِهٖ عِبَادَهٗ ۚ يٰعِبَادِ فَاتَّقُوْنِ ﴿۱۶﴾

"ذالک" اى المذكور من العذاب (دا مبتدا ده) "او يخوف الله آه" يې خبر دى تا چي دوى پرهيز وكړي د ما يوجب ذالک العذاب، اى زما بندګانو د ما ځخه وبېريږئ يعني له عذاب ځخه زما معنى دا چي تعرض و داسي كار ته مه كوئ چي موجب زما د سخط او عذاب ګرځي.

**فائده:** په روح المعاني كي وايي چي بعض مفسرين وايي چي مراد په يخوف الله به عباده او په يا عبادي فاتقون كي مراد مؤمنان دي لانهم هم المنتفعون بالتخويف، او بعض مفسرين وايي چي مؤمنان او كافران دواړه مراد دي.

**درويش وايي:** چي پر تقدير د عموم مسلمانان بېرول د عصيان اوله ارتكاب ځخه د منهياتو، او كافران بېرول دي چي كفر پرېږدي ايمان راوړي.

**فائده:** په دې آيت كي خداى ﷻ له غايت لطف او رحمت په لهجه بندګانو ته هدايت كړى دى، او په وسيط كي وايي د دې آيت په تفسير كي يخوف به عباده

المؤمنين يعني ان ما ذكر من العذاب معدة للكفار وهو تخويف للمؤمنين ليخافوه بالطاعة والتوحيد انتهى.

**درويش وايي:** چې د تفسير سره د وسيط هغه قانون چې علماء وايي چې اضافت په يا عبادي سره لپاره د تشريف د مضاف سره پوره سمون لري. والله اعلم بمراده في كتابه.

وَالَّذِينَ اجْتَنَبُوا الطَّاغُوتَ أَن يَعْبُدُوهَا وَأَنَابُوا إِلَى اللَّهِ لَهُمُ الْبُشْرَىٰ ۚ فَبَشِّرْ عِبَادِ ﴿١٧﴾

هغه كسان چې اجتناب كوي (دا مبتداء ده) چې عبادت به وكړي (بدل اشتمال دى له طاغوت څخه) او رجوع يې وي خداى ته و اقبلوا اليه جميع اعضائه الى الله تعالى كمامر، دوى ته زېرى دى پر ژبه د رسولانو او پر ژبو د ملكو وقت الموت يعني دوى مستحق د زېري دي ولهذا امر رسوله، نو ته زېرى وكړه يا محمد ﷺ زما بندګانو ته.

**درويش وايي:** چې د طاغوت ترجمه مظهري په بتانو سره كړې ده، دى وايي چې په ان يعبدوها كي چې بدل اشتمال دى تانيث د ضميريې دلالت كوي چې مراد ځني اوثان دي، وفيه ان الطاغوت لفظ مفرد فكيف يراد به الاوثان بصيغة الجمع، او نور مفسرين لكه روح المعاني روح البيان وايي چې طاغوت وزن فعلوت دى بتقديم اللام على الغين لپاره د مبالغې په مصدر كي اى الطغيان كالرحموت للمبالغة في الرحمة والجبروت للمبالغة في الجبر. ولهذا اختص بالشيطان ووصف به مبالغة لا بالغ نهاية الطغيان الا الشيطان. لكن تشبيهًا يې پر غير د شيطان هم اطلاق كېږي څكه صاحب الصحاح وايي چې طاغوت شيطان او كاهن او ساحر ته هم وايي وكل رأس في الضلال، او ورته خبره راغب الاصفهاني هم كړې ده، او كشاف وايي چې په دې سورة لايطلق على غير الشيطان وباقي التفصيل في روح المعاني.

**شان نزول:** عطاء الخراساني له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت كړى دى چې كله حضرت ابو بكر صديق رضي الله عنه ايمان راوړى نو عثمان بن عفان، عبد الرحمن بن عوف، طلحة بن عبيد الله، زبير بن عوام، سعد بن ابى وقاص او سعيد بن زيد رضي الله عنهم دوى ټولو له ابوبكر رضي الله عنه څخه ددې د ايمان راوړلو په باره كي پوښتنه وكړه، نو ابوبكر رضي الله عنه خپل د ايمان دا ډول بيان ورته وكړى، نو هغو ټولو ايمان راوړى، فنزلت هذه الآية.

الَّذِينَ يَسْتَمِعُونَ الْقَوْلَ فَيَتَّبِعُونَ أَحْسَنَهُ ۚ

نو پر دې تقدير احسن په معنى د حسن دى په معنى د تفضيل نه دى اذ لا حسن في قول الكفار اصلاً، نو مراد له احسن قول د ابى بكر رضي الله عنه په معنى كې د ايمان د فضائل دا قول د كفارو چې اشراك بالله ؤ، او ابن زيد رضي الله عنه وايي چې دا آيت په درو كسانو كې د جاهليت نازل سوى دى چې هغو به لآ اله الا الله وايه (۱) زيد بن عمرو بن نفيل (۲) ابى ذر غفاري (۳) سلمان الفارسي، وزيد عليهم رابعًا في بعض الروايات، وهو سعيد بن زيد رضي الله عنه، نو مراد له احسن څخه لآ اله الا الله دى، او سدي وايي چې څه وخت چې دا آيت نازل سو يعني لها (اى لجهنم سبعة ابواب) د دوږخ اووه دروازې دي، جابر بن عبدالله رضي الله عنه وايي چې عليه الصلوة والسلام ته يو سړى ورغلى چې د انصارو له قبيلې ؤ، فقال يا رسول الله زه شپږ مريان لرم او زه د هري دروازې لپاره يو مريى ازادوم، فنزلت هذه الآية، او بعض روات وايي چې مراد په دې آيت كې احسن د ما يؤمرون به متابعت كول دي مثلاً خداى پاك په قرآن كي له ظالم څخه كسات اخستل ذكر كړي دي او عفو هم راغلې ده، عفو يې احسن ده او خداى پاك په قرآن كي عزائم ذكر كړي دي لكه د مثال په توګه روژه نيول په سفر كي او رخصت يې هم بيان كړى دى لكه روژه خوړل په سفر كي. نو عزائم يې احسن دى، يا لكه قصاص ول د قاتل او عفوه ورته كول عفوه يې احسن ده، يا د نفلي صدقه ابدأ هم روا ده يعني په ښكاره ور كول، او اخفاء يې اولى او احسن ده او په فرضي زكوة كي بالعكس.

أُولَٰئِكَ الَّذِينَ هَدَاهُمُ اللَّهُ ۖ وَأُولَٰئِكَ هُمْ أُولُو الْأَلْبَابِ ﴿١٨﴾

دا هغه كسان دي چې خداى پاك هدايت كړى دى دوى ته، او هم دغه كسان خاوندان د عقولو يعني سليمه ؤ دي.

أَفَمَنْ حَقَّ عَلَيْهِ كَلِمَةُ الْعَذَابِ أَفَأَنْتَ تُنْقِذُ مَنْ فِي النَّارِ ﴿١٩﴾

"افمن حق عليه" اى في علم الله القديم كذا قال ابن عباس رضي الله عنه (كلمة العذاب) يعني هؤلاء في النار ولا ابالي، آيا ته يا محمد (ﷺ) خلاصولاى سې له عذابه هغه څوک چې په ازل كي دوږخي وي؟ الاستفهام للانكار يعني لا تقدر عليه ابن عباس رضي الله عنه وايي چې مراد په دې آيت كي ابو لهب و ولده چې عليه الصلوة والسلام د ابو لهب او

د هغه د زوی پر ایمان ډېر حریص وُ، والحاصل انت نذیر الکفار من عذاب الله یوم القیامة وقد ادیت الامانة واما الانقاذ من النار فامر آخر مفوض الی الله ﷻ.

لٰكِنِ الَّذِيْنَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ

حسین کاشفي وايي: لیکن آنانکه بترسیدند از عذاب پروردگار خویش وبایمان وطاعت متصف شدند آه، روح المعاني وايي چي دا آیت استدراک دی بین ما یشبه الضدین وهم المؤمنون والکافرون واحوالهما، والمراد بالموصول المتصفون بما عدد من الصفات الفاضلة الباطنة والظاهرة.

لَهُمْ غُرَفٌ مِّنْ فَوْقِهَا غُرَفٌ مَّبْنِيَّةٌ تَجْرِيْ مِنْ تَحْتِهَا الْاَنْهٰرُ

ددوی لپاره لوړ ځایونه سته په جنت کي، نور تر هغو ذکر سوو لوړ ځایونه سته حسب مراتبهم في التقوٰی والطاعة في الدنیا، جوړ سوي دي، بهېږي به لاندي تر دوارو غرفو ویالې یعني څلور ویالې اوبه، شیدې، شراب او عسل.

(لهم غرف) مبتداء ده خبریې متقدم دی.

**پوه سه:** چي له دوارو غرفو څخه فوقاني او تحتاني غرف مراد دي.

وَعْدَ اللّٰهِ لَا يُخْلِفُ اللّٰهُ الْمِيْعَادَ

**پوه سه:** چي وعد الله مفعول مطلق دی د فعل محذوف، والتقدیر وعدهم الله الغرف، په علم نحو کي دې مصدر ته مصدر مؤکد لنفسه وايي لان قوله تعالی: لهم غرف په معنی د وعد دی.

**ترجمه:** او وعده کړې ده خدای ﷻ او خلاف نه کوي خدای ﷻ د خپلي وعدې څخه (میعاد مصدر میمي دی، لان خلف الوعد نقض وهو محال علی الله تعالی عن ذالک له ابی سعید الخدري ؓ څخه روایت دی عن النبي ﷺ ان اهل الجنة (یعني عمومي اهل الجنة) یتراؤن اهل الغرف من فوقهم (دوی ګوري اهل الغرف ته چي تر دوی لوړ وي) کما تتراؤن الکوکب الغابر في الافق من المشرق والمغرب (لکه تاسي چي ګورئ ویو ستوري ته په کناره کي د اسمان یا د مشرق څخه و مغرب ته یا بالعکس لتفاضل ما بینهم) چي اهل الجنة او اهل الغرف والوتر مابین یالا بود سته) خلګو یعني اصحاب کرامو ؓ ورته وویل چي دا غرف به نو منازل د انبیا علیهم السلام

وي بل څوک به نسي ور رسېدلای؟ قال رسول الله ﷺ بلی جواب د نفي اثبات دی یعني ور رسېدلای سې، والذي نفسي بیده قسم په هغه خدای دی چې زما روح دده په قدرت کې دی، رجال آمنوا بالله ورسوله وصدقوا المرسلین، یعني والله اعلم بعض هؤلاء فافهم یدفع عنک التردد في ذالک.

## أَلَمْ تَرَ أَنَّ اللَّهَ أَنزَلَ مِنَ السَّمَاءِ مَاءً فَسَلَكَهُ يَنَابِيعَ فِي الْأَرْضِ

ته علم نه لرې ای مخاطب غیر معین (نو رؤیت علمي دی چې دوه مفعوله غواړي، نو ان الله انزل آه یې قائم مقام د مفعولینو دی) چې خدای ﷻ نازلي کړي له اسمان څخه یا له وریځي څخه فان ما علاک یسمیٰ سماء اوبه یعني باران، نو یې داخلي کړي دي دغه اوبه په مځکه کې.

**فائده:** همزه لپاره د استفهام انکاري دی او نفي د نفي اثبات دی، یعني ته پر دې نزول علم لرې.

**فائده:** في الارض متعلق دی په سلکه پورې کما في قوله تعالی کذالک سلکناه في قلوب المجرمین. او ینابیع حال دی له مفعول څخه د سلکه. قال الشعبي "کل ماء في الارض (یعني که د چینو اوبه وي او که د څاهانو او که د کاریزو وي) فمن السماء دا هغه د اسمان اوبه دي.

**درویش وایي:** چې ددې مطلب دا دی چې څو کاله چې پر له پسې بارانونه نه وسي، څاهان، چینې او کاریزونه وچ سي، یا یې اوبه پر مخ ورکي سي او یا نقصان پذیره سي.

**پوه سه:** چې ینابیع جمع د ینبوع ده په معنی د چینې.

## ثُمَّ يُخْرِجُ بِهِ زَرْعًا مُّخْتَلِفًا أَلْوَانُهُ

وروسته راباسي په هغو اوبو سره (پس بیرون می ارد به ان آب) او مظهري" داسي ترجمه کړې ده ای اخرج بالماء (یعني مضارع په معنی د ماضي ده) "مختلفًا الوانه" ای اصنافه وانواعه، لکه غنم، جوار، اوربشي وغیرها.

## ثُمَّ يَهِيجُ فَتَرَاهُ مُصْفَرًّا ثُمَّ يَجْعَلُهُ حُطَامًا

بیا څه زمانه وروسته وچ سي هغه زرع چې په اول کې ښه سرسبزه او شاداب ؤ یعني چې وړې یې پاخه سي نو وچ سي (فتراه) ته وینې ای مخاطبه هغه کښت چې

په ابتداء کي شین او زرغون ؤ (مصفرًا) ژړ رنګ، نو بیا خدای پاک وګرځوي هغه ژړ وړي تهوک تهوک سره، چي کښته ګر غوبل پر وکړي یا د غویو څپر پر وګرځوي لکه په پخوا زمانو کي، یا په آلات جدیده ؤ سره یې میده کړي کما في هذه الایام.

إِنَّ فِي ذَٰلِكَ لَذِكْرَىٰ لِأُولِي الْأَلْبَابِ

په تحقیق په دغه تغیراتو کي د کښنتو پند او وعظ سته پر وجود د صانع مقتدر القدیم الحکیم (نو باید عاقل سړی خپل ځان پر کښنت قیاس کړي نو په حیوة الدنیا دي نه غولیږي) خاوندان د عقل، تخصیص د اولی الالباب چي یې وکړی هغه په دغو شیانو کي د قدرت فکر و وهي او خالق مقتدر او صانع حکیم به وپیژني ویر اولو الالباب که څه هم په صورت خو د انسان دي لکن په حقیقت کي لکه انعام دي بل هم اضل سبیلاً، شیخ سعدي قدس سره وایي:

برگ درختان سبز در نظر هوشیار ..... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار

بود حال دنیا چو آن سبزه زار ..... که بس تازه بینی بفضل بهار

چو بر وی خزه تند باد خزان ..... یکی سبز برگی نیابی ازان

ورځ دي تېره په خندا کړه شپه له خابه .... خدای په کله یاد وې خانه خرابه

**درویش وایي:** چي ځواني بېهوشي وه چي تېره سوه.

أَفَمَن شَرَحَ اللَّهُ صَدْرَهُ لِلْإِسْلَامِ

آیا هغه څوک چي سینه (یعني زړه یې)

**یوه سه:** چي همزه لپاره د استفهام انکاري دی و کلمة من شرطیة او موصولة، وخبرها محذوف و علی الشق الاول جزائها محذوف دل علیه مابعده.

**فائده:** اصل معنی د شرح بسط اللحم و نحوه یقال شرحت اللحم (په پښتو وایي سره وپېرږئ لکه د لاندي غوښي) و منه شرح الصدر بنور الهي وسکینته من جهته تعالی وروح منه کما في المفردات حتی چي په نور سره پېژني حق حقًا والباطل باطلاً، نو په دې نو سره یقین جازم به وي پر تهوله ماجاء به النبي ﷺ بلاشک ولاشبهة، نو په دې آیت کي تعبیر د هغه نور الهي څخه په شرح الصدر سره وکړی لان الصدر محل القلب والروح القابل للاسلام فاذا کان قبله قابلاً لاحکام الاسلام صار کظرف انشرح حتی حال فیه المظروف.

فَهُوَ عَلٰى نُوْرٍ مِّنْ رَّبِّهٖ

نو دغه سړی پر نور (يعني البصيرة وي) له جانبه څخه د خدای ج دده.

**فائده:** خبر محذوف دادی چي د مخه فقير اشاره ورته وکړه کمن طبع علی قلبه فعصٰی، وروی البغوي والحاكم والبيهقي في شعب الايمان عن ابن مسعود رض قال تلی رسول الله ﷺ افمن شرح الله الاسلام فهو علی نور من ربه فآمن واهتدی قلنا يا رسول الله كيف انشرح صدره قال اذا دخل النور القلب انشرح صدره وانفسخ (فراخه سي) موږ ورته وويل يا رسول الله علامه د هغه څه ده؟ قال ﷺ الانابة الی دار الخلود (يعني بالطاعة والذكر وغير ذالک والتجاء في عن دار الغرور (او ځان ګوښه ساتي له دار الغرور څخه چي دنيا ده) والتاهب للموت قبل نزوله (او ځان يې اراسته کړځولی وي مرګ ته د مخه تر نزول د مرګ)

فَوَيْلٌ لِّلْقٰسِيَةِ قُلُوْبُهُمْ مِّنْ ذِكْرِ اللّٰهِ ؕ اُولٰٓئِكَ فِيْ ضَلٰلٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۲﴾

نو هلاک دي وي چي زړونه يې سخت وي د الله تعالی له ياده څخه (من ذكر الله) متعلق دی بالقاسية، والمعنی من اجل ذكر الله يعني چي ذكر د نامه د خدای يعني په توحيد سره و دوی ته وسي يا تلاوت د قران پاک د آياتو دوی ته وسي، سخت سي د دوی د زړو غلظت او نفرت له ايمانه څخه، نو دغه کسان په ګمراهی کي دي يعني الكفر والشرک چي ښکاره ګمراهي ده، له ابن عباس رض څخه روايت دی چي يو قوم و عليه الصلوة والسلام ته وويل يا رسول الله ﷺ حدثنا باحاديث حسان واخبار الدهر (يعني د امم ماضيه ؤ قصې) فنزلت (ای الآية الآتية) وعن ابن مسعود رض ان اصحاب رسول الله ﷺ ته ملال او دغت پر راغلی ؤ فقالوا لرسول الله ﷺ حدثنا، ته موږ ته يو څو خبري وکړه چي زموږ ملال په دفع سي، فنزلت يعني په دي آيت کي خدای ج ارشاد و دوی ته وکړی چي دفع کونکی د ملال تلاوت القرآن دی واستماعه منه ﷺ غضًا طريًا (نوی تازه)

اَللّٰهُ نَزَّلَ اَحْسَنَ الْحَدِيْثِ كِتٰبًا مُّتَشَابِهًا مَّثَانِيَ

خدای ج نازل کړي دي هغه ښه د خبرو، وهو القرآن الكريم.

**سوال:** د علم الكلام په کتابو کي راغلي دي چي قرآن قديم دی، نو د حديث اطلاق يې څرنګه پر وکړی؟

**جواب:** اولاً، مراد له حديث څخه ضد د قديم نه دی بلکې مراد دا دی چې تاسي ته تازه په تازه تلاوت کېږي، وثانيًا اطلاق د حديث پر قرآن مشاكلة دی لما قال الصحابة ﷺ حدثنا يا رسول الله.

**بوه سه:** چي لفظ الله يې مبتداء وګرځول او احسن الحديث يې خبر وګرځاوه، تفخيم او تعظيم دی د احسن الحديث واستشهاد على احسنية، اما الاستشهاد على احسنيته فلانه مكنون القرآن لا يتصور اكمل منه بل لا كمال شيئ ما في جنب القرآن، ولهذا قيل كلام السادات سادت الكلام، واما لتنفيخه فلانه من باب قولهم الخليفة عند فلان واما توكيد الاسناد اليه تعالى فتكرر الاسناد اليه تعالى كما قال النحات ان زيد ضرب او كد من ضرب زيد، فتدبر، روح البيان وايي ان القرآن الكريم لانهاية لحسنه ولاغاية لجمال نظمه وملاحة معانيه والقرآن احسن مما نزل على جميع الانبياء والمرسلين، واكثره احكامًا وليس كتابًا من الله عزوجل يكون معجزة في ذاته الا القرآن.

**بوه سه:** چي (كتابًا) بدل دی من احسن الحديث (متشابهًا) صفت دی لكتابًا يعني يو د بل سره په صحت کي د معنى او په دلالت کي پر منافع عامه او په حسن الاعجاز سره متشابه دی، ويصدق بعضه بعضًا.

**درويش وايي:** چي دلته د متشابه معنى هغه نه ده چي په اصول الفقه کي يې راوړي دي اى الخفي والمشكل والمتشابه (مثاني) دوهم صفت د كتابًا دی.

**بوه سه:** چي مثاني جمع د مثنات ده صيغه د ظرف ده، والمعنى چي مكرر راوړل سوي دي په قرآن کي وعد او وعيد او امر او نهي و اخبار الامم والانبياء وغير ذالک، نو دا وصف د كتاب دی په تفاصيل دا جزاؤ دده كما في قولک للقرآن سور و آيات طويلات وقصيرات، يا سړی و وايي الانسان عروق وعظام واعصاب.

تَقْشَعِرُّ مِنْهُ جُلُودُ الَّذِينَ يَخْشَوْنَ رَبَّهُمْ

يعني خوفًا مما فيه من الوعيد على العصيان، دا جمله صفت ثالث دی د قرآن.

ثُمَّ تَلِينُ جُلُودُهُمْ وَقُلُوبُهُمْ إِلَىٰ ذِكْرِ اللَّهِ

اى لذكر عموم الرحمة والمغفرة لله الغفور الرحيم.

**فائده:** دا دوې جملې په اعتبار د عطف استيناف دی لپاره د بيان د آثار ظاهره ؤ د

قرآن په سامعينو کي بعد بيان اوصافه في نفسه، نو دا جملې تقرير دي لکون القرآن احسن الحديث، په قاموس کي وايي: اقشعر جلده اخذته قشعريرة ای رعدة يعني ورږېږي لکه په ژمي کي چي يخي او به سړي پر ځان توی کړي، او بعض مفسرين وايي چي اقشعرار تغير يحدث في جلد الانسان عند الوجل والخوف، په پښتو وايي: وېښتان مي پر بدن جګ جګ ودرېدل، يا مجملاً داسي وايي بدن مي بړ کی سو.

**فائده:** په دې دوو آيتو کي اشاره ده وخوف او رجاء ته د مؤمنانو والقبض والبسط (ای الروحيات) والهيبة والانس وتجلی الانوار واستتارها.

ذٰلِكَ هُدَى اللّٰهِ يَهْدِيْ بِهٖ مَنْ يَّشَآءُ ۗ وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ

"ذالک" ای الکتاب الذي بين احواله، راهنمايي د رب العزت ده مؤمنانو ته، چي راهنمايي په کوي يعني الدلالة الموصلة الی المطلوب ای الايمان وهغه چاته چي د خدای ﷻ اراده ورته وسي، او په چا کي ضلالت پيدا کړي خدای ﷻ په سبب د صرف د بنده خپل اختيار و اسبابو ته د ضلال، نو نسته هغه لره هدايت کونکی لانه لا اکراه في الدين ولا اجبار بدون الاختيار.

**حکايت:** له ابو علي النسفي ؒ څخه روايت دی چي د يو مسلمان خر ورک ؤ دی يې په طلب پسي وتلی ؤ، نو يو مجوسي په مخه ورغلی، نو صاحب طلب الحمار بيرته راوګرځېدی يعني طلب د خره يې پرېښو او داسي يې وويل انا فقدت الدابة فخرجت في طلبها، وهذا (ای المجوسي) فقد الدين الحق ولم يطلبه فمعصيته (ای المجوسي) اعظم من معصيتي.

وعن حذيفة ؓ قال سمعت رسول الله ﷺ قال: يو سړی مړ سو له قوم څخه د موسیٰ ؑ نو د قيامت په ورځ به خدای ﷻ و ملکو ته ووايي چي تاسي وګورئ چي دغه سړی چي زما بنده دی يو شی له اعمالو څخه د خير لري (يعني بيله ايمانه) نو ملکي ووايي چي هيڅ عمل د خير يې نسته بيله دې چي په ګوتمی کي يې لا اله الا الله نوشته وه، فيقول الله تعالی لملائکته ادخلوا عبدي الجنة قد غفرت له.

**درويش وايي:** چي ولنعم ما قيل: به بها نمی بخشد وبه بهانه می بخشد

بيت:.. عبيد را خاتمه بالخير گردان .... بحق مصطفی وچهار ياران
بضاعت نه ياوردم الا اميد .... مکن از درت اين گدا نا اميد

اَفَمَنْ يَّتَّقِيْ بِوَجْهِهٖ سُوْٓءَ الْعَذَابِ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ

"افمن یتقی" الهمزة للاستفهام الانکاري والفاء للعطف علی مقدر تقدیره ایستوی الفریقان ای المؤمنین والکافرین فمن یتقی آه "بوجهه" یعني مخ وقایه د ځان وګرځوي یعني لاسونه پر مخ ونسي، ولي چي د انسان طبعي دا قانون دی چي د یو خوفناکه شي سره مواجهه سي د خوفناکه شي څخه د خلاصون لپاره لاسونه د هغه خوفناکه شي و خواته وګرځوي تاچي مخ يې وساتي، ولي په مخ کي اعضاء شریفه سته، نو کافر چي دوږخ ته اچول کېږي لاسونه يې په غاړه کي تړلي وي، نو ځان نسي ساتلای مګر نه په مخ سره.

**پوه سه**: چي اضافت د سوء و عذاب ته اضافت د صفت دی و موصوف ته ای العذاب السوء او سوء مصدر دی او توصیف د عذاب په ده سره مبالغةً دی، یا په معنی د مشتق دی ای السيئ.

**فائده**: خبر د من محذوف دی ای کمن هو امن من العذاب کما في نظائره.

وَقِيْلَ لِلظّٰلِمِيْنَ ذُوْقُوْا مَا كُنْتُمْ تَكْسِبُوْنَ ۝

او وویل سي و ظالمانو ته، برداشتوئ (یعني لیس من ذوق الفم) ما کنتم چي تاسي واست کسب مو کاوه یعني الکفر والمعاصي، والمضاف محذوف ای جزاء ما کنتم آه، وکلمة ما مصدریة ای جزاء کسبکم او یا موصوله ده والعائد محذوف تقدیره ما کنتم تکسبونه.

**پوه سه**: چي لهم يې نه وو ایه بلکي اسم ظاهر يې راوړی لپاره د تسجیل پر دوی د ظلم چي هغه سبب د وروسته ایت دی یعني ذو قوة آه.

**فائده**: جمله د "وقیل آه" یا حال ده په تقدیر د قد "کما هو القانون النحوي في الماضي الذي وقع حالاً" له فاعل څخه د یتقی آه.

كَذَّبَ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ فَاَتٰىهُمُ الْعَذَابُ مِنْ حَيْثُ لَا يَشْعُرُوْنَ ۝

تکذیب کړی دی د رسولانو هغو کسانو چي د مخه تر کفارو د مکې وه په عذاب راتلونکي کي پر دوی، نو دوی له راغلی عذاب له داسي خوا څخه چي د دوی په زړو کي هم نه ورګرځېدی.

فَاَذَاقَهُمُ اللّٰهُ الْخِزْيَ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا ۚ

دوی ته ورسول خدای رسوایي او ذلت د دنیا په ژوند کي، لکه مسخ پر بعض کافرانو لکه د داؤد عليه السلام په زمانه کي، یا خسف په مځکه کي لکه د قارون د موسیٰ عليه السلام په زمانه کي، یا یې پر قتل باد مسلط سو لکه د نمرود په زمانه کي، یا رمي بالحجارة د لوط عليه السلام په زمانه کي.

وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَكْبَرُ ۘ لَوْ كَانُوْا يَعْلَمُوْنَ ﴿۲۶﴾

او هرآئینه عذاب د آخرت چي د دوی لپاره تیاکل سوی دی لوی دی تر عذاب د دنیا، ولي چي هم سخت دی چي عذاب د اور دی او هم ابدي دی، نو که وای دوی له پوهېدونکو څخه، یعني لو کان اهل مکة من اهل العلم.

**فائده:** جزاء د لو محذوف ده تقدیره لاعتبروا دوی به عبرت اخستی وای له من قبلهم څخه او ایمان به یې راوړی وای، یا معنی د آیت عامه ده یعني لو کان المکذبون یعلمون مآل التکذیب للرسل ما کذبوهم.

وَلَقَدْ ضَرَبْنَا لِلنَّاسِ فِيْ هٰذَا الْقُرْاٰنِ مِنْ كُلِّ مَثَلٍ لَّعَلَّهُمْ يَتَذَكَّرُوْنَ ﴿۲۷﴾

په تحقیق مونږ بیان کړي دي لپاره د نفع د بندګانو (فاللام للانتفاع) په دې قرآن کي هره غریبه خبره چي په غرابت لکه مثل دائر علی الانسبة (چي په پښتو یې مثل بولي) یعني چي په امورو کي د دین ورته ضرورت وي، صاحب د تفسیر وسیط وایي چي مراد له ناس څخه اهل مکة دي (لکن العموم اولی واحری لان القرآن الکریم بیان للناس الی یوم القیامة)

(لعلهم یتذکرون) شاید دوی به پند او عبرت واخلي، ولي چي په قرآن کي قصص د پیشو امتو او د رسولانو موجود دي، او د مکذبینو د هلاک قصې هم راوړه سوي دي دا تول عبرت دي د سید المرسلین ﷺ د امة الدعوة او امة الاجابة لپاره... بیت:

پند گیر از مصائب دیگران ..... تا نگیرند دیگران زتو پند

نرود مرغ سوئ دانه فراز ..... چو بیند مرغ دیگر اندر بند

قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا غَيْرَ ذِيْ عِوَجٍ لَّعَلَّهُمْ يَتَّقُوْنَ ﴿۲۸﴾

قرآن دی په عربي لغت چي افصح الالسنة ده، هیڅ کږوالی نسته په قرآن کي

بوجه ما لا من حيث الفصاحة والبلاغة باعتبار اللفظ ولا باعتبار المعنى.

**پوه سه**: چي قرانًا منصوب دی په حذف د اعني چي فعل او فاعل دی، ابن عباس رضي الله عنه د غير ذی عوج ترجمه په مختلف کړې ده، او مجاهد رحمه الله وايي: غير ذی لبس ای اشتباه.

**پوه سه**: چي لعل په معنی د لام کی دی، يعني ددې لپاره چي انسانان په مواعظو سره د قرآن عمل وکړي او کفر او معاصي به پرېږدي.

ضَرَبَ اللّٰهُ مَثَلًا رَّجُلًا فِيْهِ شُرَكَآءُ مُتَشٰكِسُوْنَ

بيانوي خدای جل جلاله يو مثل د مشرک او موحد لپاره "رجلاً" بدل دی من مثل بتقدير المضاف ای مثل رجل.

**پوه سه**: چي د متشاکسون معنی مختلفون ده، صفت دی د شرکاء او شرکاء فاعل د ظرف مستقر دی، يعني فيه او داسي اعراب هم روا دی چي شرکاء دي مبتداء وي فيه دې خبر مقدم وي، قدم الخبر لان المبتداء نکرة وتقديم الخبر مصحح، کما في قولهم في الدار رجل کما تقرر في النحو، والجملة صفت لرجل يعني مثال د اهل الشرک چي دی د الهه متعددؤ عبادت کوي داسي دی لکه يو مريی چي د ډېرو کسانو تر منځ شريک وي، او هغه کسان بد خوی او بد اخلاقه وي، نو پر مريي د ټولو شرکاؤ مراعات ډېر ګران تمامېږي يعني که يو مراعات کوي هغه بل شريک ناراضه کېږي وهکذا.

**سوال**: د مشرکانو بتان خو جمادات دي يو د بل په خدمت يې خوا نه بدېږي؟

**ځواب**: په تمثيل کي مطابقت من کل الوجوه شرط نه دی، او بل جواب دا دی چي مثال مبني دی پر زعم د مشرکانو چي دوی خپل معبودات ذا علم او شعور بلل ولهذا قالوا: ما نعبدهم الا ليقربونا الی الله زلفی، وايضًا قالوا هؤلاء شفعائنا الی الله.

وَرَجُلًا سَلَمًا لِّرَجُلٍ

او يو سړی چي خالص د يوه سړي مريی وي، دا مثال د مؤمن دی چي موحد دی چي عبد الله الواحد الغفور الرحيم دی.

هَلْ يَسْتَوِيٰنِ مَثَلًا ۚ اَلْحَمْدُ لِلّٰهِ ۚ بَلْ اَكْثَرُهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ ﴿٢٩﴾

نو آيا سره برابر دي دغه دوه مريان په مثل او په صفت کي او په حال کي، والاستفهام للتقرير ای لحمل المخاطب چي مشرکان دي پر اقرار په دې سره چي

دوی هم وو ایي چي نه دي سره برابر حالاً فان العبد للواحد احسن حالاً من المشترک، او په بل عبارت همزه لپاره د انکار دی یعني لایستویان في الواقع که مشرک اقرار کوي او د شرمه اقرار نه کوي.

"الحمد لله، بل اکثرهم لایعلمون" او ټوله حمد خدای لره دی لایشارکه فیه احد في الحقیقیة بلکې اکثره د مشرکانو په دې حقیقت نه پوهېږي فیشرکون به غیره لغایة جهلهم.

**پوښتنه:** بعض کسان د یو چا صفت په علم او یا حلم وغیرهما سره کوي، نو هم حمد خدای لره دی که څرنګه؟

**ځواب:** داغه هم حمد د خدای دی لان معطي العلم والحلم وغیرهما من الصفات المحمودة الله ﷻ.

**سوال:** اکثره یې ولي وو ایه او سره د دې چي ټوله مشرکان خو داغسي دي؟

**ځواب:** بعض مشرکان په مذکوره حقیقت پوهېږي لکن لایؤمنون عناداً، او داسي معنی هم روا ده الحمد لله علی نعمة التوحید والاسلام واختصاص التوحید بالمولی الواحد الحمید بصفات الجلال والجمال.

**فائده:** کلمه د بل پر دې تقدیر لپاره د اضراب نه ده بلکې ابتدائیه ده حکایةً عن حال المشرکین الجاهلین.

**شان نزول:** کفارو د مکې به ویل پر پرېږدئ محمد (ﷺ) هر څه چي وایي یو وخت به مړ سي موږ به ځني خلاص سو، فنزلت هذه الآیة.

إِنَّكَ مَيِّتٌ وَإِنَّهُم مَّيِّتُونَ ﴿٣٠﴾

المعنی ستموت یعني کفار مکة کما مر من شان النزول، او یا معنی داده چي ټوله خلګ د مرګ د کندي پر غاره ولاړ دي.

**سوال:** صیغه د صفت مشبه یې ولي راوړه چي دلالت پر ثبوت حالاً کوي مثل زید ضارب عمرو دا معنا حالاً ده وان ارید الاستقبال کان مجازاً علی المذهب الصحیح؟

**ځواب:** لکون الموت متیقن الوقوع وان لم یقع حالاً، جلال الدین المحلي وایي: چي کفارو د مکې چي ولیدل چي علیه الصلوة والسلام نه مري، نو دا آیت نازل سو.

ثُمَّ إِنَّكُمْ يَوْمَ الْقِيَامَةِ عِندَ رَبِّكُمْ تَخْتَصِمُونَ ﴿۳۱﴾

"ثم انكم" يعني انت يا محمد (ﷺ) و كفار مكة بل جميع الناس، د قيامت په ورځ يو د بل خصم به ګرځي، نو عليه الصلوة والسلام به ستاسي په الزام کي وايي رب ان قومي اتخذوا هذا القرآن مهجورًا، وانهم كذبوني وكنت على الحق في دعوى التوحيد وكانوا على الباطل في التشريک واجتهدت في الارشاد والتبليغ ولجوا في العناد والتكذيب، او كفار پر خپل وار په اكاذيبو سره خبري كوي، مثل والله ربنا ما كنا مشركين وقولهم ماجاءنا من نذير وقولهم انا اطعنا سادتنا وكبرائنا الى غير ذالک من معاذيرهم الباطلة الكاذبة غير النافعة في يوم القيامة.

**درويش وايي:** چي كه څه هم په آيت شريف كي مراد اختصام ؤ په مابين كي د عليه الصلوة والسلام او د كفارو د مكې لكن په مناسبت د لفظ د اختصام عمومي اختصامات الواقعة بين الناس يوم القيامة بيان به يې بې ځايه نه وي، نو واوره چي اول چي قضاوت كړل كيږي وينه به وي، بخاري او مسلم له ابن مسعود ؓ څخه روايت كړی دی ده وويل قال رسول الله ﷺ او ما يقضى بين الناس يوم القيامة الدماء الدماء، او په دېرو روايتو له ابن عباس ؓ څخه قال سمعت رسول الله ﷺ يقول يأتي المقتول متعلق (نيولي وي) رأسه باحدى يديه متكيًا (نيولى به وي قاتل په لاس سره) شخب اوداجه دمًا (بهيږي تر بشارګو ويني) حتى يأتي العرش فيقول المقتول لرب العالمين هذا قتلني (يعني حق شرعي كالقصاص) فيقول الله تعالى للقاتل: تعسب (هلاک سې) ويذهب به الى النار.

واخرج البخاري عن ابى هريرة ؓ عن النبي ﷺ من كان عنده مظلمة لاخيه (كه څوک وي چي دده سره ظلم وي دده د ورور يعني مؤمن كه څه هم حقيقي ورور نه وي) فليحلله (ځان دي ځني خلاص كړي په دنيا كي يعني يا دي بخښنه ځني وغواړي يا دې حق ور كړي) ولي چي نسته په قيامت كي نه دينار او نه درهم، يعني چي ظالم له مظلومه ځان په خلاص كړي، كه دا ظلم عمل صالح ؤ هغه عمل صالح يې و مظلوم ته وركو كيږي په اندازه د ظلم دده وان لكن يكن (او كه نه وي ظالم لره حسنات د مظلوم له سيئاتو څخه پر ظالم حمل سي)

او مسلم او ترمذي له ابو هريره ؓ څخه روايت كړی دی قال رسول الله ﷺ آيا تاسي

خبرياست چي مفلس څوک دی؟ صحابه کرامو ﷺ وويل چي مفلس په موږ کي هغه څوک دی چي لا درهم له ولا متاع. قال رسول الله ﷺ المفلس من امتي من يأتي بصلوة وصيام وزكوة وقد شتم هذا وقذف هذا يعني په دروغو يې د زنى نسبت ورته کړی وي، واكل مال هذا وسفك دم (بهيولې يې وي وينې د بل سړي) وضرب هذا (نو دغه مدعيان ورته راجع سي په ورځ د قيامت هريو خپل حق غواړي) نو ځني قبض کړي له حسناتو څخه د هغه ظالم که د ظالم حسنات خلاص سوه د مخه د مظلومانو د پور ورکولو. اخذ من خطاياهم فيطرح عليه، ثم طرح في النار، وروسته ظالم اورته وغورځوي.

**فائده:** مراد له حسناتو څخه د ظالم چي مظلوم ته يې ورکوي ماسوى له ايمان څخه دى.

معجزة نبوية: يوه ورځ عليه الصلوة والسلام وويل: انا خصم عثمان رضي الله عنه يعني دده له خوا و ظالم ته عند الرب تعالى، ابراهيم النخعي رحمه الله وايي چي صحابه کرامو ﷺ وويل موږ خو سره ورونه يو، ما خصومتنا فلما قتل عثمان رضي الله عنه قالوا هذه خصومتنا يعني د صادق مصدوق پيشگويي رښتيا سوه، وعن ابى سعيد الخدري رضي الله عنه كنا نقول ربنا واحد وديننا واحد وكتابنا واحد فما هذه الخصومة، فلما كان يوم صفين او موږ يو بل په تورو سره ووهل قلنا هو هذا، وعن الزبير بن العوام رضي الله عنه قال لما نزلت على رسول الله ﷺ: ثم انكم يوم القيامة الآية قلت اى رسول الله ايكرر علينا ما كان بيننا في الدنيا (يعني من الخصومات مع خواص الذنوب، اى الذنوب المخصوصة بيننا) سوى الخصومات، قال عليه السلام نعم حتى تؤدون الى كل ذى حق حقه، قال الزبير رضي الله عنه ان الامر اذا لشديد، قال ابن مسعود رضي الله عنه چي فراق د عليه الصلوة والسلام نژدې سو (يعني چي دی مريض ؤ او د زکندن وخت يې نژدې سو، جمعنا في بيت امنا عائشة ﷺ ثم نظر الينا فدمعت عيناه (موږ ته چي يې وکتل ترسترګو مبارکو يې اوښکي راغلې) فقال مرحبًا بكم حياكم الله رحمكم الله اوصيكم بتقوى الله عزوجل وطاعته قد دنا الفراق (نژدې سو جلا والى زموږ او ستاسي ترمنځ) وحان المنقلب الى الله والى سدرة المنتهى وجنة المأوى، ماته دي غسل راکړي هغه کسان چي له اهل بيت څخه زما وي لکه جعفر بن ابى طالب رضي الله عنه واخيد علي كرم الله وجهه ويكفوني في ثيابي هذه ان شاؤا، او في حلة يمانية چي (چي له يمن څخه راځي) نو چي ماته مو غسل او کفن راکړل ضعوني على سريري في بيتي على شفير لحدي ثم اخرجوا عني ساعة فاول من يصلى علي حبيبي

جبرئيل ثم ميكائيل ثم اسرافيل ثم ملک الموت ثم ادخلوا علي فوجًا فوجًا فصلوا علي، صحابه كرامو ﷺ بغاري كړې (يعني لا على الوجه الممنوع في الشرع) او وه يې ژړل وقالوا يا رسول الله ﷺ انت رسول ربنا وشمع جمعنا (ځراغ زمونږ د جمعيت يې) وبرهان ربنا فاذا ذهبت عنا فالى من نرجع (چاته به په ديني امورو كي رجوع كوو) قال ﷺ تركتكم على المحجة البيضاء (ما تاسي پرې ايښي ياست پر واضح طريقه چي روښانه ده) ليلها كنهارها (شپه يې لكه ورځ داسي ده) يعني في الوضوح، وتركت لكم واعظين ناطقًا وصامتًا (چي يو خبري كوي او په خبرو سره خلكو ته وعظ كوي، او بل په پټه خوله خلكو ته تبليغ كوي) فالناطق هو القرآن والصامت هو الموت، فاذا اشكل عليكم فارجعوا الى القرآن والسنة (كه تاسي ته يو مشكل پيښ سو يعني په امورو كي د دين نو رجوع وكړئ و قرآن ته چي يا به په عبارة النص يا په اشارة النص واقتضاء النص به هغه مشكل حل سي، او كه يې په قرآن كي نه كړئ پيدا ، يا سنت يعني احاديث قوليه يا فعليه ته رجوع وكړئ، او كه مو زړونو غلظت او قسوة پيدا كړی نو نرم يې كړئ بالاعتبار في حال الاموات، نو اول خو رسول الله ﷺ د سر له درده په تكليف ؤ و كان اخيرًا مريضًا (۱۸) يوم، خلک به په جماعت پوښتني ته ورتله ثم مات صلى الله عليه وسلم د دوشنبې په ورځ پر دوولسمه (۱۲) د ربيع الاول، ودفنوه ليلة الاربعاء (چهارشنبې په شپه في حجرة عائشة ﵂، او بعض رواتو وايي چي په شپه د سه شنبې دفن كړل سو.

په صحيح حديث كي راغلي دي چي كه چا ته يو مصيبت پيښ سو (يا يې پلار مړ سو يا يې ورور يا يې زوی وغيره) نو دي په ياد كړي مصيبت زما د وفات فانها افظع المصائب، ولنعم ما قال الشاعر:

اصبر لكل مصيبة وتجلد ...... واعلم ان المرء غير مخلد
واذا اعترتک وساوس بمصيبة ...... فاذكر مصابک بالنبي محمدٍ

**درويش وايي:** چي لله الحمد والمنة ومنه التوفيق والرحمة وعلى سيد رسله الصلوة والتحية وعلى آله وصحبه الكملة النجبية، تفسير د جزء ۲۳ په شپه د چهارشنبې پای ته ورسېدی، او ان شاء الله تعالى تفسير د جزء ۲۴ به د چهارشنبې په ورځ شروع سي.

اللهم منک واليک تباركت ربنا وتعاليت

بسم الله الرحمن الرحيم

# الجزء الرابع والعشرون

## فمن اظلم ۲۴

# تفسير ايوبي حنفي

حضرت مولانا محمد عبيد الله الايوبي

الحنفي النقشبندي القندهاري

تفسير ايوبي حنفي د نصيراحمد احمدي لخوا

سکين او pdf سو. د دعا محتاج احمدي! واتساپ

۰۷۴۹۸۴۹۵۶۹

مكتبة القرآة والتجويد
كاسي روډ كوټه بلوچستان

بسم الله الرحمن الرحيم

**درويش وايي:** چې تفسير د جزء (۲۴) من اجزاء القرآن الكريم تخمينًا پر اته بجې د ورځې د چهارشنبې اخيري د مياشتې د محرم الحرام سنه (۱۴۳۲هـ) شروع کېږي.

اللهم وفقني لاتمام تفسير هذا الجزء بالخير والصحة والسلامة واجعله لوجهک الكريم انک على كل شيئ قدير وبالاجابة جدير.

## فَمَنْ أَظْلَمُ مِمَّنْ كَذَبَ عَلَى اللَّهِ

څوک دی ډېر ظالم (کلمه د فاء د سببيت ده فان اختصام الكفار مع النبي ﷺ سبب لكونهم اظلم الناس والاستفهام للانكار يعني لا احد اظلم منهم) له هغه چا څخه چې پر خدای ﷻ دروغ وايي، يعني چې يا وايي خدای لره ولد سته يعني عيسىٰ ابن الله وعزير ابن الله والملائكة بنات الله بولي، يا وايي خدای لره شرکاء په عبادت کې سته چې بتان دي د مشرکانو.

## وَكَذَّبَ بِالصِّدْقِ إِذْ جَاءَهُ

او تکذيب کوي د صدق چې مراد څني قرآن کريم دی وغيره من المعجزات الواضحات، هغه وخت چې صدق دوی ته ورسېدی يعني من غير توقف وتأمل في شانه بلکې سره د دلائل قطعيه پر صدق د هغه تکذيب وکړي او پر قرآن مبارک يې حکم د اساطير الاولين وکړی، يا د کهانت يا د شعر نوم يې پر کښېښو، او پر معجزاتو يې نوم د سحر کښېښو، او عليه الصلوة والسلام ته يې نسبت د کاهن، شاعر، متقول او ساحر په نومانو سره وکړی.

## أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى لِلْكَافِرِينَ ﴿۳۲﴾

آيا نسته په دوږخ کې منزل او مقام د کافرانو لپاره؟

**پوه سه:** چې همزه لپاره د استفهام انکاري دی داخل دی پر حرف نفي، وقد تقرر ان النفي النفي اثبات، يعني سته منزل او ځای د کفارو لپاره.

**پوه سه:** چې په هغه آيت کې "انک ميت وانهم ميتون" بيا تر دې ځايه پورې تسلي ده و نبي کريم ﷺ ته على تکذيب القوم اياه والقرآن حتى چې عليه الصلوة

والسلام په انتقام کي د کفارو په فکر غمجن نه سي، تسلي په دې معنی ده چي جهنم کافي دی په انتقام کي د دوی.

وَالَّذِىْ جَآءَ بِالصِّدْقِ وَصَدَّقَ بِهٖٓ اُولٰٓئِكَ هُمُ الْمُتَّقُوْنَ۝

**پوهه سه:** چي مراد له "الذي آه" ځنځه عام مصدق دی تا چي علیه الصلوٰة والسلام او مؤمنانو ته شامل سي.

**ترجمه:** هغه څوک چي راتګ يې کړی دی په صدق سره (له صدق ځنځه مراد قرآن او راوړونکی يې علیه الصلوٰة والسلام دی) او د هغه کسانو تصديق يې کړی وي، مراد مؤمنان دي، دغه کسان له خدای ﷻ ځنځه بېرېږي (هم ضمير فصل لپاره د حصر دی)

**تنبيه:** له دې سببه چي په دې آيت کي "اولئک، هم او متقون" په صيغه د جمع راغلي دي، نو له هم دې سببه موږ وويل چي مراد له الذي جاء آه، ځنځه عام دی تاچي په الذي کي چي مراد علیه الصلوٰة والسلام او مؤمنان دي د علیه الصلوٰة والسلام او مؤمنانو هم يو لوی جماعت دی جمع پيدا سي.

**فائده:** د دې آيت په رڼا کي دا هم معلومه سوه چي په خپله علیه الصلوٰة والسلام هم د متصدقينو په ډله کي دی په جاء به سره، بل هو اول المصدقين بما جاء به كما في قوله تعالى آمن الرسول بما انزل اليه من ربه والمؤمنون الآية.

**روايات:** قال السدي" الذي جاء بالصدق هو جبرئيل" وصدق به محمد ﷺ تلقاه بالقول، وقال الكلبي" و ابو العالية" الذي جاء بالصدق هو رسول الله ﷺ وصدق به ابوبكر رضی الله عنه، لكن التعميم انسب، ولهذا قال مقاتل" وقتادة" الذي جاء بالصدق هو رسول الله ﷺ وصدق به الاتباع، قال ابن عباس رضی الله عنه يعني رسول الله ﷺ جاء بلا اله الا الله وهو المراد بالصدق وصدق به انتهى.

**پوښتنه:** خبر يې ولي جمع راوړی؟

**ځواب:** على ان المراد هو ومن تبعه كما في قوله تعالى: ولقد آتينا موسٰى الكتاب لعلهم يهتدون (يعني كتاب خو يوازي موسٰى" ته ورکړل سوی وُ، نو د يهتدون ضمير و چاته راجع دی؟ نو مراد دی او دده اتباع دي، كذا في هذه الآية)

لَهُمْ مَّا يَشَآءُوْنَ عِنْدَ رَبِّهِمْ ۚ ذٰلِكَ جَزَآؤُا الْمُحْسِنِيْنَ ۝

دوی لره یعني متقین لره هغه شی دی چي د دوی اراده ورته وسي او خوښ یې وي، سته په نیز د رب د دوی یعني په جنت کي (کذا قال المظهري) دغه مذکور في الآیة ثواب دی د مخلصینو په اعمالو کي.

**درویش وایي**: چي مظهري یوازي جنت ذکر کړی دی لکه چي فقیر تبعًا له وویل یعني في الجنة، لکن روح المعاني وایي لا في الجنة فقط، ولي چي بعض مایشاؤن لکه بخښنه د ګنهو و الامن من الفزع الاکبر وسائر اهوال القیامة انما یقع لهم قبل دخول الجنة.

**پوښتنه**: متقین خو د مخه ذکر سوي وه، نو څه حکمت د رب العزة دی چي ضمیر د لهم یې نه راوړی، بلکې اسم ظاهر چي لفظ د محسنین دی را یې وړی؟

**ځواب**: لپاره د تنبیه پر علت د لهم ما یشاؤن فافهم، او روح البیان هم لا في الجنة فقط عبارت ویلی دی علی خلاف المظهري والله اعلم.

لِيُكَفِّرَ اللّٰهُ عَنْهُمْ اَسْوَاَ الَّذِيْ عَمِلُوْا

چي پټ کړي (یعني خدای ﷻ په مغفرت سره هغه ډېر بد عمل د دوی تخصیص د اسوأ یې وکړی په ذکر سره للمبالغة في المغفرة لانه اذا کفر الاسوء فغیره اول.

**فائده**: په دې آیت سره رد دی پر معتزله وُ چي دوی وایي چي مرتکب د کبیره ګناه که بې توبې مړ سي ابدي ځای یې دوږخ دی بخښنه یا شفاعت یې څوک نسي کولای، وجه الرد: اسوأ ګناه کبیره ته وایي او په دې آیت کي د مغفرت وعده خدای پاک کړې ده، او بله نکته په راوړلو کي د اسوأ اشاره ودې ته ده چي دغه متقون چي ذکر سوه د دوی د غایت خوف من الله هر ګناه چي د دوی څخه صادره سي دوی یې اسوأ الذنوب بولي، او بعض مفسرین وایي چي صیغه د افعل چي اسم تفضیل ده لپاره د نفس زیادت ده لا علی ما اضیف الیه ای الذي عملوا، والتفصیل في روح المعاني بکلام طویل.

وَيَجْزِيَهُمْ اَجْرَهُمْ بِاَحْسَنِ الَّذِيْ كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ ۝

او دوی ته ورکوي ثواب د اعمالو د دوی، یعني چي خدای دوی ته ورکوي پر

عادي اعمالو حسنه د دوی پر اندازه د احسن د عملو د دوی ورکوي في زيادة الاجر وعظمه وذالک لفرط اخلاصهم في جميع الاعمال، او بعض مفسرين وايي چي احسن دلته لپاره د زيادت مطلق دی کما مر في الاسوء يعني لا باضافة الى المضاف اليه کما مر فافهم، او مقاتل" وايي يجزيهم المحاسن اعمالهم ولا يجزيهم بالمساوي.

أَلَيْسَ اللَّهُ بِكَافٍ عَبْدَهُ ۖ وَيُخَوِّفُونَكَ بِالَّذِينَ مِن دُونِهِ ۚ

استفهام لپاره د انکار دی پر حرف نفي چي ليس دی داخل سو، نو نفي د نفي مبالغه په اثبات کي ده يعني الله کاف ضرورة (عبده) المراد به محمد ﷺ دی چي فرد اکمل د عباد الله دی (ويخفونک) دا جمله عطف ده پر مضمون اليس الله بکاف تقديره الله کاف عبده، او کفار مکه بېروي تا په هغه بتانو سره چي دوی يې عبادت کاوه، يعني عليه الصلوة والسلام ته به دوی ويل چي زموږ د خدايانو څخه خوله ونسه، او دا مه وايه چي دوی نه و عابدون ته د دوی نفع رسولای سي او نه دفع د ضرر څني کولای سي، ولي که زموږ آله در ته په غضب سوه يا به دي لېوني کړي يا به دي دماغ درخراب کړي، کذا اخرج عبد الرزاق، په دې آيت کي تسلي ده و عليه الصلوة والسلام ته، ځکه چي په حديث شريف کي راغلي دي "من اصبح وهمو مه هم واحد کفاه الله هموم الدنيا والاخرة" ترجمه: که چا سهار کړی غمونه يې ټوله يو غم وُ (لکه د عليه الصلوة والسلام چي يو غم وُ يعني ايمان د قريشو د مکې) نو خدای ﷻ به يې کفايت او کفالت وکړي د هغه شخص د غمو د دنيا او آخرت، او د غسي خدای پاک هم وکړه چي د دنيا د ده غم چي اعلاء د کلمة التوحيد لآ اله الا الله په ټوله اهل مکه بلکي د ټولو عربو رفته رفته خدای پاک پای ته ورسول او په آخرت کي چي د عليه الصلوة والسلام غم د امت ورسره وُ په دې قول د رب عزوجل وعده ورکړه سوه "ولسوف يعطيک ربک فترضیٰ" او د هم محمود زيری پر وسو.

**درويش وايي:** چي په کشف الاسرار کي (چي د يو تفسير نوم دی په فارسي ژبه) وايي که اين ايت يعني "ويخوفونک آه" نازل شده درحق مصطفی ﷺ (لکه چي موږ يې د مخه بيان وکړی) وديگر بار درحق خالد بن الوليد رضی الله عنه نازل شده چنانچه اهل تفسير ميگويند که سورة الفاتحة دو بار نازل شده يکبار درمکه ويک بار درمدينه عند تحول القبلة الى الکعبة، ونزولش درحق خالد بن الوليد رضی الله عنه آنست که قومی از

مشرکان عرب درختی رابمعبودی گرفته بودند ورب العزة ان را سبب ضلالت ایشان گردانیده بود، او در بیخ ان درخت دیوی قرار گرفته بود ونام آن دیو عزیٰ بود و ان دیو کسی که عبادت آن درخت میکرد سخن میگفت ومردم درضلالت افتاده بودند. مصطفیٰ ﷺ خالد بن ولید ﷺ را امر فرمود تا آن درخت را از بیخ برآورد وزیر آن درخت دیو است آنرا بکشد، مشرکان آنجا گرد آمدند وخالد ﷺ را بترسانیدند که این کار نکند که عزیٰ ترا یا هلاک یا دیوانه کند، خالد ﷺ خبر ایشان بمصطفیٰ ﷺ رسانید ورب العزة درحق خالد ﷺ این ایت فرستاده ویخفونک آه، خالد ﷺ پس به پیش ان درخت رفت آن درخت را از بیخ بکند وزیر آن درخت یک شخصی یافت عظیم سیاه گریه میکرد خالد ﷺ ان را کشت پس خبر که خالد ﷺ بمصطفیٰ ﷺ آورد علیه الصلوٰة والسلام گفت تلک عزیٰ ولن تعبد ابداً انتهی، والله اعلم بالصواب، بنده میگوید من نه انکار میکنم ونه این کار میکنم، والعلم عند الله العظیم.

وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ ۝

څوک چې خدای ﷻ گمراه کړي، یعني له کفایت څخه د خدای ﷻ یعني لرسول الله ﷺ او بېرول دده بما لایضر ولا ینفع، نسته هغه لره و حق ته د رسېدلو لار.

وَمَنْ يَّهْدِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ مُّضِلٍّ ؕ اَلَيْسَ اللّٰهُ بِعَزِيْزٍ ذِي انْتِقَامٍ ۝

او چاته چې هدایت وکړي خدای ﷻ نو نسته هغه لره گمراه کونکی، ولې چې د خدای ﷻ د فضل رد کونکی نسته، الاستفهام للانکار و نفي النفي اثبات (یعني الله ﷻ غالب ینفع ویثبت من شاء لامرد لحکمه) وهذا لاولیائه ای المؤمنون او مالک د انتقام دی لاعدائه ولا ناصر لهم یخلطهم من عقابه.

وَلَئِنْ سَاَلْتَهُمْ مَّنْ خَلَقَ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضَ لَيَقُوْلُنَّ اللّٰهُ ؕ

او که ته یا محمد (ﷺ) سوال وکړې له کفارو څخه د مکې، چې چا پیدا کړي دي اسمانونه او مځکه، دوی به وایي حتمًا چې خدای ﷻ پیدا کړي دي ولې چې بدهي اولي خبره ده چې بتان د دوی صالح د دې خلقیت نه دي او اهل مکه هم په دې اعتراف کاوه چې دا خالقیت خالصةً لله دی.

**پوه سه:** چې یو سبب د جمع راوړلو د اسمانو او مفرد راوړه د مځکې دادی

چي اسمانونه چي اووه طبقې دي یو له بله سره مختلف الماهیة دي او مځکه که څه هم اووه طبقې ده لکن حقیقت یې یو دی په عوارضو سره اختلاف ده، نو اسمانونه لکه انواع د حیوان یعني مختلف الماهیة دي او د مځکې طبقات لکه نوع د انسان مختلف بالعوارض ده، ولا تنس هذه الدقیقة في جمیع القرآن.

قُلْ اَفَرَءَيْتُمْ مَّا تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

ته ووایه یا محمد (ﷺ) وروسته تر اعتراف ددوی لپاره د الزام ددوی (افرأیتم) مجموع په معنی د اخبروني دی بعد ما اعترفتم بان خالق العالم هو الله وحده لاشریک له في خالقیته تعالی ذالک، تاسي د څه شي عبادت کوئ یعني الاوثان بېله خدایه (پوه سه! چي عائد و ماته محذوف دی ای تدعونه)

اِنْ اَرَادَنِيَ اللّٰهُ بِضُرٍّ هَلْ هُنَّ كٰشِفٰتُ ضُرِّهٖٓ

که اراده وکړي ماته خدای په یو ضرر سره لکه شدت او مرض، آیا هغه یعني ستاسي بتان دفع کونکي دي د ضرر د خدای ﷻ زما څخه؟

اَوْ اَرَادَنِيْ بِرَحْمَةٍ هَلْ هُنَّ مُمْسِكٰتُ رَحْمَتِهٖ

یا اراده وکړه خدای ماته په رحمت سره لکه صحت او عافیت آیا کولای سي ستاسي بتان منع د رحمت د خدای ﷻ له ما څخه؟ یعني ستاسي د اعتراف سابق چي خالق العالم خدای فقط دی باید تاسي انکار وکړئ له دې څخه چي زموږ خدایان قادر دي پر کشف الضر او امساک الرحمة، مقاتل وایي چي داغه پوښتنه علیه الصلوۃ والسلام ددوی څخه وکړه دوی سکوت مختاره کړی لان القول بذالک یرد علیهم ابناء خالتهم.

**درویش وایي:** چي دا یوه کنایه ده، ولي چي زامن د خاله ددوی خو پخپله دوی دي یعني ځانونه په خپله ملامت وبولي.

قُلْ حَسْبِيَ اللّٰهُ عَلَيْهِ يَتَوَكَّلُ الْمُتَوَكِّلُوْنَ ۝

ته ورته ووایه کافي دی خدای ما لره په رسولو کي د خیر او په دفع کي د ضرر، بتان ددوی په دې کفایت کي پوچ دي، خاص پر خدای باندي تکیه کوئ (نو جار او مجرور د تقدیم لپاره د حصر دي)

**پوه سه**: چي له متوكلون څخه مراد مؤمنان دي ولي چي مؤمنان په دې پوهيږي چي ضار او نافع يوازي خداى ﷻ دى وبس، وجه د تعبير د مؤمنانو څخه په متوكلون سره اشاره ودې ته ده چي شان د مؤمن بايد توكل وي.

**فائده**: توكل د اسبابو سره منافي نه دى مثلاً يو سړى مريض وي دوا كوي، يو سړى مسكين وي مزدوري كوي الى غير ذالک يعني د اسبابو سره سره تكيه او توكل پر خداى ﷻ، چنانچه گفته اند..... ع: كشت كن په تكيه بر جبار كن.

په حديث شريف كي راغلي دي چي يو له صحرائي مؤمنانو د عليه الصلوة والسلام د زيارت او ملاقات لپاره راغلى ؤ، نو له ډېر محبت او له عشقه د اوښ څخه كښته سو او اوښ يې پرېښو و مسجد نبوي ته ورغلى، خير وروسته عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي پر څه شي راغلى يې يعني پر پښو راغلى يې كه پر دابه؟ هغه سړي ورته وويل چي پر اوښ راغلى يم، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي نو اوښ دي څه په وكړه، هغه ورته وويل چي د خداى پر توكل مي هسي پرېښو، عليه الصلوة والسلام ورته وويل ورسه ځنگنونه يې وتړه بيا توكل پر خداى ﷻ وكړه، او كما قال عليه الصلوة والسلام، فارسي مثل دى:

چو شير را بينى و ازو بترسى پيش او، درزمين بغلط وتواضع كن تا بر شما شير اگرچه عظيم بود اماده كريم بود.

**حكايت**: ان سفينة مولى رسول اللهﷺ اخطاء الجيش بارض الروم واسر (بند كړه سو يعني د روميانو په لاس) دى وايي: فهربت يلتمس الجيش فاذا باسد (ناگاه د شپې په دوران كي د يوه غره په لمن كي زمرى راباندي پېښ سو، ما ورته وويل) يا ابا الحارث (چي د زمري مشهور كنيت دى عند العرب) انا سفينة مولى رسول اللهﷺ فكان امري كيت وكيت (زما حال داسي او داسي ؤ يعني خپل حال مي زمري ته ووايه) فاقبل الاسد يتبصبص (زمرى زما خوا ته راهي سو او لكى يې ښوروله چي علامه د صلح د حيوان ده) حتى قام الى جنبي (چي ما داسي وفهمول دده له دريدو څخه چي راباندي سپور سه، نو زمرى راهي ؤ داغه رنگه حتى سمع صوت الجيش فقام (اشاره يې دا وه چي كښته سه لښكر ته راورسېدو، نو زه كښته سوم زمرى راهي سو ولاړى)

**فوائد:** (۱) حيوان مفترس لايقدر على الاضرار اذا كان المرء في عصمة الله فكيف يضر الجمادات يعني بتان.

(۲) ان طاعة الله والتوكل عليه سبب النجات من المهالک.

(۳) ان الاستشفاع برسول الله ﷺ والتقرب اليه بالايمان والتوحيد والعمل بسنته يهدي الى سواء الصراط كما هدى سفينة ؓ.

**درويش وايي:** چې سعدي شيرازي ؒ په بوستان کې وايي چې يوه ورځ د ځنګله نه خوا ځخه يو سړی راووتی چې پر پړانګ سپور ؤ، چنان حول ازان حال بر من نشست که پای گريختن به بست، سعدي ؒ وايي چې هغه سړی يعني د پړانګ سپور په ما وفهمېدی چې سعدي وارخطاء سو، نو زما و برابر ته چې راغلی تبسم کنان دست بر لب گرفت که سعدی مدار آنچه ديدی شگفت:

تو از حکم داور گردن مپيچ ......... که از حکم تو گردن نه پيچند هيچ

**قُلْ يٰقَوْمِ اعْمَلُوْا عَلٰى مَكَانَتِكُمْ اِنِّيْ عَامِلٌ ۚ فَسَوْفَ تَعْلَمُوْنَ ۙ﴿۳۹﴾**

ته ووايه ای قومه زما (نو کسره د ميم عوض د مضاف اليه ده يعني قومي) تاسي عمل کوئ پر حالت چې شرک او معاصي دي، ژر دی چې تاسي به پوه سئ.

**فائده:** اصل مکانت خو اسم مکان دی استعير ههنا للحال کما ان حيث اسم زمان دی استعور للمکان في بعض المواضع.

**پوهسه:** چې په آيت کې امر بالشرک نه دی بلکې تهديد دی کما يدل مابعده (انی عامل) ای مکانتي ای على حالي من التوحيد والتبليغ فحذف على مکاني للاختصار والاشعار على ان حالهٗ لاتقف على حد بل الله سبحانه يزيده کر الدهور ومر الازمان قوة ونصرة فلذا توعدهم بکونهٗ منصوراً عليهم في الدارين بقوله تعالى.

**مَنْ يَّاْتِيْهِ عَذَابٌ يُّخْزِيْهِ وَيَحِلُّ عَلَيْهِ عَذَابٌ مُّقِيْمٌ ﴿۴۰﴾**

چاته به راځي هغه عذاب چې دی پر ذليل سي کما في يوم بدر (مقيم) ای دائم وهو عذاب النار في يوم القيامة)

**اِنَّآ اَنْزَلْنَا عَلَيْكَ الْكِتٰبَ لِلنَّاسِ بِالْحَقِّ ۚ**

موږ نازل کړی دی پر تا باندې چې قرآن جليل الشان دی لپاره د خلګو (کلمه د

لام لپاره د نفع دی چي دوی نفع پر واخلي او راهنمايي د دوی وکړي و مصالحو ته د دوی په دنيا او اخرت کي (بالحق) ای متلبسًا ببيان الحق.

فَمَنِ اهْتَدٰى فَلِنَفْسِهٖ ۚ وَمَنْ ضَلَّ فَاِنَّمَا يَضِلُّ عَلَيْهَا ۚ

که څوک په هدايت د قرآن عمل وکړي هغه د خپلي نفع لپاره دی يعني يعود نفعه من الامن من عذاب النار، او که څوک ګمراه سي يعني په قرآن کريم سره يعني په نه پوهېږي د قرآن کريم عمل ونه کړي نو نه دی عذاب او ضرر د هغه ضلال مګر پر دده يعني دده ضلال و بل چا ته سرايت نه کوي، کريمه: ولاتذر وازرة وزر اخرٰى.

وَمَآ اَنْتَ عَلَيْهِمْ بِوَكِيْلٍ ۟

او نه يې ته يا محمد (ﷺ) پر دوی باندي ګمارل سوی چي ته به يې حتمًا مسلمانانوې، يعني ما ته امر کړی يې په رسولو سره د آيات الهيه ؤ سره و دوی ته و قد فعلت، نو د دوی ضلال تا ته تاوان نه رسوي، په صحيح حديث کي راغلي دي: ان مثل ما بعثني الله به من الهدٰى والعلم (ای بامور الدنيا والآخرة) کغيث لکه باران چي مځکي ته ورسېږي يو ه يو ه مځکه ښه خوړه او پسته مځکه وي چي او به د باران جذب کړي او هغه تخمونه چي په دې مځکه کي موجود وي ښه وابنه راشنه کړي او که انسانانو تخم پکښي پاشلی ؤ لکه غنم وغيره هغه هم ښه شان پکښي راشنه سي، ومنها اجادب يعني کلکه مځکه وي چي اوبه خو نه جذبوي لکن په عين حال کي ډب مځکه وي چي اوبه پکښي دريږي، نو ددې اجادب مځکي پر اوبو که څه هم وابنه خو نه راشنه کيږي لکن پر ولاړو اوبو يې خلګ نفع اخلي يعني څښېني يې او بوده ګان پر اوبوي، او که باران بل ځای وه اوريږي چي ښوی ډبري وي چي نه وابنه راشنه کوي او نه اوبه خوندي کوي لکه دويم قسم مځکه، نو عليه الصلوة والسلام وويل چي دا مثال دی د فقه في دين الله (چي علم نافع حاصل کړي په دين کي د خدای ﷻ ونفعه الله بما بعثني به يعني پخپله هم عمل په وکړي او نور و خلګو ته يې هم تعليم کوي، د اول قسم مثال دی، او مثال دی د هغه عالم چي په علم عمل نه کوي لکن نورو خلګو ته ښوونه کوي چي هغه دده په تعليم عمل کوي، دا د اجادب مځکي مثال دی، ومثل من لم يرفع اليه ای القرآن رأسًا ای لم يلتفت اليه

بالعمل ولم يقبل هدى الله الذي ارسلت به، دا مثال دی د دریم قسم مځکې چې
فیعان یې نوم دی انتهى الحدیث مع الترجمة او کما قال رسول الله ﷺ.

**درویش وایي:** چې د ملایانو د اوسني زماني همدغه درې حاله دي فتدبر فیه.

# اَللّٰهُ يَتَوَفَّى الْاَنْفُسَ حِيْنَ مَوْتِهَا وَالَّتِيْ لَمْ تَمُتْ فِيْ مَنَامِهَا ۚ

مونږ قبض کوو روحان د انسانانو د ابدانو څخه د دوی یا پر داسې ډول چې تعلق د روحانو له ابدانو سره بالکلیة ظاهرًا و باطنًا دا په وخت د مرګ د انفسو، او یا داسې قبض کوو چې روحانو لره بعض تصرفات نسې پاتې ظاهرًا لکه لیدل اوریدل او حرکت ارادي، دا پر داسې ډول قبض چې روحان متوجه وګرځول سي و عالم مثال ته چې په پښتو یې خوبونه بولي د عالم الشهادة لپاره د استراحت په خواب د غفلت د عالم الشهادة څخه.

**بوه سه:** چې په معنی اول حقیقت دی د قبض او توفی بالمعنی الثاني مجاز دی.

**سوال:** علماء په یوه خوله وایي چې جمع په منځ کې د حقیقت او د مجاز في اطلاق واحد نه ده روا؟

**ځواب:** دا جمع د حقیقت بخصوصه او د مجاز بخصوصه نه ده بلکې په اصول الفقه کې دې ته عموم مجاز وایي یعنې مراد معنی ثالث وي چې حقیقت او مجاز دواړه پکښې داخل وي وهو ههنا مطلق القبض چې قبض ظاهرًا وباطنًا هم پکښې داخل وي کما في حالة الموت او قبض ظاهرًا فقط هم تر لاندې دی لکه د خوب په حالت کې.

**درویش وایي:** چې عموم مجاز په ډېرو ځایو کې په عربي ژبه کې سته کما لایخفی علی من یعرف اللغة العربیة، او بل جواب دا دی چې انسان لره یو نفس او بل روح سته، نو د خوب په دوران تخرج النفس ویبقی الروح، حاصل دا دی چې نفس چې په هغه سره تعقل د شیانو او تمییز د خره او غوایي او زید او عمرو مثلًا په کېږي هغه باقي وي او په وخت کې د مرګ دواړه چې نفس او روح دي بدن ته خیرباد وایي، د دې جواب بنا خو پر دې ده چې نفس لره د دې حقیقي معناوي سته چې یوه معنی نفس دراکه دی او بله معنی یې نفس تنفس ده، نو پر دې تقدیر خو عموم د مشترک لازمېږي وهو غیر جائز ایضًا لکه جمیع بین الحقیقة والمجاز، والجواب بالتقدیر بان یقال الانفس التي لم تمت آه فافهم.

فَيُمْسِكُ الَّتِي قَضٰى عَلَيْهَا الْمَوْتَ وَيُرْسِلُ الْأُخْرٰى إِلٰى أَجَلٍ مُّسَمًّى ۭ

نو خدای جل جلاله خوندي كوي يعني بدن ته يې نه ايله كوي تر نفخه ثاني پورې چې نفخة البعث يې بولي يعني پس له مرګه ژوند، او هغه نفس وقت النوم بير ته را اله كوي للتصرف في الابدان يعني چې نائم د نوم ويښ سي (الى اجل مسمى) اى الوقت المعلوم لموته.

سنت طريقه د خوب او د ويښې: په حديث شريف كي د بخاري راغلي له براء بن عاذب رضي الله عنه څخه چې نبي ﷺ به بيدېدی او پر ځای به پرېوتی، نو راسته لاس به يې تر بارخو مبارک لاندي كښېښو، وروسته به يې داسي وويل: اللهم بک اموت واحياء (ستا په قدرت زه بيدېږم او را وينبېږم) او چې له خوب څخه به را ويښ سو داسي به يې وويل: الحمد لله الذي احيانا بعد ما امتنا واليه النشور (اى البعث بعد الموت) وعن ابى هريرة رضي الله عنه برواية البخاري قال قال رسول الله ﷺ اذا آوى احدكم الى فراشه (چې ورسي يو ستاسي څخه خپل فرش ته د بيدېدو لپاره يعني كمبله، ټاټ، بوريا وغيرها) فلنيض فراشه بداخلة ازاره (نو دي پاک كړي فرش لكه سرې چي يو شى جارو كوي يا دي وڅنډي په داخل سره د لنگ) فانه لايدري من خلفه عليه (ولي چي دی نه دی خبرُ چي ده ده تر وينبېدو وروسته به پر فراش څه شى ده ده په عوض كي به راغلى وي يعني يا لړم يا مېږی يا خاشې مثلاً) ثم يقول باسمک ربي وضعت جنبي وبک ارفعه ان امسكت نفسي فارحمها وان ارسلتها فاحفظها بما تحفظ به عبادک الصالحين.

**پوښتنه:** په دمخه حديث كي د بيدېدو لپاره بل قسم دعاء نه سوه تېره، نو جمع د دوارو به څرنګه كېږي؟

**ځواب:** وجه الجمع ګاهي چنين و ګاهي چنان ده، يا ګاهي دي هغه دمخه دعا كوي او ګاهي اوسنى دعاء كوي.

إِنَّ فِي ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يَّتَفَكَّرُوْنَ ۝

په تحقيق په دغه يكباره توفى او په امساک ګاهي او ارسال كي ګاهي (په تأويل د مذكوره تأمل) دلائل د قدرت تامه د خداى او پر حكمت د رب حكيم

مطلق او پر شمول د قدرت او رحمت دده، د هغو خلګو لپاره چي دوی په دغو کیفیاتو کي د تعلق د نفوسو په ابدانو پوري او توفی د هغو بالکلیة عند الموت او په بقا کي د نفسو يعني چي فنا د ابدانو د دوی نفوس نه فنا کېږي او د بعض نفوسو په سعادت کي او د بعض په شقاوت کي او په دې کي هم فکر وهي چي توفی احیانًا و ارسال احیانًا الی انقضاء الاجل المعلوم، نو چي په دې اشیاؤ کي دوی فکر وهلی وای، نو دا به يې يقين سوی وای چي قادر پر دغو تحولات قادر پر بعث الابدان بعد الموت هم دی.

## اَمِ اتَّخَذُوْا مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ شُفَعَآءَ

دا آيت په کفارو کي د مکې نازل سوی دی چي دوی به ويل چي دا بتان شفاعت کونکي دي عند الله، نو الله تعالی پر دوی انکار وکړی په ام اتخذوا سره.

**پوه سه**: چي کلمه د ام منقطعه ده په معنی د بل او همزه د انکار ده.

ترجمه: بلکې دوی ګرځولي دي بتان شفعاء خپل من دون الله ای من غير اجازة الله، کريمه: من يشفع عنده الا باذنه.

## قُلْ اَوَلَوْ كَانُوْا لَا يَمْلِكُوْنَ شَيْـًٔا وَّلَا يَعْقِلُوْنَ ﴿٤٣﴾

همزه لپاره د انکار دی او واو د عطف دی پر مقدر کما هو القانون النحوي وقد مر مرارًا، والتقدير يشفعون لکم ولو کانوا علی هذه الصفة چي دوی مالکان د هيڅ شي نه دي او نه هم په هيڅ شي پوهېږي ولي چي ټوله جمادات دي.

**درويش وايي**: چي که فرضًا دوی يعني کفار مکه ووايي چي مورږ عبادت کوو دا بتان د هغو مقربينو بند ګانو د خدای تماثيل يعني تصويرونه دي، خدای هغه رد کړه.

## قُلْ لِّلّٰهِ الشَّفَاعَةُ جَمِيْعًا

ته ورته ووايي چي شفاعت د خدای ﷻ په اذن پوري اړه لري، په دې آيت کي خدای ﷻ د هغه رد په دې قول سره وکړی او تقرير يعني تائيد يې وکړی د دمخه آيت يعني قل لله الخ، آيت دا دی.

## لَهٗ مُلْكُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ ثُمَّ اِلَيْهِ تُرْجَعُوْنَ ﴿٤٤﴾

خاص خدای لره ده بادشاهي او تصرف او خلق د اسمانو او د ځمکي يعني هيڅ

څوک په هيڅ شي کي خبره نسي کولای مګر نه په اراده او رضا دده فهو مالک الشفاعة دون الاصنام ولو کانت تلک الاصنام تماثيل المقربين الى الله فرضًا (ثم اليه ترجعون) وروسته يعني تر نفخة الثانية تاسي و خدای ﷻ ته راجع کړه کيږئ يوم القيامة نو هوري ملک حقيقةً د خدای ﷻ دی لا ملک مجازي لغيره تعالى كما في الدنيا حتى چي په هغه ورځ به اعلان وکړل سي، لمن الملک اليوم؟ فلا يجيبه احد فيقول الله لله الواحد القهار، اوس خدای ﷻ بيان کوي د کافرانو د مکې د حال.

وَإِذَا ذُكِرَ ٱللَّهُ وَحۡدَهُ ٱشۡمَأَزَّتۡ قُلُوبُ ٱلَّذِينَ لَا يُؤۡمِنُونَ بِٱلۡأٓخِرَةِۖ

او چي ذکر کړل سي نوم د خدای ﷻ يوازي يعني لا اله الا الله نفرت کوي او قبض سي زړونه د هغو کسانو چي ايمان نه لري پر آخرت، والمراد بهم المشركون.

وَإِذَا ذُكِرَ ٱلَّذِينَ مِن دُونِهِۦٓ إِذَا هُمۡ يَسۡتَبۡشِرُونَ ۝٤٥

او هغه وخت چي ذکر کړل سي هغه شيان چي ماسوا د خدای ﷻ څخه دي يعني بتان، نو په دغه وخت کي دوی يعني کفار مکه خوشاله سي.

**درويش وايي:** چي مظهري ؒ په نقل د بغوي ؒ په دې آيت کي وايي چي مقاتل او مجاهد ؒ وايي چي يوه ورځ عليه الصلوة والسلام د کعبې پر مقابل سورة والنجم تلاوت کاوه چي په هغه سورت کي والـلات والعزٰى راغلي دی، شيطان دده د قرائت په دوران کي داسي وويل چي کافرانو هم واوريدل تلک الغرانيق العلى وان شفاعتهم لترتجى، نو کفار خوشاله سوه او نارې يې کړې لقد صالحنا محمد.

**درويش وايي:** چي دا قصه په ډېر تفصيل سره په بل ځای کي تېره سوې ده.

**درويش وايي:** چي البيضاوي ؒ بالغ في الامرين حتى بلغ الغاية فان الاستبشار ان يمتلى قلبه سرورًا حتى ينبسط له بشرة وجهه (يعني اثر د خوشالي يې پر مخ ښکاره سي) والاشمئزاز ان يمتلى غمًا وعضبًا حتى ينقبض اديم وجهه انتهى.

قُلِ ٱللَّهُمَّ فَاطِرَ ٱلسَّمَٰوَٰتِ وَٱلۡأَرۡضِ عَٰلِمَ ٱلۡغَيۡبِ وَٱلشَّهَٰدَةِ أَنتَ تَحۡكُمُ بَيۡنَ عِبَادِكَ فِي مَا كَانُواْ فِيهِ يَخۡتَلِفُونَ ۝٤٦

ته ووايه يا محمد يا الله پيدا کونکی يې د اسمانو او د ځمکي، علم لرونکی پر غيب او پر ښکاره.

**درویش وايي:** چي اصل د اللهم یا الله وُ حرف نداء يې ځني حذف كړى لكثرة نداء الله بهذه الكلمة عوض يې ميم مشددة راوړى په اخير كي اللهم سو، لكن دا حذف او ابدال له خواصو څخه د لفظ جليل دى يعني په نورو نومانو كي د خداى ﷻ داسي نه ده روا. كذا قال العلماء اى خدايه چي خالق د اسمانو او مځكي يې او په غيب يعني عن الناس او په حاضرو خلكو ته عالم يې.

**پوه سه:** چي خداى ﷻ خپل رسول ﷺ امر كړى چي التجاء او زارى كوه خداىٰ ته چي عليه الصلوة والسلام حيران وُ په امر كي د كفارو د مكې، وعجزه عن عنادهم واذيتهم له ﷺ او ډېر سخت طبعيت يې دده سره پر كار اچولى وُ.. بيت:

چون فرود آيد بلا بى دافعي ........ چون تضرع نبود ديگر شافعي

ترجمه: ته حكم كوې په منځ كي د بنده ګانو خپل اى بين المحق والمبطل، نو مرسته كوي د محق سره او رسوا كوي مبطل په هغه شي كي چي ددوى پكښي اختلاف دى يعني التوحيد والشرك. له ابى سلمة ﵁ څخه روايت دى چي ما سوال وكړى له عائشة ﵂ څخه چي په څه شي سره رسول الله ﷺ د شپې لمونځ يعني تهجد شروع كاوه؟ دې ﵂ راته وويل كان يقول اللهم رب جبرئيل وميكائيل واسرافيل فاطر السموٰات والارض عالم الغيب والشهادة ان تحكم بين عبادك فيما كانوا يختلفون اهدني لما اختلف فيه من الحق باذنك انك تهدي من تشاء الى صراط مستقيم.

**درویش وايي:** چي مقصود له امر څخه بقوله تعالى "قل اللهم آه" بيان د حال د كافرانو دى او وعيد ددوى دى، و تسلية نبيه الاكرم ﷺ او دا ورته ويل دي چي ستا سعي معلومه ده او مقبوله ده عند الله عزوجل. او تعليم دى مؤمنانو ته چي په وخت كي د سختي التجاء او زارى، و خداى ﷻ ته كوئ باسمائه العظمىٰ، ولله در اى الخير الكثير الربيع بن خيثم" چي له ده څخه چا پوښتنه وكړه په باره كي د قتل د حمزة ﵁، نو ده سره ساه وكښل وتلا هذه الآية "قل اللهم آه".

**وَلَوْ اَنَّ لِلَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مَا فِى الْاَرْضِ جَمِيْعًا**

**فائده:** چونكه لو حرف شرط دى د دخول يې پر ان نه دى روا، نو له دې كبله بعض مفسرينو يې تقدير داسي بيان كړى دى لو ثبت ان الخ، ترجمه: كه چېري واى هغه كسانو لره چي ظلم يې كړى دى هغه شيان چي په مځكه كي دي ټول.

**پوه سه:** چې کلمه د لو امتناعیه ده مثل لو کان زید حمارًا لکان ناهقًا یعني سره د فرض ددې محال چې ما في الارض ومثله معه د کافرانو ظالمانو هم ملک سي لابه هم دوی له عذابه د ورځي د قیامت په فرضي فدیه سره به نه وای خلاص سوي وهذا وعید شدید او اقناط بلیغ لهم من الخلاص بهذه الفدیة.

**وَمِثْلَهُۥ مَعَهُۥ لَافْتَدَوْا۟ بِهِۦ مِن سُوٓءِ ٱلْعَذَابِ يَوْمَ ٱلْقِيَٰمَةِ ۚ**

او مثل د هغه سره د ما في الامور دوی به د ځانو فدیه ګرځولې وای د شدید عذاب په ورځ د قیامت کي.

**وَبَدَا لَهُم مِّنَ ٱللَّهِ مَا لَمْ يَكُونُوا۟ يَحْتَسِبُونَ ۝**

او ښکاره به سي دوی ته هغه عذاب چې دوی یې په دنیا کي ګمان نه کاوه بلکې منکر وه، ولي چې دوی خو بعث بعد الموت نه مانه او نه یې هم ثواب بالجنة منی او نه یې هم عذاب بالنار مانه.

**فائده:** په دې آیت کي مبالغه شدیده ده په وعید کي د ظالمانو کما في قوله تعالی للمؤمنین بالوعد والثواب، قال عزوجل فلا تعلم نفس (ای مؤمنة) ما اخفی له من قرة اعین، مقاتلؒ وایي ظهر للظالمین حین بعثوا ما لم یحتسبوا في الدنیا انه نازل بهم في الآخرة، او بعض وایي چې مراد دادی چې ددوی خیال داؤ چې بتان به زموږ شفاعت وکړي او هغسي نه وسوه، او یا به دوی ویل که بعث بعد الموت ؤ، او ثواب او عقاب ؤ، نو موږ به احسن حالاً یو تر مؤمنانو کما في الدنیا لکن هغسي هم ونه سوه بلکې د عذاب شدید في النار سره مخامخ سوه.

**وَبَدَا لَهُمْ سَيِّـَٔاتُ مَا كَسَبُوا۟ وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا۟ بِهِۦ يَسْتَهْزِءُونَ ۝**

او ښکاره به سي دوی ته هغه بد عملونه ددوی من الشرک والظلم علی اولیاء الله تعالی هغه وخت چې ددوی عملنامې په چپه لاس یا وراء ظهر هم دوی ته توزیع سي، او احاطه به وکړي پر دوی هغه عذاب النار چې دوی به په دنیا کي په هغه پسخند واهه، یعني چې مسلمانانو به دوی ته بیان کړی دوی به پر خندل او استهزاء په یې په کوله.

**پوه سه:** چي کلمه د ما یا موصوله ده او عائد یې محذوف دی ای الذي یستهزءون به (هذا هو العائد المحذوف) یا ما مصدریه ده فافهم.

فَإِذَا مَسَّ الْإِنسَانَ ضُرٌّ دَعَانَا

چي ورسېږي انسان ته (مراد له انسان څخه جنس انسان دی په اعتبار د اغلب افرادو دده) یو ضرر لکه فقر یا مرض وغیر ذالک موږ ته خواست کوي په دفع کې د هغه ضر، یعني له بتانو څخه دفع نه غواړي، ولي دافع الضر خو فقط خدای ﷻ دی لیس الا هو.

**پوه سه:** چي دا جمله عطف ده پر هغه جمله واذا ذکر الله وحده الی اخیره.

**پوښتنه:** عطف بالفاء یې د څه حکمت لپاره وکړی؟

**ځواب:** لپاره د بیان د تناقض د دوی په دې جمله او د دوی د د منځه حال تر منځ چي د منځه حال خو د دوی دا ؤ چي ذکر الله وحده اشمأذت قلوبهم او چي ذکر د بتانو به مخ ته راغلی اذا هم یستبشرون، اوس چي ضر دوی ته ورسېدی معامله یې بالعکس کړه چي من اشمأذوا به (یعني خدای ﷻ ته خواست کوي) دون من استبشروا به ته (یعني چي بتان دي)

**پوه سه:** چي د معطوف او د معطوف علیه تر منځ جملې جمل معترضه دي.

ثُمَّ إِذَا خَوَّلْنَاهُ نِعْمَةً مِّنَّا

وروسته چي موږ ورکوو هغه کافر ته چي زموږ څخه یې غوښتل او خواست د کشف الضر یې کاوه، یو نعمت زموږ له خوا څخه پر مبنی د تفضل بالعبادة.

**پوه سه:** چي تخویل خاص په نعمت پوري دی، کذا في کتب اللغة.

قَالَ إِنَّمَا أُوتِيتُهُ عَلَىٰ عِلْمٍ

دغه کافر وایي چي ماته چي دا نعمت یعني مال وغیره چي ورسېدی په سبب ددې چي زه د تجارت او د کسب په لارو چارو بنه پوهېدم یعني دا نه وایي چي خدای راکړی، او د خدای ﷻ احسان یې منلی وای او د شرک قید د هغه نعمت یې وپښو ته اچولی وای کما قیل: النعمة صید وشکرها قید، او یا یې ترجمه داده چي زما علم ؤ پر دې چي ژر دی چي زه به نعمت پیدا کرم ولي چي زه یې مستحق یم، وبالفارسیة: خدا دانست که من مستحق این نعمت هستم،

**درویش وایي:** چي والانسب بحال الکافر المعنی الاول کما لایخفٰی.

بَلْ هِيَ فِتْنَةٌ وَّلٰكِنَّ اَكْثَرَهُمْ لَا يَعْلَمُوْنَ

بلکې دا نعمت (فتنة) یعني امتحان دی د خدای له خوا څخه چي ته یې شکر نه وایي سبب د عذاب ستا به وګرځي، لکن ډېر خلک چي کفار دي په حکمت الهي نه پوهېږي.

قَدْ قَالَهَا الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ

ویلې ده دغه کلمه (یعني انما اوتیته علی علم) هغه کسانو چي تر دوی دمخه وه، یعني تر کفارو د مکې یا نور کافران د زمانې د علیه الصلوة والسلام، قال مقاتلؒ یعني قارون حیث قال انما اوتیته علی علم مني.

**سوال:** قارون خو یو سړی وُ، نو ضمائر د جمع څرنګه ورته راجع سوه؟

**ځواب:** ضمائر د جمع راجع دي و قارون او و من رضی بقول قارون.

**درویش وایي:** چي فقیر قریبًا وویل چي توجیه اول انسب ده، دا آیت د هغې خبرې تائید کوي کما لایخفٰی.

فَمَآ اَغْنٰى عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا يَكْسِبُوْنَ

پس فائده ونه کړه یعني قارون او اتباعو ته دده هغه اموالو چي دوی کسب کړي وه، قال الله تعالی في بیان حال اموال قارون: من الکنوز ما ان مفاتحه لتنوء بالعصبة اولی القوة.

فَاَصَابَهُمْ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا

نو ورسېده دوی ته جزاء د ما کسبوا.

**پوښتنه:** جزاء د بد عمل خو سیئه نه ده، نو سیئات کلمه څرنګه استعمال سوه؟

**ځواب:** دا استعمال لپاره د مقابلې راغلی دی نحو جزاء سیئة سیئة بمثلها.

وَالَّذِيْنَ ظَلَمُوْا مِنْ هٰٓؤُلَآءِ سَيُصِيْبُهُمْ سَيِّاٰتُ مَا كَسَبُوْا وَمَا هُمْ بِمُعْجِزِيْنَ

او هغه کسان چي ظالمان دي یعني کافران دي د دغو کسانو څخه چي اهل مکه دي، ژر دی چي وبه رسېږي دوی ته جزاء د سیئاتو د ما کسبوا لکه د مخه کفارو ته چي رسېدلي وه، او دوی خدای نسي عاجزه کولای له ما اراد څخه.

**درویش وایي:** چي کفارو د مکې اووه کاله قحط و رسېدی په سبب د ښېرا د علیه الصلوة والسلام، اللهم اعني بسبع کسبع يوسف، او رئيسان د دوی اوویا کسه وه په شمول د فرعون الامة ابو جهل په بدر کي ووژل سول، و ادخلوا النار الا من تاب وآمن منهم ای کفار مکة.

## اَوَلَمْ يَعْلَمُوْٓا اَنَّ اللّٰهَ يَبْسُطُ الرِّزْقَ لِمَنْ يَّشَآءُ وَيَقْدِرُ ؕ

آيا نه پوهېږي کفار د مکې چي خدای ﷻ فراخه کوي رزق و هغه چاته چي اراده د فراخۍ د رزق ورته وسي امتحاناً لشکره او تنګوي رزق ومن يشاء ته ابتلاء لصبره.

**پوه سه:** چي استفهام انکاري دی والعطف بالواو علی مقدر مناسب تقديره ايقولون هذا القول يعني انما او تيته علی علم ولم يعلموا ان توسعة الرزق وتزيقه من الله قد يوسع الرزق لمن لايعلم وجوه الکسب وليس له استحقاق الکرامة اصلاً وقد يضيق علی ذالک کما هو ثابت بالتجربة المتواترة.

## اِنَّ فِيْ ذٰلِكَ لَاٰيٰتٍ لِّقَوْمٍ يُّؤْمِنُوْنَ ۟

په تحقيق په دغه قبض او بسط کي د رزق دلائل دي پر دې چي حوادث ټول په قدرت کي د خدای ﷻ دي او اسباب بناء پر عادت ظاهري دي .... بيت:

کلـيـد نـيـسـت در دست کـس ..... توانايی مطلق خدايست وبس
کم عـاقل عـاقل اعيت مـذاهبه ..... وجـاهل جاهل تلقاه مرزوقا
هذا الـذی ترک الاوهام حـائـرة ..... وصـير العالم النحرير زنديقا
هرچه بـايـد بـهـر که مـيشـايد ..... تــو دهــی انـکه مـی ايد
تو شناسی صلاح صلاح کار همه ..... که تـويی آفـريد گار هـمـه

**پوه سه:** چي عاقل ته په کار ده چي خدای ﷻ ته په شدت او رخا کي متوجه وي اضطراري عجز او محبت او التجاء و خدای ﷻ ته په درد نه خوري لکه د کافرانو عجز چي په مخني آيتو کي تېره سوه، وفي الحديث تعرف الله في الرخاء ليعرفنک في الشدة، بخاري او مسلم رحمهما الله تعالی روايت کړی دی چي بعض اهل الشرک نا حق مړي کړي وه او ډېري زناوي يې کړي وې، نو عليه الصلوة والسلام ته راغله او وه يې ويل چي دغه دين چي ته موږ ور بولې دا خو ښه دين دی که موږ ته دا خبر راکړې چي زموږ کړي کارو لره يوه کفاره سته او که څرنګه، نو دا آيت نازل سو.

قُلْ يٰعِبَادِيَ الَّذِيْنَ اَسْرَفُوْا عَلٰٓى اَنْفُسِهِمْ

ته ووایه یا محمد (ﷺ) ای زما بندګانو.

**پوه سه:** چي دا قرائت دی د لاري د ابو عمرو او یعقوب، او همزه او کسائي رحمه الله یې په سکون د یاء وایي، او چي د الذین سره وصل وکړي یا حذف کوي لاجتماع الساکنین، او نور قراء یې په فتح د یاء وایي کما هو المتعارف في المصاحف المطبوعة.

**پوه سه:** چي ابن ابی حاتم په صحیح سند د ابن عباس رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي دا آیت په شان کي د مشرکینو د مکې نازل سوی دی لکه په حدیث کي د بخاري او مسلم چي تېره سوه، او بعض مفسرینو په سند ضعیف سره راوړی دی چي دا آیت په شان کي د وحشي قاتل همزه رضي الله عنه نازل سوی دی فلا حاجة الی نقله لانه یثور منه الفتنة في شان القرآن العزیز ان شئت فطالع تفسیر المظهري وروح البیان، او بغوي رحمه الله وایي انه روی عن ابن عمر رضي الله عنه چي دا آیت په شان کي د عیاش بن ربیعة والولید بن الولید ونفر من المؤمنین چي دوی اسلام راوړی ؤ بیا کفارو د مکې دوی ته قسم قسم عذابونه ورکول یعني چي بیرته خپل قدیم دین یعني الشرک ته راواوړئ او هغو هغسي هم وکړه یعني شرک یې مختاره کړی، نو مورږ مسلمانانو به ویل چي ددې کسانو به هیڅ عبادت خدای ﷻ قبول نه کړي، نو عمر رضي الله عنه په خپل لاس دا آیت نوشته کړی او و عیاش بن ربیعه، ولید بن ولید او هغه نورو کسانو ته یې ورواستاوه، هغو بیرته اسلام راوړی او هجرت یې و مدینې ته وکړی، والله اعلم.

**پوه سه:** چي راغب اصفهاني وایي چي سرف تجاوز دی تر حد في کل ما یفعله الانسان چي کفر او معاصي دي، او بغوي رحمه الله له ابن عمر رضي الله عنه څخه روایت کړی دی چي مراد له اسراف څخه کبائر ګنهونه دي، راغب رحمه الله وایي چي که څه هم دا لفظ د اسراف په انفاق مالي کي متعارف دی لکن دا آیت عام دی که اسراف في الاموال وي او که غیر وي لکه کفر او معاصي کبیره لکه زنی والسرقة وغیرهما انتهی قول الراغب رحمه الله مع زیادة.

لَا تَقْنَطُوْا مِنْ رَّحْمَةِ اللّٰهِ

مه نا امیده کېږئ له رحمت او مغفرت څخه یعني اذا آمنتم وتبتم من الشرک، دا قید په دې ایت ثابت دی ان الله لا یغفر ان یشرک به الآیة، او اجماع د امة مرحومه هم پر دغه ده، او بل د هغو روایاتو څخه چي په شان نزول کي ددې آیت تېره سوه هم دا

نګاره خبره ده چي د شرک په باره کي توبه له شرک څخه شرط د مغفرت ده، نو حاصل د آیت دادی چي تاسي ایمان راوړل په دې سبب مه پرېږدئ چي نا امیدي کوئ د خدای ﷻ د رحمت او د مغفرت د تېرو ګنهو یعني په وخت کي د شرک.

إِنَّ اللَّهَ يَغْفِرُ الذُّنُوبَ جَمِيعًا ۚ إِنَّهُ هُوَ الْغَفُورُ الرَّحِيمُ

یعني صغائرها وکبائرها، اذا تبتم من الشرک وامنتم بالله وحده فان الاسلام یهدم ماقبله کما في حدیث، رواه مسلم عن عمرو بن العاص رضي الله عنه عن النبي ﷺ.

**فائده:** شان نزول د دې آیت که څه هم خاص دی کمامر یعني من ارتکب الکبائر حال الشرک ثم اسلم لکن اعتبار عموم لره د لفظ دی یعني بنده چي اسلام راوړي که څه هم کبائرو ګنهونه وکړي بعد الایمان امید د مغفرت د خدای ج دي دلاسه نه ورکوي یعني قنوط دي نه کوي کما جاء في الآیة، که یې څه هم له هغو ګنهو څخه توبه نه وي کښلې، کریمه: ان الله لایغفر ان یشرک به ویغفر مادون ذالک لمن یشاء، او له وروسته آیت څخه هم دا فهمېږي یعني (انه هو الغفور الرحیم) ولي چي په دې آیت کي تاکیدات دي (۱) کلمة ان (۲) ضمیر فصل چي پر حصر دلالت کوي (۳) وعده په رحمت سره بعد المغفرة.

**درویش وایي:** چي علامه بغدادي رح اوولس (۱۷) دلیلونه د عموم د مغفرت بعد التوبة عن الشرک راوړي دي فارجع الی تفسیره، او تفسیر مظهري هم یو څو دلیلونه راوړي دي فارجع الیه... ابیات:

ندارم هیچ ګونه توشهٔ راه ..... بجز لا تقنطوا من رحمة الله
تو فرمودی که نومیدی میارید ..... ببخشا زانکه بس امیدواریم
ایمد دردمندان را دوا کن ..... دل امیدواران را رها کن

عبد الرحمن الجامي قدس سره ویلي دي:

بلی نبود درین ره نا امیدی ..... سیاهی راېود رو درسفیدی
زصد دردی ګر امیدت نیابد ..... بنومیدی جګر خوردن نه شاید
دردیګر بیاید زد که ناګاه ..... ازان درسوی مقصود اوری راه

روی في الحدیث الصحیح ان الله یقول یوم القیامة لبعض المؤمنین (یعني اراده د مغفرت ورته لري) سترتها علیک في الدنیا (ما پټ ساتلي وه ستا ګنهونه

په دنیا کې) و انا اغفرها لک الیوم (نن یې زه دربخښم) داسي نور احادیث هم سته چې پر مغفرت بلا توبه دلالت کوي.

**پوښتنه:** د شرک او نورو ګناهو څه فرق دی چې شرک بلا توبه عنه نه بخښل کېږي، او نور کبائر بلا توبه بخښل کېږي په اراده د خدای ﷻ؟

**ځواب:** فرق یې دادی چې کافر خو خپل دین حق بولي که شرک وي او که یهودیت وي او که نصرانیت وي، بلکې دین د اسلام نعوذ بالله حق نه بولي، نو طلب د عفو او مغفرت نه کوي.

**درویش وایي:** چې معالم التنزیل چې یو تفسیر دی په فارسي ژبه او لغت، او په تفسیر مظهري کې چې عبارت یې عربي دی د دواړو د پښتو ژباړه داده چې ابن مسعود ؓ یو مسجد ته ورغلی یو واعظ وعظ کاوه او د دوزخ سلاسل او اغلال یې بیانول، ابن مسعود ؓ ورته وویل چې ولې خلګ د خدای ﷻ له رحمت څخه نا امیده کوې، تا په قرآن کې دا آیت نه دی ویلی: قل لعبادي الذین اسرفوا علی انفسهم لا تقنطوا من رحمة الله آه، په صحیح حدیث کې راغلي دي: ان الله یغفر الذنوب جمیعًا ولا یبالي انه هو الغفور الرحیم.

**درویش وایي:** چې ورته احادیث مقید په ان شاء سره دي (یعني که اراده وکړي) رواه احمد والترمذي.

**مسئله:** په اجماع سره دا ثابته ده چې توبه د کافر او توبه د مؤمن عاصي تر وخته پورې د غرغرې د روح قبلېږي، او په حال د غرغرې نه قبلېږي، ولې چې فرعون او قوم دده چې په بحر کې خدای ﷻ غرق کړه، نو فرعون چې د اوبو څپې راپورته کړی داسې یې وویل: لآ الا الا الله الذی آمنت به بنوا اسرائیل، لکن جبرئیل ؑ په خوله کې خټې ور تخته کړې، یحیٰی بن معاذ ؒ وایي چې په کتاب الله کې خزانې دي چې سبب به ان شاء الله تعالی د عفو د ټولو مؤمنانو وګرځي چې یو یې دا آیت دی: یا عبادي الذین اسرفوا الآیة، او بل علماء وایي چې د اهل التوحید لپاره ډېر د امید ایت په قرآن کریم کې دا ایت دی ان الله لا یغفر ان یشرک به ویغفر مادونک ذالک لمن یشاء، او بل دا آیت دی ولسوف یعطیک ربک فترضیٰ.

شیخ سعدي قدس سره وایي:

عطای شفاعت چنانش دهند ...... که امت تمامی ز دوزخ رهند

وتفصيل قوله تعالى ولسوف يعطيک ربک فترضٰی دادی چي هر نبي مرسل مظهر دی د بعض احکامو د رحمت د خدای ﷻ، نو له دې کبله رسالت د هغو مقید او حصر ؤ پر یوه طائفه باندې، لکه د موسٰی او عیسٰی علیهما السلام مقصود پر بني اسرائیلو ؤ، لکن چونکه نبینا ﷺ مظهر د حقیقت رحمت الهي ؤ نو ځکه د ده رسالت عام ؤ عرب او عجم، انس او جن، ترک و تاجک ټولو پکښې شامل وه، قال الله تبارک وتعالی خطابًا لنبیه ﷺ وما ارسلناک الا رحمةً للعالمین وتم ظهور حکم رحمانیته تعالی بالشفاعة التي بها تظهر سیادته علی جمیع الناس حتی چي چاته چي درجه د شفاعت او اذن د شفاعت ورکړل کېږي من الملائکة والانبیاء والاولیاء وغیرهم من المؤمنین شفاعت نسي کولای چي اول علیه الصلوة والسلام شفاعت ونه کړي، کریمه: عسٰی ان یبعثک ربک مقامًا محمودًا چي مراد ځني مقام د شفاعت کبرٰی دی فلا تقنطوا ایتها المرحومة من رحمته تعالی المطلقة ان یغفر الله الذنوب جمیعًا.

**درویش وایي:** چي د لوی امید د مغفرت د خدای ارحم الراحمین بعض احادیث صحیحه واورئ (۱) د عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روایت دی، ده وویل چي مونږ په بعض غزاؤ کي د علیه الصلوة والسلام سره ملګري وو فمر بقوم، فقال علیه الصلوة والسلام من القوم (تاسي څوک یاست یعني مسلمانان یاست که کافران) قالوا نحن مسلمون، نو په دغه قوم کي یوه ښځه وه کټو یې باندي کړې وه او اور پسي بل ؤ، د دې ښځي سره یو کوچنی زوی ورسره ؤ، نو چي د اور لمبې به لوري سوې دې به دا کوچنی را لیري کړی، نو له اور څخه دا ښځه و علیه الصلوة والسلام ته راغله او داسي یې ورته وویل: انت رسول الله؟ قال نعم. قال بابی انت وامي (زما پلار او مور دي تر تا قربان سي)

**درویش وایي:** چي دا یو داسي کلمات دي چي عرب یې په غایت تعظیم کي د چا استعمالوي) قالت: الیس الله بارحم الراحمین؟ (آیا خدای ﷻ تر هر مهربان مهربان نه دی؟) قال ﷺ بلی، بیا دې ښځي وویل چي خدای ارحم پر خپلو بندګانو نه دی تر مور پر خپل خیال؟ قال ﷺ بلی، دې ښځي وویل چي مور خو خپل زوی و اور ته نه اچوي، فاکبّ رسول الله ﷺ یبکی (سر یې کښته ؤ ژړل یې)

ثم رفع رأسه اليها، فقال ان الله لايعذب من عباده الا المارد التمرد (يعني سر کښه) او عالي الذي يتمرد على الله وابى ان يقول لآ اله الا الله، رواه ابن ماجه.

(۲) عن ابى ذر رضي الله عنه ده وويل قال رسول الله ﷺ ما من عبد قال لآ اله الا الله ثم مات على ذالک الا دخل الجنة، قلت وان زنٰى وان سرق؟ قال ﷺ وان زنى وان سرق، قلت وان زنى وان سرق، قال ﷺ وان زنى وان سرق، قلت وان زنى وان سرق، قال ﷺ وان زنى وان سرق على رغم انف ابى الذر (که څه هم ستا پزه په خاورو سي)

**درویش وايي:** چي دا يوه محاوره ده چي په وخت کي د منت پر چايي عرب استعمالوي.

(۳) ابو داؤد له عامر الرام رضي الله عنه څخه داسي حديث رانقل کړی دی چي موږ يوه ورځ د نبي کريم ﷺ سره ناست وُ چي يو سړی راغلی چي کسا (پټو) يې پر ځان پېچلی وُ او په لاس کي يې يو شی وُ چي پټو يې پر اچولی وُ، فقال يا رسول الله ﷺ زه پر يو ځنګله د درختو تېرېدم نو ما د يو مرغه د بچيانو اواز واورېدی، نو ما د هغه مرغه بچيان له ځانګی څخه را واخستل په پټو کي مي کېښېښول موريې راغله شا وخوا زما پر سر ګرځېد له ما له پټو څخه د دوی بچيان وربښکاره کړه مور يې پر بچاينو را غوځاره سوه، نو ما يې مور د بچيانو سره په پټو کي وپېچل، دغه دی مور او بچيان يې ټول زما په پټو کي دي، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چي ته يې کښېږده، هغه چي کښېښول موريې که څه هم له قيده څخه خلاصه سول خو بيا هم له عيال څخه نه تله، فقال رسول الله ﷺ، وګورئ و رحم ته د ام الفراخ (چيچيان) د خپل فراخ سره فو الذي بعثنى بالحق (زما دي په هغه خدای سره قسم وي چي زه يې په حقه سره نبي را استولی يم) الله ارحم بعباده من ام الفراخ بفراخها، وروسته عليه الصلوة والسلام وويل هغه سړي ته چي يو سه دغه چيچيان په هغه ځای کي يې کښېږده چي تا را اخستي دي، موريې په هوا ورسره روانه وه.

(۴) بغوي رحمه الله له ضمضم بن حوش رحمه الله څخه روايت کړی دی چي ده وويل چي زه چي داخل سوم و مسجد نبوي ته په مدينه منوره کي، نو يو شيخ چي ماته پېژندی را ناري کړې يا يماني تعالي (دلته راسه) زه چي ورغلم ده راته وويل چي ته به هيڅ مسلمان ته (يعني که هر ګناه کار وي) داسي نه وايي والله لايغفر لک ولايد خلک

الجنة (یعني چي په یوه سخته ګناه مبتلی وي) دی وايي چي ما ورته وویل چي ته څوک يې يرحمک الله؟ ده راته وویل ابو هریره یم. ما ورته وویل چي دا کلمه څو وایي احدنا لبعض اهله اذا غضب (چي درد ورسي) یا یې ماينې ته وايي یا خادم ته) ابو هریره رضي الله عنه راته وویل سمعت رسول الله ﷺ يقول ان رجلين من بني اسرائيل متحابين (سره اشنایان وه) يو يې مجتهد في العبادة ؤ او هغه بل ګناه کار ؤ، نو دې مجتهد في العبادة به هغه مذنب ته ویل چي توبه وکاږه دا ګناه مه کوه. مذنب به ورته ویل چي ما ؤ خدای سره پرېږده، حتی چي مجتهد في العبادة مذنب پر یوه سخته ګناه ولیدی، بیا مجتهد ورته وویل چي دا ګناه پرېږده، مذنب ورته وویل خلني و ربي (ما و خدای سره پرېږده) ته څو پر ما رقيب نه يې استول سوی یعني د خدای له خوا، نو مجتهد ته درد ورغلی او وه یې ویل والله لایغفر لک الله ابداً ولا يدخلک الله الجنة ابداً. نو خدای ﷻ ملکه ورته را واستول د دواړو روحان يې قبض کړه یعني دواړه مړه سوه. نو د خدای ﷻ په حضور کي دواړه حاضر کړل سوه، فقال للمذنب ادخل الجنة برحمتي، او هغه مجتهد في العبادة ته يې وویل چي ستا په طاقت دا پوره ده چي ته منع کړې زما له بندګانو څخه زما رحمت؟ هغه ورته وویل لا یا رب. فقال اذهبوا الی النار. الی اخیر الحدیث.

(۵) عن ابی سعید الخدري رضي الله عنه عن رسول الله ﷺ چي په بني اسرائيلو کي يو سړی ؤ چي نهه نیوي (۹۹) کسان يې بغير حق وژلي وه. ثم خرج الی راهب (راهب ته د پوښتني لپاره ورغلی ځکه چي په زړه کي يې پښېماني ورګرځېدلې وه لکن په دې فکر جن ؤ چي نهه نیوي مړي به په توبه بخښل کېږي که یا) فسأله راهب. نو د راهب څخه يې پوښتنه وکړه. راهب ورته وویل لیس لک توبة (پښتانه وايي: سر څه په لوټه سپیره څه په ډبره) نو هغه راهب يې هم قتل کړی: سل پوره سوه. بیا يې هم په زړه کي پښېماني کوله. نو د ښه عالم پوښتنه يې کوله يو چا ورته وویل چي فلاني ته ورسه له هغه څخه پوښتنه وکړه چي هغه ډېر برجسته عالم دی. نو اجل ورسېدی لکن په حال کي د ژکندن يې ځیګر د هغې قريې و خوا ته کړی چي کوم عالم ته دی ورتلی. نو چي مړ سو د ملکو د رحمت او د ملکو د عذاب په کښې اختلاف ؤ چي کوم قسم به يې روح وړي یا اسمانو ته یا اسفل السافلین ته. نو د خدای ﷻ امر ورته وکړل سو چي تاسي



Scanned by CamScanner

دا مځکه ده د مرينې له ځای څخه تر کوره پورې يعنې چې ده په هغه کلي کې سل مړي کړي وه او د مرګ له ځای څخه د هغې بلې قريې چې دی د توبې لپاره ورتلی، حقيقةً خو دی د خپل کلي و خوا ته نژدې و. لکن خدای ﷻ وحي وکړې و هغه مځکې ته چې دی د عالم و خوا ته وه چې يو څه سره کش سه، او د هغه بلې قريې و مځکې ته يې حکم وکړی چې يو څه سره نژدې سه، نو وروسته چې ملکو د رحمت او ملکو د عذاب مځکه سره ګچه کړه نو هغه د عالم قريې ته يوه لوېشت نژدې ؤ فغفرله. او ملکو د رحمت يې روح يووړی.

**درويش وايي:** چې د دې محکمې سر دا دی چې په حديث نبوي کې راغلي دي الندم هو التوبة، لقوله تعالى ان الله هو التواب الرحيم.

(٦) وعن ابی هريرة ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ان الله عزوجل ليرفع الدرجة للعبد الصالح في الجنة فيقول، دا بنده و وايي چې زما درجه له کوم سببه څخه پورته ده؟ خدای پاک ورته و وايي باستغفار ولدک، رواه احمد.

(٧) وعن ابن عباس ؓ ده و ويل قال رسول الله ﷺ مړي په قبر کې داسي دي لکه يو سړی چې په اوبو کې غرق سي او مدد غواړي انتظار کوي د يوې دعاء يعني الاستغفار من اب او ام او اخ او صديق چې دعاء ور ورسېږي کان احب اليه من الدنيا ومافيها، او خدای ﷻ داخلوي پر اهل قبور باندي په سبب د اهل الارض (يعني په سبب د مځکې ولو من الاقارب وغيرهم) امثال الجبال او هديه د ژوندو مړو ته الاستغفار لهم، رواه البيهقي في شعب الايمان.

(٨) وعن ابی ذر ﷺ قال قال رسول الله ﷺ ان الله ليغفر لعبده مالم يقع الحجاب، قالوا يا رسول الله وما الحجاب؟ قال ان تموت النفس وهي مشركة. رواه احمد والبيهقي.

(٩) روايت کړی دی بخاري او مسلم عن ابی هريرة ﷺ قال سمعت رسول الله ﷺ چې ده مبارک و ويل: چې خدای ﷻ خپل رحمت سل (١٠٠) جزء کړی دی نهه نيوي (٩٩) جزئ يې له ځان سره ساتلي دي يعني د رحمت پر بندګانو په ورځ د قيامت، او يو جزء يې په مځکه کې نازل کړی دی، نو له دې يوه جزء څخه خلائق د مځکې يو پر بل رحم سره کوي (يعني که ذوی العقول دي که نور حيوانات دي)

حتی ترفع الدابة حافرها عن ولدها وهو یمص ان تصیبه، یعني تر دې پورې چي دابه یعني غوا، مېږ وغیرهما پورته کوي خپل نوک یعني پښه د خپل بچي څخه هغه وخت چي دا بچی د مورتی روي، ان تصیبه (یعني کراهة ان تصیبه) ای الولد.

**درویش وایي:** چي علماء وایي چي په دې حدیث کامله کي رجاء او زېرې دی د مؤمنانو لپاره لانه قد حصل من رحمة واحدة هغه چي تېر سو آنفًا په حدیث شریف کي فما ظنک په نهه نیوي (۹۹) کي.

**درویش وایي:** چي د امید په باره کي د مغفرت د رب العزة په ورځ د قیامت نور احادیث صحیحه هم سته، که د تطویل بېره نه وای هغه به هم را نقل کړل سوي وای، لکن با این همه سعدي شیرازي قدس سره وایي:

بنده همان به که ز تقصیر خویش عذر بدرگاه خدا آورد
ورنه سـزا وار خداوندیش کس نتواند که بجا اورد

وَأَنِيبُوٓا۟ إِلَىٰ رَبِّكُمْ

او رجوع وکړئ و رب ته ستاسي. مظهري" وایي بالتوبة من الشرک، او روح البیان وایي ارجعوا بالتوبة من المعاصي انتهی، یعني مطلق معاصي یې ویلي دي په شرک سره یې نه دي مقید کړي، والاولی ما ذکره المظهري" بقرینة قوله تعالی ثم لاتنصرون ولي د مؤمن عاصي خو په شفاعت د علیه الصلوة والسلام وغیره من اتباعه نصرت کېږي.

وَأَسْلِمُوا۟ لَهُۥ مِن قَبْلِ أَن يَأْتِيَكُمُ ٱلْعَذَابُ ثُمَّ لَا تُنصَرُونَ ۝

(واسلموا له) ای انقادوا او اخلصوا العمل لوجه الله فمعنی السالم الخالص من الریاء والنفاق) دمخه تر دې چي عذاب تاسي ته راځي یا په قبر کي یا بالبعث، ولي چي په هغه وخت کي ایمان فائده نه کوي، بیا ستاسي سره کومک نه کړل کېږي، دا جمله عطف ده پر محذوف، والتقدیر تعذبون ثم لاتنصرون ... بیت:

تو پیش از عقوبت درعفو کوب ........ که سود ی ندرد فغان زیر چوب

وَٱتَّبِعُوٓا۟ أَحْسَنَ مَآ أُنزِلَ إِلَيْكُم مِّن رَّبِّكُم

او تاسي متابعت وکړئ یعني په حلال او حرام د هغه شي چي نازل کړه سوی

دی تاسي ته، يا مراد ځني قرآن کريم دی لانه احسن من کل کلام، کريمه: الله نزل احسن الحديث، الآية، يا مراد عزيمت او رخصت دی يعني په عزيمت عمل کوه لکه روژه په سفر کي چي مستريح سفر وي که څه هم خوړل د روژې رخصت دی.

مِّنْ قَبْلِ اَنْ يَّأْتِيَكُمُ الْعَذَابُ بَغْتَةً وَّاَنْتُمْ لَا تَشْعُرُوْنَ ۝

د مخه تر دې چي تاسي ته راځي عذاب يعني د خدای ﷻ له خوا څخه او حال به دا وي چي علم په وخت د مجئ نه لري، په پښتو وايي: ناببره، په فارسي وايي ناگاه، په اردوا وايي اچانک.

**پوهسه:** چي عذاب يې مقيد کړی په بغتة سره، له دې سببه چي بغتة عذاب پر سړي ډېر بد تاثير کوي.

**درويش وايي:** چي بعض مفسرين وايي چي مراد له عذاب بغتة څخه مرگ دی لانه مفتاح العذاب الاخروي کما ورد من مات فقد قامت قيامته يعني د مړي قيامت له قبر څخه ددهٔ شروع کېږي که څه هم لوی قيامت نه دی ولهذا قيد: بالضمير الراجع الی من يعني في قوله من مات ويدل عليه قوله ﷺ القبر روضة من رياض الجنان او حفرة من حفرات النيران.

اَنْ تَقُوْلَ نَفْسٌ يّٰحَسْرَتٰى

**درويش وايي:** چي روح البيان وايي چي ان تقول مفعول له دی د افعالو سابقهٔ؛ يعني الانابة والاخلاص واتباع القرآن يعني افعلوا ما ذکر من المأمورات کراهة ان تقول آه. او مظهري ؒ هم ورته خبره کړې ده ای کراهة ان تقول. لکن زمخشري صاحب الکشاف چي معتزلي دی هم يې دا تقدير راوړی دی ای کراهة ان تقول او زياته کړې يې ده وهو منصوب بفعل محذوف يدل ما قبله ای انذرکم وامرکم باحسن ما انزل اليکم کراهة ان تقول آه، لکن دا دي ستا په ياد وي چي مراد له کراهت څخه د خدای ﷻ چي په دې آيت کي ذکر دی خلاف د رضا دی يعني خدای ﷻ وايي چي په دې راضي نه يم ان تقول، دا معنی نه ده چي ان تقول زما د ارادې خلاف دی لکه معتزله او صاحب کشاف چي وايي چي خلاف د اراده د خدای ؒ روا دی، دوی وايي چي خدای ؒ له کافر څخه اراده د ايمان لري او له عاصي څخه اراده د طاعت لري؛

لکن شیطان یې و اسلام او اطاعت ته نه پرېږدي، نو کافر یا یې عاصي وګرځوي، وتفصیل هذه المسئلة وایراد دلائل المعتزلة والجواب عنها من جانب اهل السنة والجماعة في شرح العقائد النسفي وشرح المقاصد کلاهما للعلامة الثاني سعد الملة والدین التفتازاني، وکذا في المواقف للقاضي عضد الملة والدین وشرحه للسید الجرجاني وغیرها من کتب علم الکلام.

**پوه سه:** چې نفس یې نکره راوړی ددې سببه چې قائل د وروستنۍ خبرې خو بعض نفس دی یعنی الکفرة، او تا د تنکیر لپاره د تکثیر ده، ولې کافران په اکثرو زمانو کې ډېر دي تر مؤمنانو وهم القائلون لهذا القول.

**پوه سه:** چې حسرت په لغت کې غم ته وایي، اصل یې یا حسرتي ؤ یا یې په الف بدله کړه لکن په وخت کې د استغاثة تخفیفًا لکثرة وقوع الاستغاثة او لمد الصوت المقصور في الاستغاثة، او بعض اوقات وروسته تر الف یا د متکلم هم راوړي یعني یا حسرتای چې ابو جعفر دلته هم داغسې قرائت کړی دی.

**درویش وایي:** چې چې دا کلمه عرب په وخت کې د شدة غم وایي او نداء و حسرت مجاز ده، والمعنی چېرې یې غمه راځه چې وخت دې دی، ونحوه واویلاه یا نداماتاه یا اسفا.

عَلٰى مَا فَرَّطْتُّ فِيْ جَنْۢبِ اللّٰهِ وَاِنْ كُنْتُ لَمِنَ السَّاخِرِيْنَ ۙ

کلمه د ما مصدریه ده ای علی تفریطي وتقصیري، د جنب الله معنی الحسن په طاعت الله سره کړې ده او مجاهد وایي في امر الله سعید بن جبیر وایي في حق الله.

**درویش وایي:** چې مآل د ټولو معناؤ چې مفسرینو کړې دي یو دی.

**پوه سه:** چې ان مخفف دی ان په تشدید د نون اسم د ان ضمیر شان دی محذوف (یعني انه شان دادی) کنت لمن الساخرین یې خبر ده.

**پوه سه:** چې فرق په منځ کې د ان شرطیه او مخففه لام دی یعني په لمن الساخرین کې.

ترجمه: شان دادی چې زه وم یعني په دنیا کې پسخند وهونکی او تکذیب کونکی په دین د خدای او په کتاب د خدای او په رسول د خدای او په مؤمنانو او دا جمله منصوب محلاً ده حال ده له ضمیر څخه د فرطت یعني فرطت حال کوني کنت الخ.

اَوۡ تَقُوۡلَ لَوۡ اَنَّ اللّٰهَ هَدٰىنِیۡ لَكُنۡتُ مِنَ الۡمُتَّقِیۡنَ ﴿۵۷﴾

یا به وایي دا نفس که ما ته خدای په نصیب کړی وای هدایت زه به له شرک او معاصیو څخه له پرهېز کوونکو څخه وای.

اَوۡ تَقُوۡلَ حِیۡنَ تَرَی الۡعَذَابَ لَوۡ اَنَّ لِیۡ كَرَّةً فَاَكُوۡنَ مِنَ الۡمُحۡسِنِیۡنَ ﴿۵۸﴾

او یا به وای دا نفس چي و وینی عذاب یعنی دوږخ په سترګو کاشکي ما لره رجوع وای و دنیا ته (فاکون) منصوب دی بعد الفاء جواب د تمنّی دی زه به وای له احسان کوونکو څخه په عقیده کي د توحید او عمل په مقتضٰی د توحید سره.

**فائده**: پوه سه! چي را وړل د کلمه د "او" څو ځایه دا دې لپاره دی چي کافران دغه خبري کوي یا د حیرت له کبله یا د بهانو لپاره لکن دا خبري دوی ته هیڅ فائده نه کوي. په صحیح حدیث کي راغلي "ما من احد یدخل النار حتی یری مقعده من الجنة" یعني که چېري مؤمن وای نو دي دغه خبره وکړي او ان الله هداني لکنت من المتقين.

بَلٰی قَدۡ جَآءَتۡكَ اٰیٰتِیۡ فَكَذَّبۡتَ بِهَا وَ اسۡتَكۡبَرۡتَ وَ كُنۡتَ مِنَ الۡكٰفِرِیۡنَ ﴿۵۹﴾

**درویش وایي**: چي اول دا دې سوال جواب ضروري دی چي بلی خو خاص ده په ایجاب پوري د نفي یعني نفي سابق مثبت ګرځوي کما في قوله تعالی الست بربکم (زه ستاسي خدای نه یم؟ دا نفي دی) قالوا بلی (هو ته زموږ خدای یې، دا اثبات دی) نو سوال دا دی چي یوه د مقالاتو د کفارو خو نفي نه وې، نو څرنګه خدای ﷻ رد پر دوی په بلی سره وکړی؟

**ځواب**: په نفي سابق تر بلی نفي صریح شرط نه دی باتفاق النحات بلکې نفي ضمني هم کافي دی، نفي ضمني په اول قول کي د دوی سته یعني لو ان الله هداني لکنت من المتقين، لان کلمة لو لامتناع الثاني لامتناع الاول کما تقرر في النحو، نو د دوی د قول حاصل دا دی لکن ما هداني الله (دا نفي ضمني چي له کلمې څخه د لو وفهمېدی) نو حاصل د جواب د خدای ﷻ او رد پر دوی چي هو ما هدایت ورکړی ؤ، ولې مراد له هدایت څخه د دوی څه شی دی، که مراد د دوی ارائة الطریق وي یعني (یعني چي موږ ته د حق لار ښوونکي نه وه) نو معنی د بلی دا ده چي هو ما لار د حق درښوولې وه، ولې چي ما رسول در استولی ؤ او زما کتاب هم

درغلې ؤ فكذبت بها (په هدايت زما تاسي تكذيب وكړى) او كه مراد دا وي بها (اى بالهداية چي نفي وكړي) خلق د هدايت په دوى كي او ايصال الى المطلوب وي (يعني جبرًا) نو دا خو دوى بناء كړه پر جبر يعني موږ به دي پر ايمان راوړلو مجبور كړي واى، نو ددې معنى خو داده چي موږ قدرت نه درلودى پر كسب د ايمان او طاعت، نو حاصل د جواب او رد د خداى ﷻ په بلى دادى چي هو ما په تاسي كي قدرت د كسب د ايمان پيدا كړى ؤ (يعني بالغ وي يا عاقل وي) نو بايد تا په خپل خدا داده عقل سره په معجزاتو كي د رسول غور كړى واى. ولي مبنى د ثواب او عقاب پر قدرت كاسبه ده. فكذبت باختيارك لما جائت اياتى.

**فائده**: دا قدرت كاسبه د بنده منافي ددې سره نه دى، چي خالق د افعالو د بندګانو خداى ﷻ دى كما هو مذهب اهل السنة والجماعة خلافًا للمعتزلة چي دوى خالق د افعالو د بندګانو بندګان بولي.

**درويش وايي**: چي فرق په منځ كي د قدرت كاسبه او خالقه دقيق دى كامل بيان يې خو په كتابو كي د علم كلام لكه شرح العقائد و شرح المقاصد للعلامة التفتازاني وغيرهما من كتب علم الكلام لكن ما لايدرك كله لايترك كله. فرق داسي دى لكه يو سړى چي د بل لاسونه او پښي وروتړي له يوه ځايه څخه يې بل ځاى يوسي چي په اوسنى زمانه كي يې اغواء (سړي تښتونه) بولي دا مثال دى د قدرت خالصه، يا استاذ و شاګرد ته يا شيخ و مريد ته ووايي چي ولاړ سه له بازاره فلانى شى راوړه، نو كه څه هم د شاګرد يا مريد د لاسه نه كېږي لكن په مراعات د استاذ يا د شيخ هغه كار يعني شى له بازاره په خپل اختيار راوړي، دا مثال دى د قدرت كاسبه. وعلى هذا فقس وعليك بالتدبر التمام في هذه المثال.

**درويش وايي**: چي دلته يو دقيق سوال پيدا كېږي چي دا قول د خداى ﷻ بلى قد جائتك آياتى الخ خو جواب د هغه قول د قائل دى "لو ان الله هداني لكنت آه" نو دا دوه قوله د كافرانو يعني يا حسرتى على ما فرطت آه چي د مخه تر لو ان الله هداني آه دي، او دا قول د كافرانو لو ان لي كرة آه چي تر لو ان الله هداني لكنت آه. چي دا آيت جواب دى ولي يې سره جلا كړه په لو ان لي كرة يعني چي جواب د لو ان الله هداني آه جواب يې وروسته كړى تر لو ان لي كرة آه د څه حكمت له مخه په جواب

د لو هداني ان الله يعني بلى قد جائتك آياتي آه يې متصل په هغه پوري نه راوړي.
او يا يې ولې جمله د لو ان هداني الله آه وروسته تر ان لي كرة نه راوړه تا چې جواب
اورد د هغې جملې چې دا آيت د بلى قد جائتك اياتي آه پوري متصل سوى واى؟
**ځواب:** دا دري جملې هره يوه په خپل ځاى كي ده يعني له جهته ځخه د معنى
يعني چې تحسر پر تفريط چې د هغې جملې مدلول دى يا حسرتا على ما فرطت آه په
وخت كي د وركولو د صحائف الاعمال دى كما يدل عليه مواضع من القرآن العظيم،
او دليل د كافرانو په طور د بهانې چې موږ ته كه خداى هدايت كړى واى چې مدلول
د هغه آيت دى لو ان الله هداني آه دا هغه وخت دى چې كافران و ويني په ستر گو حال د
متقيانو چې جنتو ته روان دي، نو يې غبطه په وسي، نو وايي لو ان الله هداني لكنت
من المتقين، او تمنى د رجوع و دنيا ته هغه وخت دوى كوي چې د دوږخ پر غاړه و
درول سي لپاره د وقوع په دوږخ كي، نو دوى وايي لو ان لي كرة آه كما يدل عليه قوله
تعالى (اذ وقفوا على النار فقالوا يا ليتنا نرد (يعني الى الدنيا) ولا نكذب آه.
حاصل د جواب دا دى چې تناسب معنوي او تقديم او تأخير په اعتبار د وقوع د
مضامينو د دو درو آيتو په ازمنه مرتبو كي كما بينا اولى او افضل دى تر مراعات د
لفظي تناسب چې په اتصال كي د جواب اورده د كفار د قول چې قول د دوى دا ؤ، لو
ان الله هداني لكنت آه او جواب يې دا ؤ بلى قد جائتك آه.
**درويش وايي:** چې دې جواب ته مظهري، روح البيان او بيضاوي په مجمله
توكه اشاره كړې ده، اما روح المعاني ډېر ښه تحقيق پكښي كړى دى.
ترجمه د آيت: هو راغلي وه په تحقيق تاسي ته آيات زما، نو تا تكذيب وكړى
په هغو سره. يعني دروا غ دي وبلل او كبر دي وكړى د هغو له قبول ځخه، او ته وې
د كافرانو ځخه يعني په آياتو سره زما.

**وَيَوْمَ الْقِيٰمَةِ تَرَى الَّذِيْنَ كَذَبُوْا عَلَى اللّٰهِ**

په هغه ورځ د قيامت ته به ووينې يا محمد (ﷺ) او يا مخاطب غير معين هغه
چې دروا غ يې ويل پر خداى باندي يعني نسبت د هغه شي يې ورته كاوه چې پر
خداى ﷻ محال وه، لكه نسبت د ولد يې ورته كاوه كالنصارى يقولون عيسى ابن

الله، يا يهودان چي وايي عزير ابن الله يا نسبت د شريک يې ورته کاوه لکه مشرکان
يا نسبت د لونړو يې ورته کاوه لکه بني مخزوم چي وايي الملائکة بنات الله.

وُجُوهُهُمْ مُّسْوَدَّةٌ

مخان د دوی به تور وي

**پوه سه:** چي وجوههم يې مبتداء ده او مسودة يې خبر دی، او جمله حال دی له مفعول څخه د ترىٰ چي الذين کذبوا دی، مظهري وايي لانه من رؤية البصر دی يعني دوه مفعوله نه غواړي، او روح البيان وايي چي دا جمله حال ده و اکتفى بالضمير عن الواو پر دې چي رؤية بصري سي يا مفعول ثاني د ترىٰ دی چي اول الذکر دی، که رؤية علمي يعني چي دوه مفعوله غواړي، او تفسير حسيني وايي: روئ هاى ايشان سياه کرده شده پيش از دخول دوزخ وآن علامه او خيال است از جهت سختى حال ايشان، کريمه: يعرف المجرمون بسيماهم.

أَلَيْسَ فِي جَهَنَّمَ مَثْوًى لِّلْمُتَكَبِّرِينَ ﴿٦٠﴾

آيا نسته په دوږخ کي ځای د اوسېدو د متکبرانو يعني عن الايمان.

**پوه سه:** چي همزه لپاره د انکار دی او نفي د نفي اثبات دی يعني سته، دا جمله دليل دی د هغه جمله: ترىٰ وجوههم مسودة.

وَيُنَجِّي اللَّهُ الَّذِينَ اتَّقَوْا بِمَفَازَتِهِمْ

او نجات ورکوي خدای ؟ و هغو کسانو ته چي ځان يې له شرکه ساتلی وي.

**پوه سه:** چي مفازة مصدر ميمي دی په معنی د فلاح او کاميابي دی بالمطلوب.

**درويش وايي:** چي که چېري مراد له اتقوا څخه ځان ساتنه له شرک څخه وي لکه مظهري ؒ چي ويلي دي، نو مراد فلاح له ابدي دوږخ څخه ده، او عصات د مؤمنانو و مشيت ته د خدای ﷻ موکول دي، او که مراد له تقوىٰ څخه شرک او معاصي وي لکه روح البيان چي ويلي دي، نو مراد له فلاح څخه فرد کامل دی والله اعلم.

لَا يَمَسُّهُمُ السُّوءُ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ ﴿٦١﴾

دوی ته رسېږي مساس د عذاب، او نه به دوی ته غم رسېږي، دا دوې جملې يا حال دي يا استيناف دي لپاره د بيان د مفازة د دوی.

## اَللّٰهُ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ ۖ وَّهُوَ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ وَّكِيْلٌ

خدای ؒ پیدا کونکی د هر شي دی (من العلويات والسفليات والعاملين واعمالهم كما هو مذهب اهل السنة والجماعة) او خدای ﷻ پر هر شي وكيل يعني موكول اليه دی، معنی چي د هر شي محافظ دی يعني حفاظت د هر شي په رب ﷻ پوري مربوط دی، نو دا جمله عطف ده پر ما قبل جملې باندي.

## لَهٗ مَقَالِيْدُ السَّمٰوٰتِ وَالْاَرْضِ ۭ

**پوه سه:** چي مقالید سره د مضاف اليه مبتدا ده او لهٗ يې خبر مقدم دی، تقديم لپاره د حصر دی.

**فائده:** مقالید جمع د مقلاد ده لکه مفاتيح جمع د مفتاح ده، يا جمع د مقليد ده لکه مناديل چي جمع د منديل ده، د مقلاد او مقليد معنیٰ يوه ده چي په پښتو يې كيلي بولي، ومعنى الآية: كيلی د خزانو د اسمانو او د ځمكي په لاس كي د قدرت د خدای ؒ دي چي امكان د تصرف د غير يې منع دی بلكې محال دی، قتاده او مقاتل ؒ وايي چي مراد له خزائنو څخه چي كيلی يې د خدای ﷻ سره دي بخښنه او رحمت دی، او كلبي ؒ وايي چي خزائن د باران په اسمانو كي او خزائن د نباتاتو په ځمكه كي، له عثمان بن عفان ﷺ څخه روايت دی چي ده سوال وكړی له نبي ﷺ څخه چي له مقاليد څخه مراد څه شی دی؟ عليه الصلوة والسلام ورته وويل لآ اله الا هو، الله اكبر و سبحان الله وبحمده واستغفر الله ولا حول ولا قوة الا بالله هو الاول والآخر والظاهر والباطن بيده الخير، يحيي ويميت وهو على كل شيئ قدير، دا حديث ابو يعلى په خپل مسند كي راوړی دی او ابن ابی حاتم په خپل تفسير كي راوړی دی.

**درويش وايي:** چي سبط ابن الجوزي چي په موضوعي احاديثو كي راوړی دی هغه ته اعتبار نسته، ولي دا حديث د پر شواهد لري، ولي چي له ابو هريره ﷺ څخه هم مثل د دغه حديث مروي دی او له ابن عباس ؓ څخه هم مثل د دې حديث مروي دی.

**درويش وايي:** چي حديث د عثمان ﷺ روح البيان هم راوړی دی لكن مختصر تر ما ذكرنا، او داغه رنګه روح المعاني هم راوړی دی تر دې ځايه پوري لكن وروسته يې الحديث ويلی دی، چي معنی يې داده چي تر پايه د حديث لكه آه يا الخ

چي په کتابو کي راځي، او په روایة کي د ابن مردویة له ابن عباس رضي الله عنهما څخه هم راغلی دی چي په هغه روایت کي خواص د دغه الفاظو هم ذکر کړي دي، او روح المعاني د ابن الجوزي د موضوع والي د دې حدیث په باره کي هم راوړی دی او داسي يې ويلي دي چي دا خبره د ابن الجوزي چا نه ده منلې، والله اعلم بحقيقة الحال.

وَالَّذِينَ كَفَرُوا بِآيَاتِ اللَّهِ أُولَٰئِكَ هُمُ الْخَاسِرُونَ ﴿٦٣﴾

او هغه کسان چي تکذیب کوي (يعني نسبت د کذب کوي، مراد له آیاتو څخه آیات قرآنیه دي یا کلمات د توحید او تمجید د خدای ج دي یا دلائل د قدرت د خدای ج دي یا استقلال د خدای ج په امورو کي د اسمانو او مځکي) داغه کسان لوی تاوان والا دي.

**پوهنه:** چي هم ضمیر فصل دی په منځ کي د مبتداء او خبر چي دواړه معرفه دي چي علماء د معاني وايي لپاره د حصر بولي، يعني چي خسران حصر پر دغو کسانو دی، دليل د حصر يې دادی چي مؤمنان که څه هم بعض د دوی فقراء او مساکین دي په دنیا کي لکن په ثواب او رحمت کي لویه برخه لري يعني الجنة چي په هغه کي خيرات بلا نهايت دی ای مالا عين رئت ولا اذن سمعت ولا خطر علی قلب بشر يعني په ورځ د قیامت کي، او کافران که څه هم لویه برخه ولري په خزانو کي د رزق د خدای جل جلاله او د بارانو د خدای ج لکن لا حظ لهم من الرحمة والثواب في الآخرة والحظوظ الدنيوية فانية عنقريب، نو دا حظوظ دنویه فقط به د دوی لپاره حسرت او ندامت وي، يقولون رب ارجعنا يعني الی الدنيا نعمل صالحًا، مظهري وايي چي طبراني رحمه الله او ابن ابی حاتم له ابن عباس رضي الله عنهما څخه روايت کړی دی چي قریشو رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دعوت ورکړی چي موږ به تاته مالونه درکړو خپلي ښځي يعني خوېندي يا لوڼې چي ستا اراده وي، فقالوا هذا لک یا محمد (دا خويې زموږ د خواستا یا محمد) لکن ته په عوض کي د دې زموږ خدايانو ته د ښکنځلو څخه لاس واخله، ولا تذکرها بسوء، او که داسي نه کوې داسي خو نو وکړه زموږ د خدايانو عبادت کوه یو کال (يعني بالشرک لها في العبودية) موږ به ستا د خدای عبادت کوو یو کال (يعني بالتوحيد) نو عليه الصلوٰة والسلام ورته وويل چي زه ګورم چي خدای جل جلاله ماته څه امر راکوي په دې باره کي، فنزل من الله تعالی: قل یا ایها الکافرون الی اخير السورة، وانزل هذه الآية.

قُلْ أَفَغَيْرَ اللَّهِ تَأْمُرُوٓنِّيٓ أَعْبُدُ أَيُّهَا الْجَٰهِلُونَ ﴿٦٤﴾

ته ورته ووايه يا محمد (ﷺ) آيا په غير د خداى تاسي امر كوئ چي زه يې عبادت وكړم اى جاهلانو. الاستفهام للانكار.

**درويش وايي**: چي روح المعاني فاء لپاره د تعقيب بولي او داسي وايي اى بعد الآيات المقتفية لعبادته تعالى وحده غير الله اعبد. نو استفهام لپاره د انكار دى، او د غير لفظ مفعول مقدم د اعبد او د تقديم وجه يې داده چي محل د انكار غير الله دى، وقوله تأمروني جمله معترضه ده او ردها للدلالة على انهم امروه بذالك كمامر في شان نزول الآية المذكورة لفرط غباوتهم، له دې سببه يې دوى ته نداء په عنوان د جهل وكړه.

**فائده**: ابن عامر تأمرنني په دوه نونه سره وايي على الاصل، او نافع يې په نون وايي او ياء ته فتح وركوي، او نور قراء يې په سكون د ياء وايي والكل جائز.

وَلَقَدْ أُوحِيَ إِلَيْكَ وَإِلَى الَّذِينَ مِن قَبْلِكَ

الواو للحال واللام جواب القسم المحذوف، او په تحقيق وحي كړه سوي دي وتاته يا محمد او هغو كسانو ته چي تر تا د مخه وه، اى الانبياء.

لَئِنْ أَشْرَكْتَ لَيَحْبَطَنَّ عَمَلُكَ وَلَتَكُونَنَّ مِنَ الْخَٰسِرِينَ ﴿٦٥﴾

كه ته شرك وكړې هر آئينه لغو به سي، يعني بېكاره به سي ستا عمل سابق تر شرك.

**پوه سه**: چي دا كلام مبني دى پر فرض محض، مطلب دا دى چي د كافرانو نااميدي كلي راسي له ثواب څخه د بعض اعمالو، او په عين حال كي د تنبيه و امت مسلمه ته ده چي شرك بايد څني ونه سي چي اعمال حسنه سابقه له منځه څخه ځي، ددې په رڼا كي موږ وايو چي شرك بلكې مطلق ارتداد له دين څخه د اسلام مهبط د ټولو حسناتو دى، لكه اسلام چي هادم د ټولو سيئاتو دى چي په وخت كي د شرك يې كړي وي.

**مسئله**: كه يو چا لمونځ وكړى وروسته مرتد سو العياذ بالله او وخت د هغه لمانځه باقي وُ، نو هغه لمونځ به بېرته راګرځوي، تا چي اول لمونځ ده كړى وُ په سبب د ارتداد له منځه څخه ولاړى، وكذا يجب الحج ثانيًا بعد الارتداد لان وقت الحج جميع العمر، نو وروسته تر ارتداد وخت د حج باقي دى كذا قال ابن الهمام في شرح الهداية.

**پوښتنه:** په آیت کي خو "الیک والی الذین من قبلک" دواړه وروسته یوازي لئن اشرکت یوازي خطاب و علیه الصلوة والسلام ته راوړی تر پایه پوري د آیت.

**ځواب:** په لئن اشرکت کي مراد ټوله انبیاء دي یعني و هر نبي ته دا خطاب کړل سوی ؤ "لئن اشرکت آه" وقال العلامة التفتازاني "فالمخاطب هو النبي ﷺ مع ان عدم اشراکه مقطوع به وجیئ بلفظ الماضي یعني لئن اشرکت لپاره د ابراز د اشراک په معرض کي ده، حاصل علی سبیل الفرض والتقدیر لپاره د تعریض لمن صدر منه الاشراک بعد الاسلام بان عمله قبل الارتداد من الحسنات قد قبط، او په کشف الاسرار کي وایي هذا خطاب مع الرسول ﷺ، والمراد به غیره انتهی.

**درویش وایي:** لاحاجة الی ارادة الغیر لان الکلام مبني علی الفرائض المحض کما قلنا سابقًا، نعم هذا الخطاب تعریض علی غیره ممن صدر عنه ذالک وفرق عظیم بین الارتداد والتعریض فافهم، او حسین کاشفي" په تفسیر حسیني کي وایي: واصح آنست که مخاطب بسبب ظاهر پیغمبرانند و از روی حقیقت افراد مسلمانان ایشان اند آه، درویش میگوید اگر مراد کاشفي" آن باشد معنای تعریضی مقصود بالحقیقة میباشد فهو صحیح واگر مراد او آن باشد که مراد از لفظ ایت ایشانند فهو لیس بشیئ فتدبر.

**فائده:** صاحب المواقف القاضي عضد الدین" دا آیت دلیل ګرځولی دی پر دې خبره چي صدور د کبائرو له انبیاء علیهم السلام څخه روا دی، لکن روح المعاني وایي لیس بشیئ ولي دا آیت خو محمول پر فرض محض دی فافهم.

بَلِ اللّٰهَ فَاعْبُدْ وَكُنْ مِّنَ الشّٰكِرِيْنَ ﴿٦٦﴾

بلکي خاص یعني په توحید سره د خدای ﷻ عبادت کوه ولهذا قدم المفعول به، هذا رد لما امروه" به کمامر في شان نزول الآیة.

**فائده:** اسم جلیل منصوب دی په اعبد سره والفاء زائدة، شان نزول الآیة: ترمذي له ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت کړی دی چي یو یهودي تېر سدی د علیه الصلوة والسلام په حضور کي نو یې وویل کیف تقول یا ابا القاسم اذا وضع الله السموات علی ذه (پر دې ګوته) والارضین علی ذه والماء علی ذه والجبال علی ذه.

**درویش وایي:** چي اشاره و ذه د لاس و څلورو ګوتو ته ده، فانزل الله تعالی هذه الآیة.

وَمَا قَدَرُوا اللهَ حَقَّ قَدْرِهِ

**درویش وايي:** چي مذكوره شان نزول روح البيان او مظهري بيان كړى دى، او وايي: اى ما عظموه جل جلاله حق عظمته اذ عبدوا غيره تعالى وطلبوا من نبيه عبادة غيره، قال الحسن والسدي، ترجمة الآية عبارة روح المعاني: دوى (يعني مشركانو د مكې) تعظيم د خداى ﷻ نه دى كړى په حق عظمت سره، ولې چې دوى عبادت د غير د خداى (يعني بتانو) كاوه، او دوى طلب د نبي د عبادت د غير الله كاوه كمامر في شان نزول قوله تعالى "قل افغير الله الآية" وقال المبرد اصله من قولهم فلان عظيم القدر يريدون بذالك جلالته انتهى، او هغه تفسير چې راغب اصفهاني راوړى دى ددې آيت په اړه بقوله "لايعرف كنهه غيره انتهى" پر هغه دا سوال واردېږي چې پېژندل د خداى ﷻ په حقيقت او په ماهيت سره په دغو كسانو سره چې په آيت كي راوړه سول يعني د ما قدروا الله آه خاص نه دى، بلكې هيڅوك يې نسي كولاى، چنانچه په شرح كي د سلم العلوم للقاضي محمد مبارك دلائل قطعيه راوړه سوي دي چي تصور د خداى بالكنه يعني ذاتيات د خداى او پېژندلو ته د خداى مرئة كي ممتنع دى لعدم الذاتيات له تعالى ذهنًا وخارجًا ولا بكنهه لاستحالة الاحاطة على حقيقته تعالى: ولنعم ماقيل:

العجز عن درک الادراک ......... والبحث عن كنه ذات الله اشراک

**فائده:** بعض علماء په دې سبب چي د فقير حواشي پر درسي كتابو ډېر شهرت او مقبوليت لري د خپل شهرت او مقبوليت لپاره دى څه ناڅه حاشيه پر هغه كتاب وكړي، كتاب فروشانو ته يې وركړي هغه يې چهاپ كړي ضمنًا دده شهرت هم پكښې راسي، او چاته حواله هم نه كوي ..... مصرع:

نه هر كه سر بتراشد قلندرى داند

ولا يخفى ان هذا فعل غير مقبول اوس هغه عالم د قرآن عظيم تفسير په عربي ژبه شروع كړى دى تاسي به يې وويني چي تفسير ايوبي ورسره ګوري، او عبارت به يې عربي ته نقل كوي، البته عنوان به بدلوي مثلاً يقول بلاغة القرآن يا هذا فوائد هذه الآية وامثال ذالك، فلا يجز الفقير لنقل تفسيره الى العربية بدون اجازة الفقير او الحوالة الى تفسيره.

**درويش وايي:** چي په څومره عرق ريزي او جګر خوني د مختلفو تفاسيرو څخه په مطالعه ما دا تفسير و عالم دنيا ته په پښتو ژبه تصنيف کړی دی، دا ملا صاحب و دې تفسير ته ګوري او عربي ته يې نقل کوي.

برادرانو: نيت د شهرت د دنيا مقبول عند الله نه دی، اعبدوا الله مخلصين له الدين.... بيت:

عبادت باخلاص نيت نيکو ست...... وگرنه چه آيد ز مغز پوست

**فائده:** درويش د هغه عالم د نوم اخستلو څخه ډډه وکړه، ولي هر مدرس عالم دده په سوء صنيع پوهېږي.

## وَالْأَرْضُ جَمِيعًا قَبْضَتُهُ يَوْمَ الْقِيٰمَةِ

يعني ترا او مځکو پوري سره د ټولو اجزاؤ، که پټ وي او که لڅ وي، د هغه په قبضه کي دي په ورځ د قيامت.

**پوهسه:** چي ''قبضته'' يو وار قبض (يعني په موټه سره نيولو ته وايي) مراد ځني المقبوض دی بالکف من قبيل تسمية المفعول بالمصدر وهو کثير في لسان العرب.

**پوهسه:** چي مظهري ؒ وايي هذه الآية من المتشابهات عن الظاهر (ولي چي ظاهري معنی خو يې دا ده چي مځکه ټوله يو موټ د خدای ؒ ده په ورځ د قيامت او دا اسمانونه پيچل سوي دي په راسته لاس کي د خدای ؒ، نو دا معنی خو مقتضی د جسميت د خدای ؒ ده او د اعضاء درلودل د خدای ؒ ده وهذا محال) لايعلم تأويله الا الله، انتهی قول المظهري ؒ، وروسته مظهري ويلي دي چي علماء د بيان (والله اعلم من اراد بعلماء البيان) چي دا آيت وارد دی پر طريقه د تمثيل او تخييل من اعتبار القبضة واليمين حقيقةً ولا مجازًا انتهی.

**درويش وايي:** چي په ورته آيتو کي لکه ''يد الله فوق ايديهم، الرحمن علی العرش استوی، اينما تولوا فثم وجه الله، وامثالها'' او دا غه رنګه په ورته احاديث شريفه ؤ کي درې مذهبه دي.

(١) مذهب د سلف الصالحين دی چي په نقل له مظهري څخه تاسي واورېدی.

(٢) مذهب د ډېرو متأخرينو دی چي دا تمثيل د حال د عظمت د خدای ﷻ دی ونفاذ قدرته ؒ وحقارة الافعال العظام التي يتحير فيه الاوهام نسبت و قدرت ته د

خدای ﷻ بحال من یکون له قبضة فیها الارض جمیعًا ویمین بها یطوی السمٰوات من غیر اعتبار یمین ولا قبضة حقیقة ولا مجازًا ، لکه مظهري چي په عبارت د علماء البیان راوړه، او بعض متأخرین وایي چي په دې آیت کي اشاره و دې ته ده چي هغه شیان چي مشرکان یې د خدای ﷻ سره تنزه ذاته عن الشرکة، شریکان بولي ارضیًا کان ام سماویًا لکه بتان یا ملائکه تحت سلطانه ﷻ.

(۳) مذهب د بعض متأخرینو دی، دوی وایي چي قبضه مجاز دی عن الملک والیمین مجاز من القدرة التامة وامثال ذالک من المجازات.

**فائده:** په ورته احادیثو شریفه ؤ کي هم دغه مذهب سته، چنانچه بخاري، مسلم، ترمذي، نسائي وغیرهم له ابن مسعود ؓ څخه روایت کړی دی قال: جاء حبر من الاحبار (له ملایانو څخه د یهودانو) الی رسول الله ﷺ فقال یا محمد انا نجد الله (یعني في التورات) انه تعالی یحمل الله السمٰوات یوم القیامة علی اصبع والارضین علی اصبع والشجر (یعني جنسه) علی اصبع والماء والثری علی اصبع وسائر الخلق علی اصبع فیقول انا الملک. فضحک رسول الله ﷺ حتی بدت نواجذه تصدیقًا لقول الحبر، ثم قرء رسول الله ﷺ وما قدروا الله حق قدره.

**درویش وایي:** چي مظهري او روح المعاني دواړو دا حدیث راوړی دی، او روح المعاني نور احادیث هم راوړي دي، که گفته اند، مشت نمونه خروار است.

وَالسَّمٰوٰتُ مَطْوِيّٰتٌۢ بِيَمِيْنِهٖ ؕ سُبْحٰنَهٗ وَتَعٰلٰى عَمَّا يُشْرِكُوْنَ ﴿٦٧﴾

**پوه سه:** چي سبحانه لپاره د تعجیب دی یعني ما ابعد عمن هذه قدرته وعظمته تعالی عن اشراکهم (که کلمه د ما مصدریه وي، او عما یشرکونه به، که کلمه د ما موصوله وي، نو عائد یې محذوف دی کما اشرنا الیه) سعدي ؒ وایي:

ای برتر از قیاس و گمان و وهم .. وزهر چه گفته اند شنیدیم وخوانده ایم
مجلس تمام گشت وبپایان رسید عمر .. ما همچنان در اول وصف تو مانده ایم

روی الرزوقي ؒ اذا اردت استعمال حزب البحر لپاره د سلامتیا د هلاک څخه د دریاب فقدم عند رکوبه بسم الله مجریها ومرساها ان ربي لغفور رحیم، وما قدروا الله حق قدره الی قوله عما یشرکون، ولي چي په حدیث صحیح کي راغلي دي انه امان من الغرق ومن الله الخلاص.

**درویش وایي:** چي مراد له حزب البحر څخه دعاء د سپرتیا په کښتي کي هغه چي اوس مشهور په حزب البحر سره دی هغه نه دی مراد.

وَنُفِخَ فِي الصُّوْرِ

او پوه به کړل سي په شپیلي کي چي قرن یې هم بولي، دا نفخة اولی ده، المشهور ان النافخ واحد وهو اسرافیل" بل حکی القرطبي" الاجماع علیه في تفسیره، او په بعض آثارو کي راغلي دي ي نافخ دوې ملکي دي چي هغه آثار روح المعاني روارې دي.

**پوه سه:** چي صور قرن عظیم دی چي په ده کي سوري سته په عدد د ټولو ارواحو، او ابو الشیخ له وهب بن منبه" څخه روایت کړی دی چي صور د سپیني ملغلري څخه جوړ دی صفایي یې لکه د ښیښې ده.

فَصَعِقَ مَنْ فِي السَّمٰوٰتِ وَمَنْ فِي الْاَرْضِ اِلَّا مَنْ شَآءَ اللّٰهُ

نو مړه به سي هغه احیاء که په اسمانو کي وي او که په مځکه کي وي یعني من الملائکة والانس والجن وغیرهم من الحیوانات، مګر نه هغه څوک چي د خدای ورته اراده وي، مشهوره داده چي مستغنی جبرئیل، اسرافیل، میکائیل او ملک الموت دی، او بعض مفسرین وایي چي اته ملکي حملة العرش هم مستغنی دي چي مجموع دوولس سي، او اخیري چي مري ملک الموت عزرائیل" دی، او النقاش" وایي چي اخیري چي مري جبرئیل" دی والله اعلم، او بعض مفسرین وایي چي رضوان د جنتو مشر، او حوري د جنتو او مالک خازن النار او زبانیه ملي د دوږخ هم په استثنیاتو کي داخل دي.

**فائده:** په ترتیب کي ددوی اختلاف دی چي په درمنثور کي ذکر سوی دی.

ثُمَّ نُفِخَ فِيْهِ اُخْرٰى فَاِذَا هُمْ قِيَامٌ يَّنْظُرُوْنَ ۝

بیا به پوه کړل سي، دویمه نفخه د احیاء، نو ناببره به اموات ټول له یعني من لدن آدم علیه السلام تر نفخة ثانیه، من المؤمنین والکافرین والجن والشیاطین له قبرو وغیرها څخه راوتلي وي، سترګي به لغړوي شاوخوا به ګوري، لکه یو حیران سړی، او یا معنی د ینظرون داده چي انتظار کوي چي په دوی به څه کړه کیږي.

**درویش وایي:** چي په قول د مظهري په مابین کي د نفختینو څلوېښت ورځي

دي، او په سورة والنازعات کي يعني په تفسير کي د دغه سورت مظهريؒ د پر احاديث راوړي دي دليل پر فصل مذکور باندي يعني څلوېښت ورځي، وفي الحديث: انا اول من يشق عنه الارض (۱) و اول من يحى من الملائكة اسرافيل لينفخ في الصور (۲) و اول من يحى من الدواب براق النبي ﷺ (۳) و اول من يستظل في ظل العرش رجل انظر معسرًا او محًا عنه (چي مسکين پور وړي ته يې مهلت ورکړی وي او يا يې پور ور بخښلی وي) (۴) و اول من يرد الحوض (اى حوض الكوثر النبي ﷺ فقراء الامة) (۵) و اول من يكسنى ابراهيم خليل الله عليه السلام لانه القى في النار عريانًا. (۶) و اول من يكسى (چي کالي د اور په اغوستل کېږي ابليس عليه اللعنة دی) (۷) و اول من يحاسب جبرئيل لانه كان امين الله على رسله (۸) و اول ما يقضى في الدماء قابيل چي هابيل يې مړ کړی كما جاء في القرآن الكريم في موضع آخر (چي د چا وينې يې توی کړي وي يعني بغير حق) (۹) و اول ما يحاسب الرجل على صلوة .... بيت:

روز محشر كه جان گداز بود ............ اولين پرسش ز نماز بود

(۱۰) و اول من تسأل المرئة عن صلاتها (۱۱) ثم من حق بعلها (اى زوجها) (۱۲) و اول العبد ما يسأل العبد على نعمته (يعني چي شکر يې وايه که نه) (۱۳) و اول من يحاسب المرء المتوضي من الماء البارد (۱۴) و اول من يوضع في الميزان الخلق الحسن (۱۵) و اول ما يوضع في الميزان ما يسأل العبد على عياله (۱۶) و اول من يدخل من الاغنياء يوم القيامة عبد الرحمن بن عوف رضي الله عنه و اول من يعلم عليه الحق سبحانه اى غير الاولين عبد الرحمن بن عوف (۱۷) و اول من سلم الحق او خوش آمديد عمرؓ.

## وَأَشْرَقَتِ الْأَرْضُ بِنُورِ رَبِّهَا

مراد له ارض څخه ځمکه د عرصات د قيامت ده، او مراد له نور څخه هغه دی چي خدای يې خالق دی، او بغويؒ وايي چي خدایؒ په هغه نور سره تجلی کوي د فصل د قضا لپاره بين العباد آه.

**درويش وايي:** چي دا د رؤيت الهي بلا كيف نور نه دی، ولي هغه ديدار د رب جل وعلا خو په جنت کي دی، او د جنت دخول خو وروسته تر فصل القضاء دی وقد بعد المظهريؒ حيث قال فما يتضارون في نوره كما لايتضارون بالشمس في

اليوم الضحو (چې وريځ نه وي) دليل د بعد يې دادی چې دغه الفاظ چې ده راوړي دي فيما يتضارون دا جزء د هغه حديث دی چې بخاري راوړی دی په رؤيت کې د خدای ﷻ في الجنة و دخول الجنة بعد فصل القضاء كما مر عنقريب، فخلط المظهري احدهما بالآخر، او السدي او الحسن وايي چې مراد له نور ربها عدل ربها دی، سماه نورًا لانه يظهر به الحقوق كما سمى الظلم ظلمة، قال رسول الله ﷺ الظلم ظلمات يوم القيامة، متفق عليه، او روح المعاني وايي چې دا نور على ما روی عن ابن عباس نور يخلقه الله تعالى بلا واسطة اجسام مضيئة كالشمس والقمر واختاره الامام الهمام الرازي (نو د دغه نور اضافت و خدای ﷻ ته داسې دی لکه اضافت د ناقة الله في قصة صالح ای ناقة مخلوقة لله تعالى) بيا روح المعاني د محي السنة يعني البغوي څخه تفسير په تجلی د رب جل وعلا لفصل القضاء راوړی دی، وروسته روح المعاني د الحسن او السدي تفسير كما مر راوړی دی وجعله من باب الاستعارة.

**فائده:** استعاره د نور و قرآن او برهان ته په څو ځايه کې د قرآن راغلې ده، واختار هذا التفسير الزمخشري في الكشاف، وروسته روح المعاني ډېر طويل بيان كړی دی فارجع اليه، او روح البيان هم تفسير د نور په عدل سره استعارةً مختاره كړی دی او نور طويل بيان يې هم كړی دی فارجع اليه.

وَوُضِعَ الْكِتٰبُ

وربه كړل سي عمل نامې په لاس کې عمال.

**سوال:** عمل نامې پر اندازه د عمال بېخې ډېرې دي كما لايخفى او لفظ د كتاب خو مفرد دی، نو څرنگه د عمل نامو اراده څنې صحيح ده؟

**ځواب:** الف و لام په الكتاب کې لپاره د جنس دی والجنس يطلق على الكثير والقليل فيصح ارادة الكثير منه فافهم، البيهقي له انس ؓ څخه روايت كړی دی عن النبي ﷺ قال الكتب كلها (عمل نامې ټولې) تحت العرش دي فاذا كان الموقف (چې خلگ د عرصات پر ميدان و درېږي) بعث الله ريحًا فتطيرها (خدای جلت قدرته يو باد پيدا كړي هغه ټولې باد راوړي) بالايمان والشمائل (په راسته او په چپه لاس کې يې د خلگو وركړي په اول کې د هري عمل نامې دا آيت نوشته وي) اقرأ كتابك كفى

بنفسک اليوم عليک حسيبًا (وو ايه عمل نامه دي کافي ده ستا نفس والباءزائدة کام في کفٰى بالله، نن ورځ پر تا باندي يعني پر عملو باندي د حساب لپاره)

وَجِاْىٓءَ بِالنَّبِيّٖنَ وَالشُّهَدَآءِ

راتګ وکړل سي په انبياؤ عليهم السلام سره، جلال الدين السيوطي وايي قال العلماء يکون الحساب بمشهد من النبيين وغيرهم انتهى قول السيوطي (والشهداء) او حاضر به کړل سي شاهدان چي مراد ځني شاهدان دي چي رسولانو تبليغ د رسالت کړی ؤ، وهم امة محمد ﷺ کما مر آنفًا، او عطاء وايي چي مراد له شهداء څخه کرام کاتبين حفظه دي استدلالاً بقوله تعالى ''وجائت کل نفس معها سائق و شهيد''

**پوه سه:** چي ابن المبارک له سعيد بن المسيب څخه روايت کړی دی چي هيڅ ورځ نسته مګر داسي چي و عليه الصلوة والسلام ته امتيان دده پيشبري سهار او مانبام ته نژدې، نو عليه الصلوة والسلام خپل امتيان پېژني په علامو (علامه يې په بل حديث کي داسي راغلې ده چي مخان او لاسونه به يې سپين وي من اثار الوضوء) او اعمال يې هم ورته معلوم وي (يعني د ملائکه په ذريعه) فلذالک يشهد عليهم، نو دی ﷺ پر دوی يعني امتيانو شاهدي د عدالت ادا کوي، کريمه ''لتکونوا شهداء على الناس'' چي بعض کافران د خپل نبي له تبليغ څخه انکار وکړي، نو امتيان د هغه نبي پر تبليغ وقوم ته شاهدي اداء کړي، څه وخت چي د هغه نبي امت جرح د فسق وکړي پر شاهدانو د امت د عليه الصلوة والسلام ويکون الرسول عليکم شهيدًا (و به ګرځي رسول چي نبي ﷺ دی پر تاسي يعني ستاسي پر عدالت شاهد)

وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَهُمْ لَا يُظْلَمُوْنَ ۝

او فيصله به وکړل سي په منځ کي د بندګانو په عدالت سره او پر دوی به ظلم نه کړل کېږي چي يا سيئات وربالا کړي يا د حسناتو څخه څه کم کړي.

وَوُفِّيَتْ كُلُّ نَفْسٍ مَّا عَمِلَتْ وَهُوَ اَعْلَمُ بِمَا يَفْعَلُوْنَ ۝

او کافي به ورکړل سي هر نفس ته جزاء د ما عملت من حسن وسوء في عملها.

**پوه سه:** چي اسم تفضيل پر خپل معنا نه دی بلکې په معنی د عليم دی ولي چي بل څوک خو د بندګانو په عملو نه دی خبر.

**پوښتنه:** خدای ﷻ د هر سړي په ټولو احوالو خبر دی، نو کاتب چې حفظه دي او شاهدي، ته څه ضرورت دی؟

**ځواب:** د دې پوښتنې په جواب کې عطاء وايي چې ضرورت له دې کبله دی چې عادت الهي دغسې دی، او بل دا چې پر کافرانو منکرانو الزام راسي (چې تفصيل يې فقير بيان کړی)

## وَسِيقَ الَّذِينَ كَفَرُوا إِلَىٰ جَهَنَّمَ زُمَرًا

و به شړل سي هغه کسان چې کافران وي (يعني کفر يې اختيار کړی ؤ په دنيا کې و) دوږخ ته ''زمر'' جمع د زمرة ده يعني جماعت جماعت، ډله ډله يوه د مخه بله په پسې يعني چې په ضلالت او کفر کې اول لمبر وي هغه به اول دوږخ ته ځي وهکذا دوهم لمبر دريم لمبر.

**تنبيه:** په لفظ د سيق سره اشاره و توهين ته د دوی ده، ولې چې لفظ د سوق عمومًا په حيواناتو کې استعمالېږي و مثل ساق فلان غنمه او ابله، او بقرة الی غير ذالک.

## حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوهَا فُتِحَتْ أَبْوَابُهَا

حتی چې دوی ورسي (ها ضمير جهنم ته راجع دی مؤنث سماعي دی) يعني د دخول لپاره خلاصې کړل سي ټولې اووه دروازې چې د دوی تر ورتلو د مخه بندې وي.

**سوال:** د ټولو دروازو د دوږخ و خلاصولو ته څه ضرورت دی؟

**ځواب:** بعض کفار د يوې طبقې مستحق وي بعض د بلې، بعض د اسفل السافلين وړ وي، نو د دې لپاره چې هر کافر و هغه مستحق ځای ته ورسول سي ټولې دروازې خلاصې کړل سي.

**پوښتنه:** د مخه تر رسېدو د کافرانو يې ولې دروازې نه خلاصولې؟

**ځواب:** تاچې تود وخی د دوږخ في الجملة کمه نه سي.

## وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا أَلَمْ يَأْتِكُمْ رُسُلٌ مِنْكُمْ

و وايي دوی ته ساتندويان د دوږخ، لپاره د سرزنش او توبيخ او تقريع، آيا نه وه درغلي تاسي ته رسولان چې ستاسي د جنسه به وه يعني انسانان، دا مقوله يعني مفعول به دی، قال د استفهام د تقرير دی يعني باعثه د دوی پر اقرار کما يدل

جوابهم بقوله بلى، په دې آيت كې مقابله د جمع چې ضمير د كم ده په جمع سره چې رسل دى چې مفاد يې توزيع د احاد پر احاد ده يعني هري فرقې ته خپل رسول.

يَتْلُوْنَ عَلَيْكُمْ اٰيٰتِ رَبِّكُمْ وَيُنْذِرُوْنَكُمْ لِقَآءَ يَوْمِكُمْ هٰذَا ؕ

چې تلاوت كړى واى هغو رسولانو پر تاسي باندې د آيات د رب ستاسي او تاسي يې بېرولي واى د راتلو څخه ددې ورځې يعني د قيامت چې مشتمل پر عذاب د دوزخ دى، او يا مراد د "يومكم هذا" څخه وقت دخولهم النار (نو يوم په معنى د مطلق وخت ده چې تعيين يې په هذا سره وسو) بيضاوي وايي چې ددې آيت څخه دا معلومه سوه چې تكليف قبل الشرع نسته، دليل يې دا ويلى دى چې خزنه ؤ د دوزخ توبيخ و دوى ته مربوط په ارسال الرسل او په انذار د كتابو پورې وګرځاوه، مظهري، روح المعاني او تفسير كبير دا خبره رد كړې ده چې دا آيت دليل ددې نه دى چې پر اشراک بالله باندې به هم عذاب نه وركوي چې رسل نه وي او انذار الكتب هم نه وي، ولې خزنة النار چې توبيخ مربوط كړى په ارسال الرسل او انزال الكتب سره هغه درجه كامل د توبيخ ده يعني با اين همه تاسي كفر اختيار كړى، دليل دا دى چې عقل كه څه هم كافي نه دى په ادراک كې د ټولو شرائعو د دين لكه لمونځ، روژه، زكوة وغيرها لكن پر وحدانيت د خداى كافي دى لحكم العقل بلزوم التوحيد لصانع العالم بدون ورود الشرع والرسل والكتب، حتى چې د عقائدو په كتابو كې وايي چې يو سړى په شواهق الجبال كې وي ايمان پر وحدانيت د صانع العالم پر لازم دى او كه چېري دغه سړي شرک مختاره كړى په ورځ د قيامت به معذب بالنار وي او عذر نه لري، سعدي شيرازي وايي:

برگ درختان سبز درنظر هوشيار ..... هر ورقى دفتريست معرفت كردگار

يو بل شاعر مسئله مذكوره په خپل دغه بيت كې راوړې ده:

گر انبياء هم نآمدى نى شرع بودى درجهان
واجب شدى بر دمان ايمان بخالق مقتدر

لكن خداى ﷻ چې رسولان را واستول او كتابونه يې نازل كړه او احكام د دين يې روښانه كړه لم يبق للمكلفين عذر من الاعذار په هيڅ حكم كې د دين.

قَالُوْا بَلٰى وَلٰكِنْ حَقَّتْ كَلِمَةُ الْعَذَابِ عَلَى الْكٰفِرِيْنَ ﴿٧١﴾

دوی وویل، یعنې دوږخیانو و خزنة النار ته چې هو مونږ ته رسولان راغلي وه او کتابونه د خدای له جانبه هم نازل سوي وه لکن استدراک په جواب کي د سوال چې نو ولي و دوږخ ته وارد سوي واست، پر مونږ ثابته سوې وه کلمه د عذاب یعنې کلمة الله بالعذاب حکمه في الازل بانهم من الاشقیاء باختیارهم پر کافرانو.

**پوښتنه:** قائلین د دې قول خو کافران دي نو ځای خو د ضمیرؤ یعنې علینا نو ولي دوی کافرین وو ایه؟

**ځواب:** لپاره د دلالت پر دې چې دا عذاب پر مونږ ثابت سو په سبب د کفر زمونږ.

قِيْلَ ادْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ﴿٧٢﴾

وبه ویل سي، یعنې د خزنة النار له خوا په قرینه د دې چې خبري د دوی سره وي، او یا من جانب الله عزوجل چې داخل سئ و دروازې ته د دوږخ چې همېشه به یاست په دوږخ کي ابداً ابداً.

**پوښتنه:** په وخت کي د دخول خو خلود نسته، نو حالیت د خالدین څرنګه دی او سره د دې په نحو کي وایي چې زمانه د حال او د عامل د ذی الحال به یوه وي؟

**ځواب:** په علم النحو کي داسي حال ته حال مقدره وایي چې معنی یې داده چې داخل سئ دوږخ ته چې مقدر دی خلود ستاسي په اور کي، نو زمانه د دخول او د تقدیر د خلود خو یوه ده، وعلی هذا فقس جمیع الاحوال المقدرة وهي في القرآن العزیز کثیرة فافهم.

فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِيْنَ ﴿٧٢﴾

بد دی قرارګاه د متکبرانو (یعنې چې د خدای ﷻ او د رسول او د کتاب د منلو څخه یې تکبر کاوه)

**پوهه:** چې مخصوص بالذم یې محذوف دی لذکره فیما سبق ای جهنم، او کلمه د فاء لپاره د سببیت ده فان السابق من الکلام سبب للازم.... بیت:

تکبر عزازیل را خوار کرد ........ بزندان لعنت گرفتار کرد

نو له دې آیت څخه دا معلوه سوه چې وروسته تر کفر لویه ګناه کبیره ده، بلکې

کفر له تکبر څخه پیدا کېږي کما قال الله تعالی في شان ابلیس "ابی واستکبر" منع یې وکړه له سجدې څخه د آدم علیه السلام او تکبر یې وکړی له امر څخه د خدای ﷻ بالسجود لآدم، وقال انا خیر منه "فکان من الکافرین" ای صار من الکافرین.

## وَسِيقَ الَّذِينَ اتَّقَوْا رَبَّهُمْ إِلَى الْجَنَّةِ زُمَرًا ۖ

**درویش وایي:** چې د سیق معنی دلته هغه د اهانت معنی نه ده لکه د کافرانو په حال کې چې یې ذکر کړه، بلکې معنی یې داده چې چابک چابک روان سئ و دار الکرامة ته، وقیل سیق مراکبهم (ولایذهب بهم الا راکبین) "زمرًا" ډلي ډلي، علی تفاوت مراتبهم في الشرف وعلو الطبقة یعني الافضل فالافضل.

## حَتَّىٰ إِذَا جَاءُوهَا وَفُتِحَتْ أَبْوَابُهَا

**بوه سه:** چې جمله د فتحت د کوفي قراء په تخفیف د حا وایي، او نور قراء ﷺ په تشدید وایي، او کلمه د فتحت حال ده قد ورسره محذوف دی کما هو القانون النحوي في الماضي الواقع حالاً، والمعنی وقد فتحت، دروازې د جنت خلاصې ولاړې وي د مخه تر ورتګ ددوی تعظیمًا لهم واکرامًا لهم تا چې د انتظار تکلیف هم دوی ته ور نه کړي.

## وَقَالَ لَهُمْ خَزَنَتُهَا سَلَامٌ عَلَيْكُمْ طِبْتُمْ فَادْخُلُوهَا خَالِدِينَ ﴿٧٣﴾

او وایي ساتندویان د جنتو سلامتي دې وي پر تاسې، تاسې پاک یاست له خیرو څخه د ګنهو یا مو ګناه هرګز نه ده کړې، او لطهارتهم منها بالشفاعة اویا بالمغفرة بالرحمة العامة لرب المغفرة او بعد طهارتهم بالعقوبة في جهنم مدةً.

**بوه سه:** چې سلام اخبار دی د ملکو له خوا، والمعنی لا یعتریکم مکروه ابدًا.

**درویش وایي:** چې دروازې د جنتو اته دي بالاجماع وقد دلت علیه الاحادیث الشریفة علی ذالک.

"فادخلوها خالدین" حال مقدرة کما مر، له امیر المؤمنین علي کرم الله وجهه څخه روایت دی چې جنتیان چې سوق سي و جنت ته، نو جنت ته چې ورسېږي دوی پیدا کړي په دروازه کې د جنت یوه درخته چې لاندې تر تنې یې دوې چینې روانې وي، نو هر مؤمن یعني په بنوونه د ملکو په یوه چینه کې غسل وکړي چې ظاهر بدن یې پاک او

بناشسته سي او د هغه بلي چيني څخه اوبه څيښي چي باطن ده پسي پاک سي، نو ملکي په دروازه کي د جنت تيار سي ولاړي وي، و ويقولون سلام عليكم الى اخيره.

وَقَالُوا الْحَمْدُ لِلّٰهِ الَّذِي صَدَقَنَا وَعْدَهُ

او و وايي (جنتيان چي و جنت ته داخل سي او دوی وويني په جنت کي ما لا عين رئت ولا اذن سمعت ولا خطر على قلب بشر ولا سمع بيانه المقال، نو دوی وايي شكرًا لما انعم الله عليهم) ټوله ثناء او صفت خدای ﷻ لره دی چي زموږ سره يې رښتيا کړه هغه وعده چي زموږ سره يې کړې وه، يعني په دنيا کي پر ژبه د رسولانو، او په کتب منزله ؤ کي.

وَأَوْرَثَنَا الْأَرْضَ نَتَبَوَّأُ مِنَ الْجَنَّةِ حَيْثُ نَشَاءُ ۖ فَنِعْمَ أَجْرُ الْعَامِلِينَ ۝

"و اورثنا الارض" يعني ارض الجنة، والمراد بايراثها دخولهم اياها، موږ ګرځو په جنتو کي هر چيري چي مو اراده وي، اولاً لان ارض الجنة وسيعة جدًا، دويم چي موږ ته خدای اسانه کړې ده "فنعم اجر العاملين" ډېر ښه دی اجر د عاملينو ای الجنة، طبراني او ابو نعيم د سيدتنا عائشة رضي الله عنها څخه داسي روايت نقل کړی دی چي دې وويل يو سړی (د سړي نوم يې نه دی ښوولی) نبي كريم ﷺ ته راغلی "فقال يا رسول الله ﷺ انک لاحب الى من نفسي ومن اهلي و ولدي" او چي زه کور ناست يم ته مي را پياد سې طاقت مي نه کېږي چي تا ته در نه سم او و دي نه وينم او ستا مبارک مخ ته و نه ګورم "واذا اذكرت موتي و موتک" او زه چي خپل مرګ او ستا مرګ را پياد کړم، نو په زړه کي مي دا يقين سي چي ته که مړ سوې يا رسول الله نو د انبياؤ عليهم السلام په لويو درجو کي به يې، او که زه مړ سم په ډېرو ښکښتو درجو کي به يم، نو زه پر دې ډېرېږم چي زه به تا نه وينم، عليه الصلوة والسلام دې سړي ته هيڅ جواب ور نه کړی حتى چي نازل سو هغه آيت چي په بل ځای کي ذکر کړل سوی دی "ومن يطع الله والرسول فاؤلئک مع الذين انعم الله عليهم من النبيين والصديقين والشهداء والصالحين وحسن اؤلئک رفيقًا".

**درویش وايي:** چي بشارة عظيم لمن كان يحب رسول الله ﷺ محبةً شديدةً.

وَتَرَى الْمَلٰٓئِكَةَ حَآفِّيْنَ مِنْ حَوْلِ الْعَرْشِ يُسَبِّحُوْنَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ

ته به وينې، اى مخاطب غير معين، ملائكه چي احاطه يې كړې وي (حافين، حال دى له ملكو څخه) پر شاوخوا د عرش چي تسبيح وايي، متلبسين بحمد ربهم يعني سبحان الله وبحمده.

**فائده**: دا تسبيح صرف او صرف لپاره د عبوديت او لذت دي لا تسبيح عبادة التكليف، لان التكليف ساقط في الوقت المذكور اى يوم القيامة.

وَقُضِيَ بَيْنَهُمْ بِالْحَقِّ وَقِيْلَ الْحَمْدُ لِلّٰهِ رَبِّ الْعٰلَمِيْنَ

او قضاوت د رب العزة وكړل سي، يعني په منځ كي د ټولو خلكو، په عدل سره، چي مؤمنان جنت ته داخل كړي او كافران و اور ته، او وايي يعني اهل الجنة شكرًا لما انعم الله عليهم هغه وخت چي خپله وعده خداى ؟ د دوى سره پوره كړې، او بعض مفسرين وايي چي ملكي شكر او حمد وايي پر ادخال د اولياء الله و جنت ته او د اعداء الله دوږخ ته، د عائشة رضي الله عنها څخه روايت دى چي عليه الصلوة والسلام هره شپه سورة الزمر او سورة بني اسرائيل وايه، رواه الترمذي والنسائي والحاكم (رواه المظهري في تفسيره)

**درويش وايي**: بعونه تعالى وحسن توفيقه تفسير د سورة الزمر په وخت كي د ځانبت (١٩) تخمينًا د محرم الحرام سنه (١٤٣٢) هـ پاى ته ورسېدى.



سورة المؤمن مكية وهي خمس وثمانون اية وتسع ركوعات
بِسۡمِ ٱللَّهِ ٱلرَّحۡمَٰنِ ٱلرَّحِيمِ

د سورة المؤمن بل نوم سورة غافر دی، او بل نوم يې سورة الطول دی، له ابن عباس، ابن الزبير او سمرة بن جندب ﷺ څخه روايت دی چې دا سورت مكي دی، او ابو حيان نقل د اجماع پر دغه كړې ده، وقيل غير ذالک.

قال البغوي عن ابن مسعود چې ده وويل چې زه واقع سم په هغه سورتو كې چې په سر كې يې حٰمٓ وي زه ځان داسي ګڼم لكه باغو ته چې ورسم استريح فيهن، داغه رنګه بغوي په خپل سند سره ويلي دي له ابن عباس څخه "لكل شيئ لباب (خلاصه سته) ولباب القرآن الحواميم" (چې په سر كې يې حم وي) او حاكم له ابن مسعود څخه روايت كړی دی چې "الحواميم ديباج القرآن" حم د قرآن لكه وريښم دي.

حٰمٓ ۞ تَنزِيلُ ٱلۡكِتَٰبِ مِنَ ٱللَّهِ ٱلۡعَزِيزِ ٱلۡعَلِيمِ ۞

**درويش وايي:** چې حٰمٓ له مقطعات قرآنيه څخه دي على الاصح، وقد مر الاختلاف واقوال العلماء فيها في اول سورة البقرة، او تنزيل خبر د مبتداء محذوف دی، ای هذا تنزيل الكتاب له جانبه څخه د خدای چې غالبه دی په خپل ملک او تصرف كې يعني څوک يې مانع نه سي كېدای او په هر شي د خپل مخلوق بنه خبر دی.

**درويش وايي:** چې روح المعاني، روح البيان، بيضاوي او مظهري چې تخصيص د دې دوو اوصافو وكړی لما في القرآن من الاعجاز (يعني چې سړی په مثل سره دده د كوچني سورت راتګ نسي كولای) او نور علوم متنوعه پكښې سته چې دا دال دی پر دې چې منزل يې خاوند د قدرت كامله دی او د علم بالغ دی، وقد نسب الى الامام الاعظم جميع العلم في القرآن لكن تقاصرت عنه افهام الرجال.

غَافِرِ ٱلذَّنۢبِ وَقَابِلِ ٱلتَّوۡبِ شَدِيدِ ٱلۡعِقَابِ

چې بخښونكی د ګناه دی و مؤمنانو عصيانو ته او قبلونكی د توبې دی و كافرانو ته چې له كفره توبه و كاږي. سخت دی عذاب دده، يعني هغه چاته چې لا اله الا الله نه وايي.

**پوه سه:** چي "توب" مصدر دی د تاب يتوب توبة، او بعض مفسرين وايي چي توب جمع د توبة ده، او له ابن عباس څخه روايت دی "غافر الذنب لمن قال لا اله الا الله، وقابل التوب لمن قال محمد رسول الله".

**فائده:** دواړه لفظه صفتان دي د لفظ الله.

**سوال:** په نحو کي وايي اضافت د صفت و خپل معمول ته اضافت لفظي د اضافت لفظي خو تعريف نه فائده کوي، نو څرنګه صفت د لفظ الله کېدای سي چي معرف دی؟

**ځواب:** په علم نحو کي وايي چي اضافت و معمول ته هلته لفظي دی چي صفت په معنی د حال يا استقبال وي دلته اضافت معنوي دی لعدم ارادة الزمان المخصوص بل هي للاستمرار.

**فائده:** د دې وصفين تر منځ چي واو راوړی دی لافادة الجمع بين الوصفين يعني محو الذنب وقبول التوبة كذا قال المظهري.

**پوه سه:** چي توبه ترک د ګناه دی، او هغه درې قسمه ده (۱) تائب و وايي چي ما دا ګناه نه ده کړې (۲) يا و وايي چي دا ګناه ما د فلاني سببه کړې ده، مثلاً زما مشر د قوم راته وويل چي دا فلانی بد کار وکړه (۳) يا داسي چي دا ګناه ما کړې ده بد کار مي وکړی بيا يې نه کوم، وهذا ابلغ الوجوه للتوبة. همدغه ته توبه په شرع کي وايي. او په شرع شريف کي توبه هغه ده چي يو ګناه پرېږدي په سبب د بدوالي يعني داسي نه وي چي يو سړی غلاوي کوي د خلګو کورونه لوټوي اخير په ستر ګو ړوند سي يا شل سي مثلاً نو غلا پرېږدي، دا توبه نه ده، او بل رکن د توبې دادی چي پر ما مضیٰ ګناه به پښېمانه وي، او دريم دادی چي ټينګ قصد به کوي چي آئينده به زه دا کار نه کوم او هغه ګناهونه چي امکان د تدارک يې وي د هغه به تدارک کوي، مثلاً لمونځونه يې نه وي کړي، روژې يې بې عذره خوړلي وي الی غير ذالک، نو د هغو به قضاء راوړي، يا يې د چا حق خوړلی وي د هغه حق به ورکوي يا به عفو ځني غواړي، فمن اجتمعت فيه هذه الاربعة فقد كملت شرائط التوبة، وفي هذه الصورة ورد "التائب من الذنب كمن لا ذنب له" دا خو د توبې معنا وه، او استغفار طلب المغفرة من الله تعالى لپاره د ګناه چي ده کوله، نو توبه

تر استغفار دمخه ده او صرف استغفار بلا توبة لایکون توبة بالاجماع، نو داسي به وايي تبت واسأت ولا اعود اليه فاغفرلي يا رب.

**فائده:** په منځ کي د غافر الذنب او قابل التوب يې واو راوړی دی، مظهري خو لکه دمخه چي تېره سوه وايي لافادة الجمع بين الوصفين، ددې توضيح داده چي په يوه موصوف کي دوه وصفه سره جمع کېدای سي نظر و يوې طائفې ته د مذنبينو تائبينو. فالمغفرة محو الذنوب بالتوبة و القبول يجعل تلک التوبة طاعة مقبولة يثاب عليها. حتی چي په عمل نامه کي دده سيئات چي محو سي په ځای کي يې حسنات نوشته کېږي، او يا يې واو ددې لپاره راوړی دی چي که واو نه وای خلګو به توهم ددې کاوه چي قابل التوب لپاره د مجرد توضيح د غافر الذنب راوړل سو.

**يوه سه:** چي "شديد العقاب" بل صفت دی د اسم جليل.

**سوال:** شديد خو صفت مشبه دی، او د صفت مشبه معنی خو د استمرار لپاره نه سي کېدای، نو اضافت يې لفظي دی، نو څرنګه صفت د معرفې چي اسم جليل دی ګرځېدای سي؟

**ځواب:** شديد په دې آيت کي په معنی د اسم فاعل دی ای مشدد العقاب لکه دمخه صفات لکه (اذين) په معنی د مؤذن دی.

## ذِى الطَّوْلِ

مجاهد وايي ذی السعة والغنٰی، او قتاده وايي ذی النعيم، او بعض وايي صفات القدرة الکاملة، او الحسن وايي ذی الفضل.

**فائده:** بعض مفسرين وايي چي اضافت د دراول صفات اضافت لفظيه د تعريف نه فائده کوي يعني په معنی د استمرار نه دی، نو صفت د اسم جليل نه دی بلکي درې سره بدل د اسم جليل دی، نو ذی الذول هم بدل دی صفت نه دی، ولي چي په علم نحو کي وايي چي تقدم د بدل پر صفت روا نه دی کذا قال صاحب المدارک.

## لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ اِلَيْهِ الْمَصِيْرُ ۝

نسته معبود بالحق مګر الله (فيجب الاقبال علی عبادته يعني قلبًا و قالبًا، صاحب المدارک وايي دا صفت اخرٰی دی د اسم جليل لکه ذی الطول) وده ته مرجع د ټولو عبادو دی يعني فيجازي المطيع والعاصي.

# مَا يُجَادِلُ فِيْ آيٰتِ اللّٰهِ اِلَّا الَّذِيْنَ كَفَرُوْا

جدال يعني ناحقه بحث نه كوي په آياتو كي د خداى، مګر نه هغه كسان چي كافران وي او مؤمنان د دوى په زړو كي يو شائبه د شک نه پيدا كېږي. فضلاً عن الطعن في الآيات القرآنية. دا آيت په قول د روح المعاني نازل سوى دى په شان كي د حارث بن قيس السلمي. احد المستزئين ونقل ذالک عن ابى العالية، والمعنى مايخاصم في آيات الله بالطعن فيها بان يقول في حقها سحر او شعر او اساطير الاولين او نحو ذالک. او يا په آيات كي تأويل كوي يعني په متشابه آيتو كي لكه "الرحمن على العرش استوى، يد الله فوق ايديهم، اينما تولوا فثم وجه الله" او نحو ذالک مخالف له هغه څخه چي په تواتر د عليه الصلوة والسلام ثابت وي.

**فائده:** يو بحث دى په آياتو كي د قرآن لپاره د حل د مشكلاتو د قرآن او اثبات د حقائقو د قرآن او ابطال د شبهاتو د اهل الزيغ و الضلال كالروافض والخوارج وغيرهما فمن اعظم الطاعات كجهاد رسول الله ﷺ. روى البغوي عن عمرو بن شعيب عن ابيه عن جده هغه وايي چي يوه ورځ عليه الصلوة والسلام واورېدله د يو قوم څخه چي په قرآن يې مجادله كوله (يعني يوه به ويل چي فلانى آيت د فلاني ايت څخه مخالف دى) فقال ﷺ انما هلک من كان قبلكم بهذا ضربوا كتاب الله بعضه ببعض چي دوى آيات د يو په بل سره جنګول (يعني دا فلان آيت د فلاني آيت څخه يې حكم مخالف دى) وانما نزل كتاب يصدق بعضاً فلا تكذبوا بعضه ببعض (تاسي تكذيب د بعضو آياتو په بل سره مه كوئ) فما علمتم فقولوه (هغه چي په پوهېږي هغه وايي) وما جهلتم فكلوه الى عالمه (چي نه په پوهېږي هغه وسپارئ و عالم ته. يعني د عالم څخه پوښتنه وكړه) لانه قد ورد ان من العلم ان تقول لما لا تعلم لا اعلم (د علم لويه حصه ده په هغه آيت يا يو مسئله كي چي ته نه په پوهېږي نو ته ووايې چه زه نه په پوهېږم، لكن د دور حاضر ملايان نسبت د جهل و ځان ته نه كوي يعني چي زه نه په پوهېږم د فلاني عالم څخه پوښتنه وكړئ، نه پوهېدل دى د ځان عار بولي خصوصاً كه د غټ مقتدي په مخ كي څوک پوښتنه ځني وكړي)

**حكايت:** قاضي القضات امام ابو يوسف چي هارون الرشيد پر دې رتبه مقرر كړى په عوض كي د امام اعظم چي امام اعظم له قبول څخه د هغې رتبې منع وكړه او

هارون الرشيد دی بندي کړی، امام اعظمؒ په بندي خانې کي ناجوړی سو ... بيت:
بو حنيفه قضا نکرد و بمرد ....... توبه ميری اگر قضا نه کنی
نو امام ابو يوسفؒ چي د امام اعظمؒ ستر شاګرد ؤ، هارون الرشيد ته ورغلی چي امام اعظمؒ په بندي خانې کي ناجوړی دی زه به دا عهد د قاضي القضات پر غاړه واخلم، خو امام له بنده څخه ازاد کړه، هارون الرشيد دا خبره ومنل او امام اعظم يې له بندي خانې څخه ازاد کړی امام ابو يوسفؒ هغه عهده سنبال کړه لکن د مخالف المذهب په دې تقرر کي د قاضي ابو يوسف پر دې لوړه رتبه حسد پيدا سو او دا يې عزم وکړی چي په اوله جمعه چي ابو يوسف وعظ او تبليغ کوي او هارون الرشيد هم حاضر وي خجالت او رسوا کوو به يې، نو لس (١٠) دقيقي مسئلې يې له کتابو څخه راجمع کړې او و يو عالم ته چي په دوی کي ؤ وسپارلې چي ته د يوې يوې مسئلې پوښتنه ځني کوه چي دی څه جواب درته وايي، خير د جمعې ورځ چي راغله عمومًا اهل بغداد او هارون الرشيد په خپله هم حاضر ؤ، نو قاضي ابو يوسفؒ چي څو خبري وکړې هغه په خزه کي د ښکار حاسد د يوې مسئلې د هغو لسو څخه پوښتنه ځني وکړه، امام ورته وويل لا اعرف، زه نه يم په خبر ثم و ثم الی اخير عشرة مسائل امامؒ تر لا اعرم بالا جواب نه ورکاوه، حاسد مذکور ورته وويل چي ته چي دومره جاهل يې، نو ولي درې ځينې د منبر تر موږ لوړ ناست يې؟ امام المسلمين ابو يوسفؒ ورته وويل: چي زما جهل زما تر علم دومره ډېر دی که زه په اندازه د جهل خپل لوړ کښېنستلای زه به پر اسمان وای تاسي به پر مځکه وای.

**درويش وايي:** چي حقاني عالم او عالم زموږ د زمانې بايد له دې قصې څخه عبرت حاصل کړي لکن هيهات، دا جمله معترضه وه اوس بيرته د جدال في آيات القرآن پر لور، نژدې د البغويؒ و روايت ته مسلم هم روايت کړی دی "عن ابی هريرةؓ عن النبي ﷺ انه قال ان جدلاً في القرآن کفر" رواه البغويؒ، وفي حديث آخر رواه ائمة الحديث من حديث عبد الله بن عمرو و عن ابی هريرةؓ ايضًا بلفظ المرأ في القرآن کفر. قاضي بيضاويؒ وايي: لما حقق الله سبحانه امر التنزيل (ای القرآن المنزل) سجل بالکفر علی المجادلين فيه بالکفر، يعني بحيث الطعن وابطال الحق، روح المعاني وايي چي په حديث کي د ابی هريرةؓ چي جدالاً نکره

راغلی دی اشاره و دې ته ده چي جدال في القرآن کي څو قسمه دي يو قسم يې کفر او ضلال دی و هو ما کان من قبيل الطعن و ادحاض الحق، ونوع آخر منه محمود بل طاعة وجهاد کمامر عنقريب فتدبر.

فَلَا يَغْرُرْكَ تَقَلُّبُهُمْ فِي الْبِلَادِ

الفاء لجزاء الشرط المحذوف يعني اذا علمت يا محمد ان هؤلاء (يعني کفار مکة) شديد في الکفر قد خسروا الدنيا والآخرة (يعني چي دوی مجادله په آيتو کي د العزيز العليم اختياره کړه او په کفر هم ټينګ سوه) نو ته مه ختاوزه په استدراج سره د خدای دوی لره په فراخي د رزق و امهالهم چي خدای دوی ته مهلت ورکړی دی او دوی سفرونه کوي و بلادو ته د يمن او شام د ګټورو تجاراتو لپاره ای رحلة الشتاء والصيف کما جاء في القرآن لان الآية في کفار قريش چي دوی به په ژمي کي يمن ته تله د تجارت لپاره او په دوبي به شام ته تله، ووجه النهي عن التغرر آه، دا امهال د خدای دی اهمال نه دی، فان عاقبتم الهلاک عنقريب، په تفسير عين المعاني کي وايي فلا يغرنک ايها المغرور، والمراد غيره ﷺ يعني خطاب للمقلدين من المسلمين، انتهى کما فعل الله بامثالهم حيث قال:

كَذَّبَتْ قَبْلَهُمْ قَوْمُ نُوحٍ وَالْأَحْزَابُ مِنْ بَعْدِهِمْ

تکذيب کړی دی تر کفار مکه دمخه يعني د رسول قوم د نوح، او نورو ډلو او قومو وروسته تر قوم نوح چي هغو هم د رسولانو تکذيب کړی ؤ، کعاد و ثمود.

**فائده**: تانيث د کذبت په اعتبار د تأويل د قوم دی په قبيله سره.

وَهَمَّتْ كُلُّ أُمَّةٍ بِرَسُولِهِمْ لِيَأْخُذُوهُ وَجَادَلُوا بِالْبَاطِلِ

او قصد کړی ؤ هر قوم و خپل رسول ته، ابن عباس د "يأخذوه" معنی دا کړې ده: ليقتلوه و يهلکوه، او بعض مفسرين وايي چي بندي يې کړی، او هغو هم جدال کاوه د خپل رسول سره په باطل سره، يعني قول اهل مکة ما انتم الا بشر مثلنا، او يا لو لا انزل علينا بالملائکة او نرى ربنا ونحو ذالک.

لِيُدْحِضُوا بِهِ الْحَقَّ فَأَخَذْتُهُمْ فَكَيْفَ كَانَ عِقَابِ ۝

چي دوى باطل او زائل كړي په خپله حق چي توحيد دى، ما دوى ونيول په اهلاك (جزاء دا جمله عطف ده پر جادلوا)

**پوهه**: چي په عقاب كي يا، عوض دى له مضاف اليه څخه اى عقابي الذي عاقبتم يعني اخير د امم ماضيه، استفهام لپاره د تقرير او تعجب دى د اهل مكه. ولي چي دوى پر اثار د امم ماضيهؤ د اهلاك تېرېږي په اسفار كي، نو بايد ددوى لپاره دا اثار عبرت وګرځي ورنه دوى به هم د دغه عذاب سره مخامخ سي لاتحادهم في الطريقة واشتراكهم في الجريمة كما ينبئ عنه قوله تعالى.

وَكَذَٰلِكَ حَقَّتْ كَلِمَتُ رَبِّكَ عَلَى الَّذِينَ كَفَرُوا أَنَّهُمْ أَصْحَابُ النَّارِ ۝

يعني كما ثبت و وجب حكمه تعالى و قضائه تعالى (د حقت معنى ثبت ده، له كلمة ربك څخه مراد قضاء الهي ده په تعذيب سره پر امم ماضيهؤ چي تكذيب د رسولانو يې كاوه المتحزبة المجادلة، د الذين كفروا څخه مراد قوم د عليه الصلوة والسلام دى چي دوى تاته په ذليېزه توګه ولاړ دي او ستا د قتل بنت و بست يې هم كړى دى) دوى ملازمين د اور دي يعني د دوږخ، بحذف لام التعليل اى لانهم اصحاب النار و مستحقوا اشد العذاب و العقوبات لكون كفار مكة معاندين لرسول الله ﷺ كعادة كفار الامم الماضية.

الَّذِينَ يَحْمِلُونَ الْعَرْشَ وَمَنْ حَوْلَهُ

مبتدا، ده خبر يې وروسته يسبحون دى، هغه ملكي چي عرش الرحمن ددوى پر اوږو پروت دى او هغه ملكي چي پر شاوخوا د عرش دي يعني طواف پر كوي چي كروبيون يې بولي چي سادات د ملائكو دي.

**پوهه**: چي روح المعاني وايي چي دا ملائكة په غايت كثرت كي دي لايعلم عدتهم الا الله.

**فائده**: كروبيون جمع ده بفتح الكاف وضم الراء المهملة المخففة وتشديدها خطاء ثم واو بعدها ياء مشددة مشتق من كرب بمعنى قرب (لقربهم الى الله) كذا في روح المعاني.

**درویش وايي:** چي دا حملة العرش په باره تتبع د اثار يعني احاديث نبوي په کار ده د عقل کار نه دی، فما جاء في الحديث الصحيح بسند مروي في واحد من كتب الصحاح فهو حق.

(۱) په حديث کي چي ابو الشيخ يې له وهب څخه روايت کړی دی چي حملة العرش څلور دي چي په ورځ د قيامت نوري ملکي د کومک لپاره ورسره يو ځای کيږي. يوه ملکه په هغو کي په صورت د انسان ده چي هغه شفاعت د بني آدم و خدای ﷻ ته په باره کي د رزق دد وی کوي. او بله ملکه په صورت کي د نصر (بابسه) ده چي شفاعت د مرغانو د رزق کوي، او بله ملکه په صورت د ثور (غوايي) ده چي شفاعت. ارزاقو د حيواناتو کيو، او بله ملکه په صورت د اسد (زمري) ده چي شفاعت د سباع (درندګانو) د ارزاقو کوي فلما حملوا العرش، نو دوی پر زنګنو سي من عظمته تعالى، نو دوی ته تلقين وکړل سي د خدای له خوا څخه په لا حول ولا قوة الا بالله سره، نو دوی پر پښو جګې ودريږي.

(۲) ابو الشيخ او البيهقي په شعب الايمان کي له هارون بن زياب څخه روايت کړی دی، وايي چي حملة العرش اته دي (يعني يوم القيامة کما مر عنقريب) څلور ملکي د هغو په صوت ضعيف سره وايي: سبحانک وبحمدک على حلمک بعد عفوک، او څلور ملکي وايي: سبحانک وبحمدک يعفوک بعد قدرتک. او په يوه روايت کي د اولو څلورو ملکو په باره کي داسي راغلي دي: سبحانک وبحمدک على حلمک بعد علمک. او روح المعاني وايي چي ظاهره چي حمل پر حقيقت محمول دی او دا حمل د عرش الرحمن د لوی ملکو پر ذمه دی.

(۳) ابو يعلى او ابن مردوية په صحيح سند سره له ابي هريرة ﷺ څخه روايت کړی دی قال قال رسول الله ﷺ اذن لي (ما ته اجازت راکړل سوی دی يعني د خدای له خوا) چي زه تاسي ته بيان وکړم د يوې ملکي د حملة العرش چي پښې يې په ارض سفلى کي ښخي دي او عرش يې پر اوږو دی او داسي وايي: سبحانک انی کنت واين تکون.

(۴) واخرج ابو داوٗد بسند صحيح عن جابر ﷺ بلفظ اذن لي ان احدث عن ملک من ملائكة الله من حملة العرش ما بين شحمة اذنه الى عاتقه مسيرة (۷۰۰).

**درویش وايي:** چي روح المعاني په قيل سره روايت کړی دی د من حول العرش د ملکو په عدد کي چي دوی اوويا زره صفه دي د ملکو چي پر عرش باندي طواف کوي چي لآ اله الا الله وايي او الله اکبر وايي، او د هغو تر شا اوويا زره صفه دي چي هغه هم تهليل او تکبير وايي او تر هغه وروسته يو لک (١٠٠٠٠٠) ملکي دي چي راسته لاسونه يې پر چپه لاسو ايښي دي او هره ملکه د دوی داسي تسبيح وايي چي بله ملکه هغه تسبيح نه وايي بلکې بله تسبيح وايي: سبحانک ما اعظم شانه.

**درویش وايي:** چي دا به ښه خبره وي: ولا يعلم جنود ربک الا هو.

يُسَبِّحُونَ بِحَمْدِ رَبِّهِمْ

تسبيح د خدای ﷻ وايي متلبسين بحمد ربهم يعني تنزيه د خدای ﷻ بيانوي عن کل ما لا يليق بشانه، او حمد يې وايي پر غير متناهي نعمتو د خدای ﷻ، په تفسير فتح الرحمن کي وايي چي دوی په دې کلماتو د خدای ﷻ تسبيح وايي سبحان ذی العزة والجبروت سبحان ذی الملک والملکوت سبحان الملک الحي الذي لا يموت سبوح قدوس رب الملائکة والروح، بيضاوي وايي چي تسبيح يې اصل وګرځاوه او حمد يې حال وګرځاوه، ولي حمد خو مقتضٰی د حال د دوی وه او حال او صفت د خدای ﷻ په صفاتو سره د جلال او جمال او رد پر هغو کسانو چي خدای ﷻ ته نسبت د ملا لا يليق بشانه کوي ترجمه اولی ده.

وَيُؤْمِنُونَ بِهِ وَيَسْتَغْفِرُونَ لِلَّذِينَ آمَنُوا

او طلب د بخښي کوي يعني د خدای ﷻ څخه د هغو کسانو لپاره چي ايمان يې راوړی وي، په دې آيت کي تنبيه پر دې ده چي مشارکت په ايمان کي يوجب الشفقة که څه هم اجناس يې مخالف وي لکه ملائکه او انسانان لان الايمان اقوی المناسبات، کريمه: انما المؤمنون اخوة الخ.

رَبَّنَا وَسِعْتَ كُلَّ شَيْءٍ رَحْمَةً وَعِلْمًا

يعني دوئ داسي وايي.

**پوه سه:** چي ربنا چي په تقدير د قول سره د وروسته کلماتو حال دی له فاعل څخه د يستغفرون.

**پوه سه:** چي رحمةً و علمًا تميز دي له نسبت څخه د وسعت و خداى ته چي تميز مجول د فاعل يې بولي، په علم نحو كي وايي والاصل وسعت كل شئ رحمتک و علمک وقدم الرحمة لانه مقصود بالذات ههنا لان المغفرت فرع لها.

فَاغْفِرْ لِلَّذِيْنَ تَابُوْا وَاتَّبَعُوْا سَبِيْلَكَ وَقِهِمْ عَذَابَ الْجَحِيْمِ ﴿۷﴾

(الفاء للسببية، فان الرحمة سبب المغفرة كما مر آنفا) هغه كسانو ته چي رجوع يې كړې وي له كفر څخه و اسلام ته او متابعت ستا د دين يې كړى وي چي تا رسولان په هغه دين سره را استولي وي، او وې ساتي له عذاب څخه د دوزخ، مطرف بن عبد اللهؒ وايي چي انفع د عباد الله للمؤمنين الملائكة دي، او ابغض د مؤمنانو من خلق الله الشياطين دي.

رَبَّنَا وَاَدْخِلْهُمْ جَنّٰتِ عَدْنِ ۣ الَّتِيْ وَعَدْتَّهُمْ

اى ربه ته داخل كړې دوى، يعني مؤمنان جنتو ته په اقامت (چي تل له جنتونه ځاى د اقامت ابدي دي) چي تا وعده ورسره كړې ده د دوى سره.

**فائده:** نداء يعني ربنا چي اصل يې يا ربنا دى حرف نداء يې حذف كړى په مكرر راوړلو لپاره د جلب د رحمت د رب العزت.

**فائده:** مفعول ثاني د وعدتهم محذوف دى (اياها).

وَمَنْ صَلَحَ مِنْ اٰبَآئِهِمْ وَاَزْوَاجِهِمْ وَذُرِّيّٰتِهِمْ ؕ

**پوه سه:** چي من صلح عطف دى پر في ادخلهم.

**پوه سه:** چي مراد په دې ځاى كي نفس ايمان دى فان المؤمن صالح لدخول الجنة كه څه هم مرتكب د كبائرو گنهو وي، بغفر ان الله تعالى فانه يغفر الذنوب جميعًا لمن يشاء قال المظهري وانما قلنا ذالک (چي مراد له صلاح څخه نفس ايمان دى) ليتحقق التغاير بين المعطوف و المعطوف عليه (المعطوف هو من صلح آه دى، والمعطوف عليه الذي تابوا دى) ولي كه چېري مراد له صلاح څخه صلاح د عقائدو او د ټولو اعمالو وي، نو من صلح به داخل سي په الذين تابوا واتبعوا سبيل الله كي كما لايخفى.

ترجمه: او ته داخل كړې جنات عدن ته هغه كسان چي ايمان يې راوړى وي

ددوئ د پلرو، زوجاتو او اولادو څخه، قال البغوي قال سعيد بن جبير يدخل المؤمن الجنة نو دوی وو وايي اين ابي اين امي اين ولدي اين زوجي (زما پلار چېري دی زما مور چېري ده، زما زوی چېري دی يا لور زما او زوج چېري دی، زوج نر او ښځي دواړو ته وايي).

ملکي ورته ووايي چي هغو خو دومره عمل نه وُ کړی چي هغه دي سبب د دخول جنت ګرځېدلی وای، مؤمن ورته ووايي چي ما خو عمل د خير د ځان او ددوی لپاره کاوه، نو خدای ﷻ دا امر وکړي چي هغه کسان چي مؤمن کامل يې غواړي هغه هم جنت ته داخل کړي.

**پوښتنه:** دا حديث مرفوع و عليه الصلوة والسلام ته دی، بلکې پر سعيد بن جبير باندي ولاړ دی، نو په دې حديث استدلال څرنګه صحيح دی؟

**ځواب:** محدثين په اجماع دا وايي چي هغه حديث چي و مضمون ته يې د عقل لار نه وي لکه امور د اخرت هغه که څه هم موقوف وي حکم د مرفوع لري.

إِنَّكَ أَنتَ الْعَزِيزُ الْحَكِيمُ ﴿٨﴾

په تحقيق ته قادر يې پر هر هغه شي چي ستا اراده ورته وسي، او مانع دي څوک نه سي کېدلای، حکيم يې چي بې حکمته کار ته نه کوې، ومن ذالک الوفاء بالوعد.

وَقِهِمُ السَّيِّئَاتِ ۚ وَمَن تَقِ السَّيِّئَاتِ يَوْمَئِذٍ فَقَدْ رَحِمْتَهُ ۚ

ته وساتې دوی له عذابو څخه (يا مراد دادی له جزاء څخه د اعمال سيئهؤ په دنيا کي او يا معنی داده چي تې وساتې دوئ له اعمال سيئهؤ څخه په دنيا کي يعني هغه کسان ژوندي وي) او هغه څوک چي ته يې يا الله وساتې له سيئاتو څخه په دغه ورځ، يعني يوم الجزاء له عذاب څخه د سيئاتو يا په دنيا کي له عمل څخه د سيئاتو.

**فائده:** "فقد رحمته" دا جمله دليل دی د جزاء د شرط (ولي چي من شرطيهؤ) دا دليل په ځای کي د جزاء راوړل سوی دی، والتقدير ومن تق السيئات يفلح (دا جواب محذوف دی) او قد رحمته ددې سببه چي يا رحم پر وکړې (دا دليل د جزاء دی)

وَذَٰلِكَ هُوَ الْفَوْزُ الْعَظِيمُ ﴿٩﴾

او دا رحمت، يا دا ساتنه يا مجموعهما، کاميابي ده لويه، وبالفارسية: آن

پیروزی بزر گشت که هر که امروز درسایهٔ عصمت الهیست یعنی در دنیا فردا یعنی در قیامت سایهٔ رحمت نامتناهی خواهد بود، ودرین باب گفته اند:

امروز کسی راه درآری به پناه ..... فردا بمقام قربتش بخشی راه
او راکه رهش ندارد بـر درگاه..... فردا چه کند که نکند ناله و آه

**پوښتنه:** خدای ﷻ خو وعده کړې ده د مؤمنانو سره په دخول د جنت سره او خلف په وعد کي د خدای ﷻ محال دی، نو څه فائده د سوال د ملکو د ادخال د مؤمنانو جنت ته، او ورته سوال پر دعاء د مسلمانانو و نبي ﷺ ته چي وروسته تر آذان وایي: اللهم رب هذه الدعوة التآمة والصلوة القائمة آت محمدًان الوسيلة والفضيلة والدرجة الرفيعة وابعثه مقامًا محمودًان الذي وعدته، مع ان كل ما دعوتهم له ﷺ حاصل و موعود من جانب الله ﷻ له ﷺ لان الخلف محال في وعده تعالى؟

**ځواب:** ددې دواړو سوالونو جواب دادی چي باعث پر دعاء د ملکو للمؤمنين يا پر دعاء د مؤمنانو و عليه الصلوة والسلام ته اظهار د محبت د ملکو دی د مؤمنانو سره او دغه رنګه اظهار د محبت د مؤمنانو دی د عليه الصلوة والسلام سره لما القادم الله في قلوبهم (اى الملائكة والمؤمنون) او فائده مزيد رحمت د خدای ﷻ دی للمؤمنين في دعاء الملائكة او مزيد رحمت د خدای ﷻ دی و نبي ﷺ ته او چونکه علماء وايي چي محبت نسبت متكرره دی، نو په دعاء کي د ملکو يا په دعاء کي د مؤمنانو و عليه الصلوة والسلام ته جلب د رضوان الله و رحمته و دعاء کونکو ته چي ملکي دي يا مؤمنان دي راځي په سبب د محبوبانو.

## اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا يُنَادَوْنَ

**پوه سه:** چي دا آيت په قول د مظهري" وغيره متصل بقوله تعالى: ما يجادل في آيات الله الا الذين كفروا آه، وما بينهما جمل معترضة في مدح الملائكة الموصوفين بالايمان المستغفرين للمؤمنين الذين هم اعداء الكافرين "ينادون" و دوی ته ناري وهل کېږي د خزنة النار له خوا په ورځ د قيامت او دوی به په اور کي د دوږخ وي، او دوی يعني دوږخيان پر نفوسو امارة بالسوء سره په حال کي د غضب وي په داسي حال کي چي دوی ماجرى عليهم من العذاب و ويني په سبب د کفر او عصيان چي نفوسو امارهٔ دوی په امر کړي، نو خزنة النار داسي دوی ته و وايي:

لَمَقْتُ اللّٰهِ اَكْبَرُ مِنْ مَّقْتِكُمْ اَنْفُسَكُمْ اِذْ تُدْعَوْنَ اِلَى الْاِيْمَانِ فَتَكْفُرُوْنَ ⑩

هر آئینه غضب د خدای پر تاسي لوی دی تر غضب ستاسي پر خپلو ځانو (یعني انفس اماره ؤ) هغه وخت چي تاسي بلل کېدا ست د رسولانو د خدای له خوا و ایمان (یعني بالتوحید) نو تاسي به خپل کفر ته ادامه ورکړه او د رسولانو دعوت مو نه قبلاوه.

**پوه سه:** چي په "لمقت الله" کي لام جواب د قسم محذوف دی او کلمه د اذ منصوب محلاً ده په اذکر سره، شیخ سعدي قدس سره وایي:

نظر دوست نادر کند سوی تو ..... چو در روئ دشمن بود روئ تو

گرت دوست باید کزو بر خوری ..... نباید که فرمان دشمن بری

ندانی که کمتر نهد دوست پای ..... چو بیند که دشمن بود در سرای

حقیقت یې ظاهر دی، اشاره یې داده چي مراد له دوست څخه خدای ﷻ دی او له دښمن څخه مراد نفس او شیطان دي، یعني چي ته د نفس او شیطان په امر کار کوې خدای پاک په نظر د محبت تا ته نه ګوري فافهم.

قَالُوْا رَبَّنَآ اَمَتَّنَا اثْنَتَيْنِ وَاَحْيَيْتَنَا اثْنَتَيْنِ

و وایي یعني کافران په ورځ د قیامت چي عذاب د دوږخ ویني، یا ربنا مونږ دې پیدا کړي ؤ مړي یعني نطفې په ملاؤ کي د پلرو بیا دې ژوندي کړو په رحمو کي د میندو. بیا دې مړه کړو په وخت کي د انقضاء الآجال بیا دې ژوندي کړو په ورځ د قیامت. کذا قال ابن عباس وقتادة والضحاک کما في قوله تعالی: کنتم امواتنا فاحیاکم ثم یمیتکم ثم یحییکم، او السدي وایي امتنا في الدنیا ثم احیینا في القبر للسوال ای لسوال النکیر والمنکر، ثم امتنا في القبر یعني بعد السوال ثم احییتنا یوم البعث.

**درویش وایي:** چي مبنٰی د قول د السدي پر دې ده چي اماتة خامخا د مخه ژوند غواړي، نو د پلرو په ملاو کي د مخه ژوند دوی نه درلودی، نو څرنګه یې هغه ته اماتة و وایه، وهذا المبنی فاسد لان معنی الاماتة جعل الشیئ عدیم الحیوة ابتداءً کان (لکه دوی چي نطف وي په ملاؤ کي د پلرو) یا بالتفصییر لکه اماتة بعد الحیوة في الدنیا کما في قولهم سبحان من صغر البعوض وکبر الفیل لان معنا هذا

القول دا نه دِه چي بعوض دمخه لويه وه خداى کوچنى کړه يا فيل دمخه کوچنى وُ خداى لوى کړى، بلکې معنى يې داده چي خلق الله ابتداءً البعوض صغيرًا و الفيل کبيرًا و کما في ضيق فم الرکية، ددې دا معنى نه ده چي د څاه خوله فراخه ده تنګه يې کړه، بلکې معنى يې داده چي ابتداءً د څاه خوله تنګه شروع کړه او بل پر قول د السدي دا سوال واردېږي چي سوال في القبر خو داسي ژوند نه غواړي لکه حيوة الدنيا کما لايخفى، ولي که يې داسي ژوند غوښتلاى لکه د دنيا نو عذاب القبر هم بايد داسي واى لکه عذاب الدنيا، او بله خبره داده چي بايد له کفارو څخه عذاب القبر قطع سي چي وروسته تر ژوند په قبر کي لکه سدي چي وويل بير ته مړه سئ مع ان الامر ليس کک بل عذاب قبورهم دائم الى يوم البعث فافهم.

فَاعْتَرَفْنَا بِذُنُوبِنَا فَهَلْ إِلَىٰ خُرُوجٍ مِّن سَبِيلٍ ⑪

نو موږ اقرار يو په خپلو ګنهو سره، کلمه د فاء لپاره د سببيت ده سبب د اقرار ددوى په معاصيو او کفر سره چي دوى حيوة ثانيه بعد الموت وليدى چي دوى په دنيا کي ځني منکر وه، آيا سته و يو قسم ته د خروج له اور څخه که ژر وي او که څه مده وروسته وي يعني دنيا ته يو ه لار چي موږ پر هغه رفتار وکړو.

**فائده**: ظاهر خو يې استفهام دى او معنا او مراد ددوى تمنى د وتلو و دنيا ته، نو دوى ته جواب ورکړل سي لاسبيل لکم الى الخروج، دا جمله يې حذف کړه ولي وروسته آيت دلالت پر کوي.

ذَٰلِكُم بِأَنَّهُ إِذَا دُعِيَ اللَّهُ وَحْدَهُ كَفَرْتُمْ

دا انتفاء د خروج و دنيا ته او دا عذاب د دوږخ چي تاسي پکښي ياست په سبب ددې دى چي تاسي به وبلل سو است د خداى په توحيد سره يعني لآ اله الا الله تاسي به کفر اختيار کړى او دا به مو ويل، اجعل الآلهة الهًا واحدًا يعني پر طريقه د استفهام انکاري.

**پوه سه**: چي وحده په معنى د متوحدًا دى حال دى د اسم جليل څخه او ضمير د انه لپاره د شان دى.

وَإِن يُشْرَكْ بِهِ تُؤْمِنُوا فَالْحُكْمُ لِلَّهِ الْعَلِيِّ الْكَبِيرِ ۝

او که چا شریک خدای ته ووایه غیر الله تاسي به یې تصدیق کاوه په اشراک کي (نو دا سبب د دخول ستاسي سو په اور کي یعني الی الابد) نو دا حکم لله دی خاصةً الذي هو المستحق للعبادة المنزه عن الشريک، هغه خدای پر تاسي حکم د عذاب شدید دائم کړی دی بسبب کفرکم طول حیوتکم في الدنیا، نو که خدای له شریک وای نو هغه به تاسي خلاص کړي وای له دې عذابه څخه و اذا کان الامر کذالک فلا سبیل لکم الی الخروج "العلي الکبیر" الله ﷻ چي عالي دی شریک نه لري او عظیم الشان دی.

هُوَ الَّذِي يُرِيكُمْ آيَاتِهِ وَيُنَزِّلُ لَكُم مِّنَ السَّمَاءِ رِزْقًا

خدای هغه ذات کبریاء دی چي په تاسي ویني آیات چي دال پر توحید د خدای دي ...... بیت:

برگ درختان سبز درنظر هوشیار ...... هر ورقی دفتریست معرفت کردگار

"وینزل آه" او نازلوي، یعني اوروي ستاسي د نفع لپاره له اسمانه څخه اوبه، یعني باران د رزق چي سبب د رزق ستاسي دی، ولي چي ارتزاقي مواد عموماً په باران پوري مربوط دي، په دې آیت کي عذر د دوی په جهل سره یعني دوی به دا شاید ووایي چي موږ خو جاهلان وُ په توحید د صانع نه پوهېدلو خدای ﷻ رد په دې سره وکړی چي ستاسي په حضور کي ډېر داسي آیات وه چي صالح د دې وه چي تاسي دلیل پر توحید گرځولي وای، لکن تاسي عناداً یا تکبراً یا تقلیداً للآباء شرک مختار کړی.

وَمَا يَتَذَكَّرُ إِلَّا مَن يُنِيبُ ۝

او پند نه اخلي له آیاتو څخه مگر هغه څوک چي رجوع وکړي له تعصب او عناد څخه او د تکبر او تقلید الآباء څخه، په دې وروسته آیتو کي مخاطب نبي ﷺ والمؤمنون دي، پس له دې چي جواب د اهل النار ویای ته ورسېدی او غائبي ماتونکی جواب ورکړل سو.

فَادْعُوا اللّٰهَ مُخْلِصِيْنَ لَهُ الدِّيْنَ وَلَوْ كَرِهَ الْكٰفِرُوْنَ ﴿۱۴﴾

جواب د شرط محذوف دی یعني اذا سمعتم مايؤل امر المشركين، نو تاسي ايها المؤمنين عبادت کوئ د خدای ﷻ په داسي حال کي چي خالص له شرک څخه به کړځوئ خپل طاعت، يعني که څه هم اعداؤ ته ستاسي غم او غصه زياتوي پروا مه کوئ يعني وقل لهم موتوا بغيضکم.

رَفِيْعُ الدَّرَجٰتِ ذُو الْعَرْشِ

لوړ دي درجات د کمال د خدای ﷻ چي په مقابل کي د کمالاتو الهيه و ټوله کمالات کان لم يکن شيئًا دي، او بعض مفسرين وايي چي رفع که څه هم صفت مشبه دی لکن دلته په معنی د رافع اسم فاعل دی، فالمعنى رافع درجات انبيائه و اولياء في مراتب القرب اليه تعالى وفي الجنة بعضها فوق بعض "ذو العرش" ای مالکه وخالقه، دا بل خبر دی د هو، يعني خدای ﷻ د عرش عظيم چي محيط دی پر ټوله عالم علوي او سفلي باندي چي راويان وايي چي عرش څورلس رکنه لري، چي له يوه رکنه تر بل رکن پوري د څلورو لکو مسافت دی، خلقه فوق السمٰوات وفوق الكرسي اظهارًا لقدرته داسي نه ده چي عرش د خدای مکان دی لکه مجسمه چي وايي بل الله على ماكان عليه قبل خلق العرش.

**فائده**: داسي هم نه ده چي د خدای عزوجل بالا د عرش تر جسم په قدرت کي نسته بل العرش مثل خردلة في جنب جلالته وقدرته او عرش مطاف دی د ملکو لکه بيت الله الشريف د انسانانو د طواف ځای دی الی غير ذالک من الحکم والمصالح.

يُلْقِي الرُّوْحَ مِنْ اَمْرِهٖ عَلٰى مَنْ يَّشَآءُ مِنْ عِبَادِهٖ لِيُنْذِرَ يَوْمَ التَّلَاقِ ﴿۱۵﴾

نازلوو وحي په خپل حکم سره پر هغه چا چي اراده يې وسي له خپلو بندګانو څخه د دې لپاره چي وبېروي خلک د ورځي له ملاقات څخه يعني قيامت.

**فائده**: وحي ته روح وايي له دې کبله چي په وحي سره ژوند د زړو دی لکه په روح سره چي ژوند د بدنونو دی "من امره" بغوي وايي چي ابن عباس رض وايي ای من فضله، نو کلمه د من لپاره د ابتداء ده "على من يشاء" پر هغه چا چي د خدای ﷻ اراده ورته وسي له بندګانو څخه خپل يعني نبوت کسبي شی نه دی بلکې فضل الهي

دي، او ضحاک وايي چي له روح څخه مراد جبرئيل دی ای يرسله الی من يشاء، نو کلمه د علی په معنی د الی ده، والاول هو الاولی "لينذر" غاية وحکمة الالقاء.

**فائده:** ضمير مستکن راجع دی يا لفظ الله ته يا روح ته يا من ته وهو اقرب، چي وېرروي خدای يا روح يا من يلقی الله چي مراد ځني رسول دی من کان.

**يوه سه:** چي مراد له يوم التلاق څخه ورځ د قيامت ده چي په هغه ورځ کي ټول اهل السماء والارض سره يو ځای کېږي يا خلق او خالق سره يو ځای کېږي، قاله مقاتل وقتادة: يا ظالم و مظلوم سره يو ځای کېږي، قاله ميمون بن مهران والخصوم ايضًا، وقيل يلتقی فيه العابدون والمعبودون وقيل المرء مع عمله، يقول الفقير الکل صحيح.

يَوْمَ هُم بَارِزُونَ ۖ لَا يَخْفَىٰ عَلَى اللَّهِ مِنْهُمْ شَيْءٌ ۚ

هغه ورځ چي دوی، يعني خلک ښکاره وي چي مراد ځني د قيامت ورځ ده، يعني حاضر وي، او نه دی پټ پر خدای له دوی څخه هيڅ شی.

لِّمَنِ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ۖ لِلَّهِ الْوَاحِدِ الْقَهَّارِ ﴿١٦﴾

چا لره ملک او سلطنت او تصرف دی؟ هغه خدای لره دی چي يو دی په ذات او صفاتو کي، او منزه دی له شريک څخه چي قهار دی قهر الخلق بالموت.

**درويش وايي:** چي مظهري وايي چي دا منادي يعني اعلان کوونکی خدای دی وذالک بعد فناء الخلق قبل البعث په دې وخت کي خو هيڅ څوک نسته چي جواب ورکړي، ولي چي ټول خلک په کتم کي د عدم دي، نو خدای په خپله خپل سوال ته جواب ورکوي لله الواحد القهار، بيا مظهري تر دې عبارت وروسته يې يو حديث راوړی دی چي ډېر طويل دی چي دده د ذکر کړي خبري هيڅ تائيد نسته پکښې، په اخير کي مظهري ويلي دي وحق حقيق بالقبول چي روح البيان او روح المعاني راوړې ده رجوع يې کړې ده، وقال وسياق الاية حقيقي انه (يعني لمن الملک آه، انه حکاية لما يسئل عنه في ذالک اليوم بعد احياء الخلق يوم هم بارزون انتهی) اوس غوږ سه د روح المعاني او روح البيان د عبارت و حاصل ته ای يقال حين بروزهم (ای بعثهم بعد الموت) وظهور احوالهم (مؤمن او کافر دواړو ته خپل احوال معلوم دي يعني يا جنتي کېدل او يا دوزخي کېدل)

نو يو منادي ناره وكړي (يعني من الملائكة) يا رب ﷻ لمن الملك اليوم، نو بعينه هغه منادي جواب د استفهام داسي وركړي، لله الواحد القهار، او يا جواب وركړي ټولـه اهل المحشر مؤمنهم و كـافرهم، لله الواحد القهـار لحصول العلم البدهي للكافر بالواحدانية، نو كافر چي دا خبره كوي د هوان او ندامت په لهجه دا جواب وايي، او مؤمن يې د خوشحالۍ او د سرور او د افتخار په توګه دا جواب وايي ولي چي مؤمن په دنيا كي د لآ اله الا الله اواز بلند كړى ؤ.

**سوال**: په دنيا كي خو هم ملك الخاص د خداى ؤ، نو دا ورځ يعني د قيامت ورځ يې ولي په ندا سره خاص كړه؟

**ځواب**: ملك لله ؤ په ټولو ايامو او اوقاتو كي خاصةً لكن الله عزوجل په دنيا كي بعض بندګانو ته ملك عطاء كړى ؤ كه څه هم كافر وايي په ورځ د قيامت هغه دعوى د ملك قطع سوې وي، ولي هيڅ څوك په دغه ورځ د قيامت د ملك يا ملكيت دعوى نسي كولاى، ولهذا قيل في ذالك اليوم "لمن الملك اليوم".

**پوهـه**: چي اليوم منصوب دى ظرف دى د تجزى تقديم يې لپاره د حصر دى، والمعنى دغه ورځ د قيامت چي ملك مجازي د خلګو څخه سلب سي چي په دنيا كي يې درلودى ويكون الملك لله خاصة ظاهرًا وحقيقةً كه څه هم ملك حقيقي د خداى ﷻ دى دائمًا في الدنيا والآخرة.

اَلْيَوْمَ تُجْزٰى كُلُّ نَفْسٍۭ بِمَا كَسَبَتْ ؕ

جزاء وركول كېږي هر چا ته چي ده كسب كړى وي د ايمان او طاعت يا د كفر او معصيت.

**فائده**: له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي بندګان كاسب دي په ټولو عملونو او خالق خداى دى، كريمه: والله خلقكم وما تعملون، خلافًا للمعتزلة، والدلائل والجوابات مذكورة في كتب علم الكلام للمتأخرين.

لَا ظُلْمَ الْيَوْمَ ؕ اِنَّ اللّٰهَ سَرِيْعُ الْحِسَابِ ﴿۱۷﴾

هيڅ ظلم نسته نن ورځ (چي يا دي نېك عمل وركم كړي يا زيادت د عذاب دي تر ګناه بالا وركړي، لان الحاكم في اليوم هو الله تعالى وحده ولا يتصور ولا امكان للظلم منه تعالى لان الظلم صفة النقصان والله منزه عن النقصان في صفاته تعالى)

په تحقيق خدای ژر دی حساب دده، په حديث شريف کي راغلي دي چي په نيمه ورځ کي له ايام څخه د دنيا د مخلوق حساب پای ته ورسېږي.

وَأَنذِرْهُمْ يَوْمَ الْآزِفَةِ

و ېروه يا محمد (ﷺ) يعني اهل مكة.

**پوهسه:** چي يوم منصوب دی مفعول به دی د انذرهم ولي چي منذر به دغه ورځ ده، او آزفة پر وزن د فاعلة دی، من ازف الامر ای قرب، والمراد به القيامة ځکه يې آزفة مؤنث راوړی، ونظيره ازفت الآزفة ای قربت القيامة يعني فعل يې مؤنث راوړی دی.

**پوښتنه:** قيامت ولي آزفة بولي؟

**ځواب:** لقربها لان كل ما هو آت قريب، ولهذا قيل ما ابعد ما هو فات وما اقرب ما هو آت.

إِذِ الْقُلُوبُ لَدَى الْحَنَاجِرِ كَاظِمِينَ ۚ

کلمه د "اذ" بدل ده له "من يوم الآزفة" څخه، زړونه د خلګو په نېږ د حلقو ددوی يعني زړونه يې د خپلو ځايو څخه راپورته سي حلقو ته ددوی راورسېږي د ډېري بېري په سبب "كاظمين" يعني د بېري ډک او مکروب (غمجن وي) والكظم تردد الخوف والحزن في القلب.

**پوهسه:** چي القلوب مبتداء ده او لدى الحناجر يې خبر دی، والكاظمين حال دی من القلوب محمول على اصحابها اذا الاصل اذ قلوبهم، نو په ځای کي د اضافت يې الالف واللام راوړی چونکه کظم د ذوی العقول شان دی ځکه يې كاظمين جمع سلامت راوړه.

مَا لِلظَّالِمِينَ مِنْ حَمِيمٍ وَلَا شَفِيعٍ يُطَاعُ ۝

نسته ظالمانو لره، يعني کافرانو لره.

**پوهسه:** چي ظالمين يې د کافرانو پر ځای راوړی اشاره و دې ته ده چي کافرانو ته چي دا حالات مذکوره پيښېږي په سبب د ظلم ددوی لان الظلم وضع الشيئ في غير محله، نو مشرکان هم عبادت چي محل يې خدای پاک ږ بې ځايه استعمال کړی يعني

د بتانو لپاره "من حميم" يعني يو قريب مشفق لکه پلار يا زوی وغيرهما "ولاشفيع يطاع" نه شفاعت کونکی سته چي د هغه شفاعت دي قبول سي.

**پوه سه**: چي وصف يطاع مفهوم نه لري يعني چي شفاعت خو يې څوک کوي لکن شفاعت يې نه قبلېږي ای لايشفع اصلاً، کريمه: فما لهم من شافعين، يا معنی د يطاع داده چي فرضًا که يې څوک شفاعت وکړي هغه نه قبلېږي، دا بناء پر زعم ددوی ده چي دوی به ويل چي زموږ بتان زموږ شفاعت کوي په ورځ د قيامت.

**پوه سه**: چي د حميم او د شفيع تر منځ عموم او خصوص من وجه دی، فتأمل في مادتی الافتراق ومادة الاجتماع کما يقتضيه العموم والخصوص من وجه.

## يَعۡلَمُ خَآئِنَةَ ٱلۡأَعۡيُنِ

خدای خبر دی په کتلو د سترګو (نو د خائنة موصوف محذوف دی ای النظره) لکه کتل و داسي نا محرمي ښځي ته چي دده کتل نه وي ورته روا او په غلا ورته کتل.

**سوال**: نظرة يې څرنګه خائن وباله؟

**ځواب**: دا مجاز دی وي خائن خو هغه سړي ته وايي، نو مبالغةً يې و کتلو ته خائن وو ايه، او بعض مفسرين وايي چي خائنة مصدر دی لکه عافية چي په معنی د معافات دی، فالمعنی يعلم خيانة الاعين، په حديث شريف کي راغلي دي يا ابن آدم لک النظرة الاولى معفوة لو قوعها مفاجاة (تاته اول کاته و نامحرمي ښځي ته عفو دی، ولي چي هغه نابيره واقع کېږي) دون الثانية لکونها مقارنة الفهم (ولي دوهم پلا کتل د قصد سره يو ځای دی يعني په قصد او اختيار ورته ګوري) فهو من قبيل زنی النظر، قال الحسين الکاشفي: به چشم نظر کردن بآنچه حرامست يا غمزه کردی بمعائب مرد ای الرمز بالعين على وجه العيب حرام است.

بيت: ... دو چشم از پی صنع باری نکوست ... زعيب برادر فرو ګير دوست

## وَمَا تُخۡفِي ٱلصُّدُورُ ۝١٩

او په هغه شي خبر دی چي زړه يې پټ ساتي، قيل ما يتفکر الرجل في جمال امرئة اجنبية بعد ما ينظر اليها بشهوة مسارقة.

وَاللّٰهُ يَقْضِي بِالْحَقِّ ۖ وَالَّذِينَ يَدْعُونَ مِن دُونِهِ لَا يَقْضُونَ بِشَيْءٍ ۗ

او خدای ؒ شمل علمه بکل شيئ حکم کوي په حق سره (لانه العليم الحکيم المالک علی الاطلاق، دا جمله عطف ده پر يعلم باندي) او هغه شيان چي مشرکين يې عبادت کوي ماسوی له خدای ؒ څخه چي بتان او اصنام دي يا شيطانان دي يا د ملکو عبادت کوي، ظالمان دي لايقفون بشيئ لعدم قدرتهم علی القضاء.

**سوال:** په بتانو کي خو عدم قضاء صحيح ده، لکونها جمادات او شيطانان يا د ملکو ظالمان قضاء خو حکم کولای سي؟

**ځواب:** مراد له قضاء څخه قضاء بالحق ده وهي لا يتحقق فيما ذکره في السوال.

إِنَّ اللّٰهَ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ۝

په تحقيق خدای ؒ عالم دی په مسموعاتو او په مبصراتو سره، په دې آيت کي د علم معنی خدای ؒ وکړه په خائنة الاعين سره، او تعريض يې وکړی پر مشرکانو چي د دوی بتان خو نه شی اوري او نه يې ويني فلا يليق عبادتها ان کانوا يعلمون.

أَوَلَمْ يَسِيرُوا فِي الْأَرْضِ

آيا تګ نه کوي کفار مکه په ځمکه کي.

**درويش وايي:** چي موافق د قانون نحوي سره وروسته تر همزه د استفهام چي حرف عطف راسي هه معطوف پر محذوف دی لان حرف الاستفهام مانع العطف علی ما قبل حرف الاستفهام لفوات صدارته، فالتقدير ههنا اينکرون وبال بالکفر ولم يسيروا في الارض.

فَيَنظُرُوا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِينَ كَانُوا مِن قَبْلِهِمْ ۚ

نو دوی وګوري چي څرنګه سوی دی عاقبت (اخير کار) د هغو کسانو چي تر دوی دمخه وه يعني هغه امتونه چي تکذيب د رسولانو يې کړی وُ چي د هلاک بالاستيصال وکندي ته ور واچول سول، نو تاسي بايد له هغو څخه عبرت واخلئ او شرک پرېږدئ او تکذيب د آنحضرت ﷺ ونه کړئ ..... بيت:

پند ګير از مصائب ديګران ..... تا نګيرند ديګران زتو پند

مراد له قبلهم څخه عاد او ثمود دي چي کفار مکه وُ ته نژدې دي.

كَانُوْا هُمْ اَشَدَّ مِنْهُمْ قُوَّةً وَّاٰثَارًا فِى الْاَرْضِ فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ بِذُنُوْبِهِمْ

وه هغه من قبلهم سخت په قوت کي (یعني په جسم کي) تر دوی یعني اهل مکة، او اثار د قوت په مځکه کي سته یعني قلا وي او محکم ښارونه الی غیر ذالک، نو هغه خدای ونیول یعني هلاک یې کړه د دوی د ګنهو په سبب من الشرک والمعاصي یا یې په چغه او ناره د جبرئیل یا په باد صرصر سره او نحو ذالک.

وَمَا كَانَ لَهُمْ مِّنَ اللّٰهِ مِنْ وَّاقٍ ﴿۲۱﴾

او دوی لره نه سو پیدا له عذابه څخه د خدای یو ساتونکی چي دوی له عذاب څخه د خدای خلاص کړي، دا جمله حال ده له ضمیر څخه د اخذهم.

ذٰلِكَ بِاَنَّهُمْ كَانَتْ تَّاْتِيْهِمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَيِّنٰتِ فَكَفَرُوْا فَاَخَذَهُمُ اللّٰهُ

دا اخذ د خدای دوی لره په عذاب سره په سبب د دې ؤ چي دوی ته راتګ کړی رسولانو (د خدای) په معجزاتو واضحاتو سره یا احکام واضحات لکه توحید د معبود یا ترک د فساد في الارض، نو دوی کفر ته دوام ورکړی او د رسلانو پیغامونه یې نه و منل نو خدای دوی ونیول یعني په عذاب د دنیا.

اِنَّهٗ قَوِيٌّ شَدِيْدُ الْعِقَابِ ﴿۲۲﴾

په تحقیق خدای قادر دی په قدرت تامه سره د دوی پر عذاب بلکي هر شی چي اراده ورته وکړي او سخت دی عذاب د خدای فمن اخذه لمن لم یفلته، نې پرېږدي.

وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا مُوْسٰى بِاٰيٰتِنَا وَسُلْطٰنٍ مُّبِيْنٍ ﴿۲۳﴾

لام موطئه د قسم دی کما مر مرارًا، او په تحقیق موږ استولی ؤ موسیٰ په معجزاتو سره (چي نهه معجزې وې) او په ښکاره حجت سره د ده پر نبوت.

**پوه سه:** چي مراد له سلطان څخه لکړه د موسیٰ ده، جلا یې راوړه سره د دې چي په نهه معجزو کي خو لکړه هم شامله وه تفخیمًا یعني د دې د تعظیم لپاره، ولې چي پر ساحرانو د فرعون دی په دغه لکړه غالب سو او هغو ایمان راوړی او د ذکر د لکړي تخصیص بعد التعمیم دی.

## إِلَىٰ فِرْعَوْنَ وَهَامَانَ وَقَارُونَ

فرعون خو رئيس د عمالقه د مصر وُ كه دعوه د ربوبيت يې هم كړې وه او هامان چي دده وزير مشاور وُ چي د هامان بې مشورې به فرعون هيڅ كار نه كاوه، نو ارسال دې دوو ته ارسال و ټول قوم ته دى تر ارسال و فرعون او هامان ته ولي چي قارون خو اسرائيلي وُ د موسیٰ ؑ د اكا زوى وُ په اولامر كي مؤمن وُ وروسته چي يې اموال او كنوزد ډېر سوه او موسیٰ ؑ طلب د زكوة څني وكړى دده له زكوة څخه انكار وكړى نو كافر سو، فصار ملحقًا بفرعون وهامان.

## فَقَالُوا سَاحِرٌ كَذَّابٌ ۝٢٤

دوى وويل چي موسیٰ ساحر دى او ډېر غټ درواغ وايي يعني په دعوى كي د رسالت من الله په دې آيت كي تسلي و نبي كريم ﷺ ته ده چي ته واوره عاقبت د هغه كسانو چي ستا تر قوم يعني اهل مكه اشد قوت وه او اكثر مالاً و جاهًا وه، واقرب زمانًا مكې والو ته وه، نو عاقبت په دې دنيا كي غرق په اوبو كي او اخرت په اور كي، كريمه: اغرقوا فادخلوا نارًا، او ستا قوم قريش به هم د سوء عاقبت څخه خلاس نه سي په دنيا كي لكه د بدر په غزاء او په عقبیٰ كي من النار.

## فَلَمَّا جَاءَهُمْ بِالْحَقِّ مِنْ عِنْدِنَا قَالُوا اقْتُلُوا أَبْنَاءَ الَّذِينَ آمَنُوا مَعَهُ

چي څه وخت موسیٰ راتګ وكړى په حق سره (چي توحيد دى زموږ له خوا څخه يعني چي ما رسول وګرځاوه) فرعونيانو وويل چي وژنئ زامن د هغو كسانو چي دده سره يې ايمان قبول كړى دى يعني لكه دمخه تر موسیٰ ؑ چي مو ابناء د بني اسرائيلو وژل عمومًا، دا وار هغه قتل جاري وساتئ لكن پر زامنو د هغو كسانو چي د موسیٰ ؑ سره يې ايمان راوړى وي.

## وَاسْتَحْيُوا نِسَاءَهُمْ

او باقي پرېږدئ ښځي ددوى لپاره د خدمت د كورو د فرعونيانو يعني كما كنتم تفعلون اول مرة تا چي مؤمنان د موسیٰ ؑ دده له كومك څخه لاس واخلي او دى فريدًا وحيدًا پرېږدي.

وَمَا كَيْدُ الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ

نه دی چم او فریب د کافرانو مگر په ناکامی. کي لکه چي فرعون او فرعونیانو چي په ابطال کي د دین موسٰی فوق العادة خواری، وکښلې او هغه کید ددوی پر دوی وګرځېدی او دوی خدای د هلاک و کندي ته واچول چي په بحر قلزوم کي یې غرق کړه او موسٰی او بني اسرائیل یې ملوک الارض کړل.

**پوښتنه**: د فرعون او هامان وغیرهما من اتباعهما ذکر خو دمخه تېر سو نو ضمیر یې نه کړی ورته راجع، بلکې صریح لفظ د الکافرین یې ذکر کړی حکمت یې څه دی؟

**ځواب**: (۱) حکمت یې تسجیل د حکم د کفر دی پر دوی (۲) فائده یې دا ده چي نور ورته کافرانو هم شامل سي (۳) حکمت یې علت بیانول دي لقوله تعالی وما کید الکافرین آه.

وَقَالَ فِرْعَوْنُ ذَرُوْنِيْٓ اَقْتُلْ مُوْسٰى

و ویل فرعون و خپل قوم ته چي تاسي ما پرېږدئ چي زه و وژنم موسٰی.

**سوال**: فرعون ولي دا خبره وکړه چي تاسي ما پرېږدئ؟

**ځواب**: په خاص قوم کي د فرعون چي فرعون یې له قتل څخه د موسٰی منع کاوه خوفًا من الهلاک ظاهرًا به دوی فرعون ته ویل چي موسٰی هغه سړی نه دی د پخواني خوب لیدلو په سبب څني بېرېدی " بل هو ساحر " او دا به یې هم ورته ویل چي که ته دی مړ کړې فعلاً خلک به وایي چي فرعون عاجزه وُ د معارضې سره دده بالحجة نو ځکه یې پر وژلو دده تلوار وکړی، او بیضاوي وایي چي فرعون دده پر نبوت یې یقین وُ، نو له قتل څخه یې بېرېدی کما یدل علیه ما روی ان موسٰی قال له لو امنت که ته ایمان راوړې ځواني به دي باقي وي حکمراني به دي جاري وي او خوند د طعام او شرابو او د جماعو به دي هم جاري وي د مرګ تر وخته پوري او چي مړ سې جنت ته به ورځې د فرعون په زړه کي خوښه سوه لکن هامان دده وزیر مشاور غائب وُ چي فرعون د هغه بې مشورې هیڅ کار نه کاوه، نو چي هغه راغلی فرعون خپل رایه ورپېش کړه، نو هامان شیطان ورته وویل چي زما خیال وُ چي ته صاحب الفکر یې څرنګه ته خپل معبودیت یعني چي خلک دي خدای بولي په عبدیت بدلوې یعني عبدالله وګرځې نو فرعون خپل رایه ملتوي کړه.

وَلْيَدْعُ رَبَّهُ ۚ

او موسىٰ دې را و بولي خپل خداى چې دى مې ورو هغه ته وربولي چې زما نه دې شخه يې خلاص کړي په دې خبره کې فرعون خپل تجلد (دلاوري) وعدم المبالات (چې زه باک نه په کوم په را بللو سره د موسىٰ خپل خداى) نو ځکه يې ذروني اقتل موسىٰ وويل تمويها على قومه (چې پر قوم خبره پوشيده کړي چې فرعون لکه چې بېرېږي له موسىٰ شخه) يعني تاسي ما ځني منع کوئ چې قتل کړم يا فرعون وويل خپل قوم ته.

إِنِّيٓ أَخَافُ أَن يُبَدِّلَ دِينَكُمْ

په تحقيق زه بېرېږم که يې زه قتل نه کړم پر دې چې پر دې چې دى به ستاسي دين دربدل کړي من عبادة الاصنام (چې فرعون کوچني کوچني بتان پر خپل صورت جوړ کړي وه او پر قوم يې وېشلي وه چې د ټول قوم خو زما وعبادت ته لاړ نسته نو تاسي دغه زما مجسمو ته سجدې کوئ کافي دى) ولذا قال اللعين انا ربكم الاعلى.

أَوْ أَن يُظْهِرَ فِى ٱلْأَرْضِ ٱلْفَسَادَ ۝

او يا به ښکاره کړي موسىٰ که يې مړ نه کړم په ځمکه کې (يعني په مصر کې فساد، مراد له فساد شخه د لعين دا وه چې د بني اسرائيلو او زما د قوم به جنګ او قتل و قتال پيدا کړي.

وَقَالَ مُوسَىٰٓ إِنِّى عُذْتُ بِرَبِّى وَرَبِّكُم مِّن كُلِّ مُتَكَبِّرٍ لَّا يُؤْمِنُ بِيَوْمِ ٱلْحِسَابِ ۝

وويل موسىٰ خپل قوم بني اسرائيلو ته چې فرعون و موسىٰ د قتل پېشرو وواهه، زه پناه غوارم په رب سره خپل او په رب سره ستاسي له متکبر شخه چې په سر کې د ټولو متکبرينو فرعون دى چې ايمان نه لري پر ورځ د حساب يعني ورځ د قيامت.

**فائده:** موسىٰ په اول د کلام خپل يې ان د تاکيد راوړى دى پر دې چې سبب واحد په دفع کې پناه خداى ته وروړل دي لانه تعالى قادر على دفع كل شيئ و ان كان الشرير اشد شرًا لکه فرعون في الحال الحاضر، وانما خص في اسمائه تعالى اسم الرب له دې سببه چې مقصود د موسىٰ خو حفظ له شر شخه د هر متکبر او د حفظ رجوع و تربيت ته دده.

**فائده:** موسیٰ ؑ اضافت د رب و خان او قوم ته وکړی او لا لان حفظ موسیٰ ؑ متضمن لحفظهم، وثانيًا ددې لپاره چې تاسي په دې استعاذه کې شرکت راسره وکړئ، ولې اجتماع په هره دعا، کې چې دلته استعاذه د اقرب الی الاجابة والقبول في جناب الرب جل وعلا ده.

سوال: مقصود اصلاً د موسیٰ ؑ په استعاذه کې فرعون ؤ نو ولې يې د فرعون نوم نه واخستی؟

ځواب: ددې لپاره چې استعاذه عامه سي او نورو متکبرينو ته دده د قوم هم شامله سي، او بل جواب دادی چې اشاره يې و دې ته وکړه چې باعث پر شر د فرعون تکبر دی.

تکبر عزازيل را خوار کرد .......... به زندان لعنت گرفتار کرد

فائده: امام رازي ؒ او قاضي بيضاوي او مظهري وايي چې موسیٰ ؑ چې نوم د فرعون نه واخستی رعايةً لحق التربية لفرعون، ولې چې موسیٰ ؑ خو د رضاع له وخت څخه تر ځوانۍ پوري د فرعون په تربيه کې ؤ.

درويش وايي: چې دا توجيه تر دې سوال لاندې راځي چې موسیٰ ؑ مشافهةً و فرعون ته وويل کريمه: واني لاظنک يا فرعون مثبورًا، او دا نوم اخستل مشافهةً او د مثبورًا په نامه يادول خو اشد دی تر دې چې په دې آيت کې يې داسي ويلي وای من فرعون فتدبر.

**فائده:** له امام اعظم ابو حنيفه ؒ څخه چا پوښتنه وکړه چې ای ذنب اخوف على سلب الايمان؟ قال ؒ ترک الشکر على الايمان وترک خوف الخاتمة وظلم العباد، ده زياته کړه چې په هر چا کې چې دا درې خويه وي فالاغلب ان يخرج من الدنيا کافرًا په اخير کې يې وويل الا من ادرکه السعادة، انتهى.

## وَقَالَ رَجُلٌ مُّؤْمِنٌ مِّنْ اٰلِ فِرْعَوْنَ يَكْتُمُ اِيْمَانَهٗٓ

او وويل يو سړي له قوم څخه د فرعون چې پټ يې ساتی ايمان خپل (يعني له فرعون څخه نه د ډېري له سببه بلکې له دې سببه چې زما خبري پر موقع د موسیٰ ؑ په کټه سي کما ههنا او له موسیٰ ؑ څخه يې هم پټ نه ساتی)

بوه سه: چې مؤمن اول صفت دی د رجل دايې د مخه راوړی لانه اشرف الاوصاف او يكتم ايمانه يې دريم صفت دی من آل فرعون يې دويم صفت دی.

بوه سه: چې آل الرجل هغه بولي چې د قرابت يا د صحبت له لاري يا د موافقة في الدين له کبله يې يو چا ته نسبت کړل کېږي، بعض مفسرين وايي چې دا رجل مؤمن قريب د فرعون ؤ يعني د اکا زوی يې ؤ، او دا مؤمن هغه سړی دی چې موسیٰ ؑ يې وېېراوه بقوله: ان الملاء يأتمرون بک ليقتلونک يعني چې موسیٰ ؑ يو قبطي وژلی ؤ چې قصه يې تېره سوې ده په سورة القصص کي، ځوک وايي چې نوم يې شمعان ؤ وهو اشهر ماقيل فيه، بعض وايي چې نوم يې جبر ؤ، بعض وايي چې نوم يې خربيل بن نوحائيل ؤ، او بعض وايي چې نوم يې خرقيل ؤ، پر دې نامه هغه حديث دلالت کوي "سباق الامم" (يعني چې اوليت يې په ايمان کي درلودی، خرقيل مؤمن آل فرعون و حبيب النجار صاحب يٰس وعلي بن ابی طالب کرم الله وجهه وهو وانفسهم کذا في انسان العيون.

**أَتَقْتُلُونَ رَجُلًا أَنْ يَقُولَ رَبِّيَ اللَّهُ وَقَدْ جَاءَكُمْ بِالْبَيِّنَاتِ مِنْ رَبِّكُمْ**

يعني تاسي قصد لرئ د وژلو د هغه سړي، يعني په دې سبب چې دی وايي چې رب زما الله دی يعني وحده، او تاسي ته يې راتګ کړی دی په ډېرو معجزو چې شاهد دده د صدق دي په دعوی کي د رسالت "من ربکم" يعني بېله خدايه بل ځوک قادر نه دی پر راوړلو د معجزاتو يعني ددې څخه دا معلومه سوه چې موسیٰ ؑ رسول الله دی.

بوه سه: چې جمله د وقد جائکم حال ده له فاعل څخه د يقول، يا هغه رجل مؤمن دلائل شروع کړه په دې آيتو کي.

**وَإِنْ يَكُ كَاذِبًا فَعَلَيْهِ كَذِبُهُ**

که دی دروغجن وای په دعوی کي د رسالت لکه تاسي چې زعم کوئ چې دی دروغ وايي، نو وبال او عذاب خو ده ته راجع کېږي، نو دده قتل ته تاسي څه ضرورت لرئ.

**وَإِنْ يَكُ صَادِقًا يُصِبْكُمْ بَعْضُ الَّذِي يَعِدُكُمْ**

او که دی صادق وي په خپل دعوه کي د رسالت لکه دده معجزې چې دلالت پر کوي تاسي ته به ورسېږي بعض د هغو عذابونو چې ستاسي سره دي وعده کوي

یعني چي اقلاً بعض د هغو تاسي ته ورسېږي هم ستاسي د هلاک لپاره کافي دی.

**پوه سه:** چي دې سرې لطف او مبالغه ددوی په تحذیر کي وکړه او انصاف يې وکړی او له تعصب څخه يې کار وانه خستی ځکه په شق د کذب يې دمخه راوړی.

**إِنَّ اللَّهَ لَا يَهْدِي مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ كَذَّابٌ**

په تحقیق خدای هدایت او لار ښوونه نه کوي و هغه چاته چي تر خپل حد تېری وکړي او لوی درواغ په خدای پوري وتړي، مراد د مؤمن دا ؤ چي که ده یعني موسیٰ تر خپل ځان تېر کړی وای یعني د درواغو دعوی د رسالت يې کړې وای نو به خدای دده پر لاس معجزات بینات نه ښکاره کولای.

له عروه بن زبیر رضي الله عنه څخه روایت دی چي ما له عمرو بن العاص رضي الله عنه څخه پوښتنه وکړه: اخبرني باشد ماصنعه المشرکون برسول الله ﷺ، یعني هغه سخت ترین کار چي مشرکانو د علیه الصلوة والسلام سره کړی دی هغه کوم کار ؤ؟ ده راته وویل چي په دې وخت چي علیه الصلوة والسلام پر لمانځه ولاړ ؤ د کعبې شریفي په وړاندي، نو عقبه بن ابی معیط راغلی علیه الصلوة والسلام يې تر دوارو اوږو تینګ کړی او خپل پټو يې د علیه الصلوة والسلام په مبارکه غاړه کي ورواچاوه او سخت يې وپېچی علیه الصلوة والسلام يې خپه کړی، ابوبکر رضي الله عنه راغلی عقبه بن معیط يې تر اوږو ونیوی او د علیه الصلوة والسلام څخه يې پرې واهه، او ابوبکر رضي الله عنه دا آیت ووایه "اتقتلون رجلاً ان یقول ربي الله وقد جائتکم بالبینات من ربکم" رواه البخاري.

**يَا قَوْمِ لَكُمُ الْمُلْكُ الْيَوْمَ ظَاهِرِينَ فِي الْأَرْضِ**

ای قومه زما تاسي لره سلطنت دی نن ورځ په داسي حال کي چي تاسي غالب یاست (نو ظاهرین حال دی له ضمیر څخه د کم) په مځکه کي د مصر.

**فَمَنْ يَنْصُرُنَا مِنْ بَأْسِ اللَّهِ إِنْ جَاءَنَا**

نو به څوک زموږ سره مرسته وکړي له عذاب څخه د خدای که چېري موږ ته دا عذاب راسي، یعني څوک به مو له عذاب څخه د خدای خلاص کړي، مقصد دا ؤ چي نن ورځ تاسي ته غلبه او سلطنت درکړي نو خپل سلطنت او غلبه د لاسه مه

ورکوئ يعني چې و عذاب ته ځانونه آماده کول په قتل د رسول دي يعني موسٰی ؑ، نو که عذاب د خدای ج له موږ څخه څوک نسي دفع کولای.

**فائده:** مؤمن آل فرعون ځان ددوی په جمله کې راوستی لانه کان منهم في القرابة تاچې دوی ته دا وښيي چې زه خو هم ستاسي له جملې څخه يم غرض مي صرف نصيحت دی.

## قَالَ فِرْعَوْنُ مَآ أُرِيكُمْ إِلَّا مَآ أَرَىٰ

فرعون ورته وويل چې زه تاسي ته مشوره نه درکوم مگر نه هغه شی چې زه په پوهېږم يعني چې موسٰی قتل کړم، ده لعين دا درواغ ويل بلکې ده چې د موسٰی ؑ معجزات وليدلې ځني بېرېدی لکن قوم ته يې خپل جلاده او دلاوري ښکار کړه چې زه د موسٰی ؑ په قتل کې باک نه کوم لکن ستاسي څخه صرف مشوره غواړم که دی لعين نه بېرېدلای على الفور به يې قتل کړی وای دهيڅ چا سره به يې مشوره نه وای کړې لانه کان يقول انا ربكم الاعلى.

**پوهه:** چې اری مشتق دی له رأی څخه.

## وَمَآ أَهْدِيكُمْ إِلَّا سَبِيلَ ٱلرَّشَادِ ۝

او زه نه کوم تاسي ته هدايت مگر د حق لاري يعني موسٰی دي قتل کړل سي.

## وَقَالَ ٱلَّذِىٓ ءَامَنَ يَٰقَوْمِ إِنِّىٓ أَخَافُ عَلَيْكُم مِّثْلَ يَوْمِ ٱلْأَحْزَابِ ۝

او وويل هغه چا چې ايمان يې راوړی ؤ يعني مؤمن آل فرعون ای قومه په تحقيق زه بېرېږم پر تاسي يعني چې پر موسٰی ايمان نه راوړي، او قتل يې کړئ لکه د فرعون رايه چې ده "مثل يوم الاحزاب" په حذف د مضاف ای مثل عذاب (دا مضاف محذوف دی) د ورځي د احزابو يعني الامم الماضية چې د رسولانو به يې تکذيب کاوه او عذاب د خدای ج به پر نازل سو او استيصال ددوی بې وکړی.

## مِثْلَ دَأْبِ قَوْمِ نُوحٍ وَعَادٍ وَثَمُودَ

د "مثل" مضاف اليه محذوف دی ای عذاب، لکه عادت د قوم نوح چې تکذيب د نوح ؑ يې وکړی او په طوفان غرق سوه، او قوم د هاد او قوم د ثمود.

**پوښتنه:** عاد لفظ ته يې تنوين ورکړی يعني چي منصرف دی او د ثمود لفظ ته يې تنوين نه دی ورکړی يعني چي غير منصرف دی وجه يې څه ده؟

**ځواب:** د علم نحو په کتابو کي وايي چي نومان د قبائلو تابع د استعمال د عربو دي که يې يو نامه ته تنوين ورکړی ؤ نو منصرف دی يوازي علميت پکښي سته په تأويل داب يې بولي او که يې تنوين نه ؤ ورکړی نو غير منصرف دی چي علميت او تا تانيث پکښي سته په تأويل د قبيلة، وهذا هو القانون الكلي في جميع ما جاء في القرآن من اسماء القبائل فتدبر.

وَالَّذِيْنَ مِنْۢ بَعْدِهِمْ

او هغه قومونه چي تر دوی وروسته وه لکه قوم لوط و نمرود الجبار چي ددې ټولو عادت تکذيب الرسل ؤ او علاوه تر دې ازار به يې هم ور رساوه.

**تنبيه:** له دې آيت څخه دا معلومه سوه چي قوم فرعون د تاريخ له لاري پر احوال د امم ماضيه ؤ علم درلودی.

**فائده:** قوم نوح کمامر په طوفان هلاک سوه او قوم هاد په باد صرصر هلاک سوه او قوم ثمود په صيحة د جبرئيل هلاک سوه.

وَمَا اللّٰهُ يُرِيْدُ ظُلْمًا لِّلْعِبَادِ ۝

او نه دی خدای ج چي اراده د ظلم لري پر بندګانو.

**فائده:** چونکه ظلمًا مصدر ؤ نو پر مفعول د هغه چي د عبادت لفظ دی لام زيات کړی لتقوية عمل المصدر لانه ضعيف العمل كما تقرر في النحو والمراد انه تعالى عدل چي چاته عذاب بې ګناه نه ورکوي او حسنة د عمل د چا ثواب نه ورکموي او ظالم بې انتقامه او کسات او عذاب نه پرېږدي او عقوبت تر ګناه بالا نه ورکوي.

وَيٰقَوْمِ اِنِّيْٓ اَخَافُ عَلَيْكُمْ يَوْمَ التَّنَادِ ۝

ای زما قومه، زه په تحقيق بېرېږم.

(پوهسه: چي مؤمن د آل فرعون په دمخه آيتو عذاب د دنيا ؤ ددوی يعني قوم ته بيان کړی او په هغه يې وبېرول او اوس يې په عذاب د اخرت بېروي)

**فائده:** اصل د التناد التنادي بالياء ؤ چي مصدر دی يقال تنادي القوم بعضهم

بعضًا تناديًا په ضمه د دال پر وزن د تفاملاً وروسته يې دال ته كسره وركړه په سبب د يا بعده وروسته يې يا حذف كړه اكتفاء يې په كسره وكړه، وبالفارسية يكديگر را نداء كردن، او نصب د يوم د لفظ بناء پر دې دى چي مفعول به بحذف المضاف اى عذاب يوم التناد حذف المضاف واقيم المضاف اليه مقامه و اعرب باعرابه، والمراد بيوم التناد يوم القيامة.

**پوښتنه:** ورځ د قيامت ولې ورځ د تناد بولي؟

**ځواب:** انه ينادى بعضهم بعضًا للاستغاثة (لپاره د كومک) او يا له دې سببه چي كفار د يا ويلى يا ثبورا ناري وهي يا اهل الجنة و اهل النار ته ناري وهي هل وجدتم ما وعدكم ربكم آه كما في سورة الاعراف يا و خلكو ته ناري وهل كېږي چي محشر ته راجمع سئ، يا مؤمن صالح ناري وهي هاؤم اقرؤ كتابيه، او يا كافر ناري وهي يا ليتني لم اوت كتابيه، وجاء هذا برواية ابى هريرة ﷺ عن النبي ﷺ

يَوْمَ تُوَلُّونَ مُدْبِرِينَ

دا يوم بدل دى د يوم التناد څخه، مجاهد رح وايي چي: فارين غير معجزين، وفي التفسير الحسيني: روزيكه برگردانيده شويد از موقف حساب حال كونكم منفرين الى النار يعنى باز گشته گان بسوى دوزخ، روح المعاني وايي فارين من النار كما قال مجاهد رح، په حديث شريف كي راغلي دي چي كافران اواز د دوزخ واوري هربوا (دوى تېښتي ته ځانونه چمتو كړي، نو پر هره خوا چي ولاړ سي صفونه د ملكو ولاړ وي را وه يې كرځوي) فلا ينفعهم الهرب، او دا قول ته ترجيح وركړه سوې ده لانه اتم فائدة، واظهر ارتباطًا بقوله تعالى.

مَا لَكُم مِّنَ اللَّهِ مِنْ عَاصِمٍ

نشته تاسي لره يو ساتونكى (كلمه د من لپاره د استغراق د نفي ده) چي تاسي دې وساتي له عذاب څخه، يعني غير د خداى ﷻ څخه بل څوک دا توان، طاقت او قدرت د دې نه لري چي عذاب دې له جا څخه دفع كړي قطعًا. بلكې عذاب د خداى ج، رحمت د خداى ج دفع كولاى سي، او كافرانو لره د رحمت د خداى ج برخه نشته بالكتاب والسنة واجماع الامة.

وَمَنْ يُّضْلِلِ اللّٰهُ فَمَا لَهٗ مِنْ هَادٍ

څوک چي خدای ج گمراه کړي يعني په علم ازلي کي د خدای ج پر گمراهي وي. نو نسته هغه لره يو هدايت کونکی يعني چي هغه دي مسلمان کي (نو دا کلمه د من هم زائده ده لپاره د استغراق د نفي ده).

**فائده**: که هدايت د غير الله په قدرت کي وای، نو آدم عليه السلام به خپل زوی قابيل د هابيل قاتل پر لاره برابر کړی وای، او نوح عليه السلام به خپل زوی ته هدايت کړی وای، او ابراهيم عليه السلام به خپل پلار آذر ته رهنمايي کړې وای، او رسول الله ﷺ به خپل اکا ابو طالب ته ښوونه کړې وای فالله تعالى خالق للعباد وافعالهم، فالتوفيق والاختيار لله الواحد القهار، وانما العبد کاسب صرف وهذا مذهب اهل السنة والجماعة. خلافًا للمعتزلة چي دوی وايي چي خالق د افعالو د بندگانو په خپله بنده گان دي، او خلافًا للجبرية چي بنده مجبور محض بولي قدرت کاسبه هم نه ورته وايي.

وَلَقَدْ جَآءَكُمْ يُوْسُفُ

لام موطئه د قسم دی، تاسي ته راغلی ؤ يوسف، يعني بن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم عليهم السلام. بعض مفسرين وايي چي فرعون د يوسف هغه فرعون د موسیٰ ؤ چي د فرعون عمر ډېر دراز سو چي تر موسیٰ ع پوري را ورسېدی، ابن قتيبة رح وايي چي عمر د فرعون موسیٰ تر (۴۰۰) کاله څه بالا ؤ، او د ابراهيم ع او د موسیٰ ع ترمنځ (۹۰۰) کاله وه، فيجوز ان يکون بين يوسف بن يعقوب بن اسحاق بن ابراهيم عليهم السلام مدة عمر فرعون فافهم، او بعض مفسرين وايي چي مراد د يوسف څخه په دې آيت کي يوسف بن افرائيم بن يوسف الصديق کان نبيًا (۲۰) کاله.

مِنْ قَبْلُ بِالْبَيِّنٰتِ

(من قبل) اى قبل موسیٰ ع (بالبينات) اى بالمعجزات الظاهرات من جملتها تعبير الرؤيا کما هو المذکور في القرآن، ومنها شهادة الطفل على برائة من تهمة امرئة العزيز عليه الى غيرها.

فَمَا زِلْتُمْ فِيْ شَكٍّ مِّمَّا جَآءَكُمْ بِهٖ

نو همېشه په شک کي واست د هغه شي څخه چي ده راتگ په کړی ؤ (قال ابن عباس رض من عبادة الله وحده مخلصًا له الدين)

حَتّٰٓى اِذَا هَلَكَ قُلْتُمْ لَنْ يَّبْعَثَ اللّٰهُ مِنْۢ بَعْدِهٖ رَسُوْلًا

تر وخته د مرګ د یوسف ؑ پوري، تاسو به ویل چي هرګز به نه راواستوي خدای ﷻ وروسته تر یوسف رسولاً یعني هیڅ رسول، نو تاسي پر خپل کفر مقیم واست.

كَذٰلِكَ يُضِلُّ اللّٰهُ مَنْ هُوَ مُسْرِفٌ مُّرْتَابُ ۝

(کذالک) ای اضلالاً مثل ذالک الاضلال، په ګمراهي او عصیان اخته کوي خدای ﷻ هغه څوک چي مسرف وي (مسرف) ای مشرک (مور د مسرف ترجمه په مشرک سره وکړه، لان اصل معنی الاسراف التجاوز عن الحد المحدود، ولا تجاوز اعظم من جعل الاصنام شرکاءً لله تعالی في العبادة کما لایخفی (مرتاب) چي شک وي په توحید کي د خدای ﷻ چي پر هغه باندي آیات بینات سته العقلیة والنقلیة صرف په تقلید سره د اباء او اجدادو.

الَّذِيْنَ يُجَادِلُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِ اللّٰهِ بِغَيْرِ سُلْطٰنٍ اَتٰىهُمْ

هغه کسان چي بحث بالباطل کوي په آیاتو کي د خدای، مثلاً دوی وایي: لو شئنا لقلنا مثل ذالک (ای القرآن) او سره ددې چي خدای ﷻ وایي: قل لو اجتمعت الانس والجن علی ان یأتوا بمثل هذا القرآن لا یأتون بمثله ولو کان بعضهم لبعض ظهیراً، بېله کوم دلیله چي دوی ته دي راغلی وي بلکې یا په تقلید او یا په بعض شبهات زائغهٔ سره.

**فائده:** الذین یجادلون آه بدل دی د اول موصول څخه یعني من هو مسرف.

**سوال:** دا موصول خو جمع دی او موصول چي من دی مفرد دی فکیف یصح البدلیة؟

**ځواب:** من که څه هم مفرد دی لفظًا لکن جمع دی معنًی ولي چي هو مسرف مرتاب خو ډېر خلک دي.

كَبُرَ مَقْتًا عِنْدَ اللّٰهِ وَعِنْدَ الَّذِيْنَ اٰمَنُوْا

**پوه سه:** چي په کبر کي ضمیر دی راجع دی و من ته او افراد یې په سبب د لفظ د من دی او مقتًا تمییز د نسبت څخه د کبر و من ته، والمعنی دغه من ډېر لوړ دی از روئ مقت او غضب په نېز د خدای ﷻ او د هغو کسانو چي ایمان یې راوړی وي،

او روح المعاني وايي چې په كبر كي ضمير راجع دی و جدال ته چې د يجادلون څخه وفهم شوی نو پر دې تقدير الذين يجادلون په حذف تد مضاف مبتداء دی. والتقدير وجدال الذين يجادلون في آيات الله كبر مقتًا يې خبر دی، والله اعلم.

كَذٰلِكَ يَطْبَعُ اللّٰهُ عَلٰى كُلِّ قَلْبِ مُتَكَبِّرٍ جَبَّارٍ ﴿۳۵﴾

(كذالک) ای مثل ذالک الطبع الفظيع يطبع الله، پر هر زړه چې متكبر وي او ظالم وي نو د هغه څخه هم ورته خبري د مجادلة بغير الحق صادرېږي سره د اسراف او ارتياب.

**فائده:** بعض قراء قلب بېله تنوينه وايي، يعني مضاف يې بولي و متكبر ته، دا قرائت توجيه ته ضرورت نه لري، او بعض قراء قلب په تنوين سره وايي چې متكبر يې صفت سي، پر دې قرائت دا پوښتنه پيدا كېږي چې متكبر صفت د سړي دی د زړه خو نه دی، نو بعض مفسرين وايي چې مراد له قلب څخه صاحب القلب دی په سبب د دې چې زړه چې متكبر سي صاحب يې هم متكبر كېږي وبالعكس يعني مجاز دی. او بعض مفسرين ومضاف ورسره مقدر بولي (يعني ذی قلب متكبر آه) نو متكبر صفت د مضاف دی. ابراهيم الخواص قدس سره وايي چې د قلب قاسي يعني سخت زړه نرمونكي شيان پنځه شيان دي (۱) قرائت القرآن بالتدبر (يعنی كه په معنی پوهېدی) (۲) خلاء البطن (يعني ډوډی لږ خوړل) (۳) قيام الليل (يعني التهجد) (۴) والتضرع الى الله تعالى عند السحر (يعني په اخير كي د شپې) (۵) مجالسة الصالحين.

حكايت بمناسبة مجالسة الصالحين: په مدينه منوره كي يو غني سړی ؤ چې خپل اشنايان يې مېلمانه كړي وه او هغه د خپل مريي په لاس څلور درهمه وركړه چې په بازار كي به فواكه د مېلمنو لپاره راوړي (فاكهة هغه مېوې ته وايي چې د ډوډی وروسته يې خلک خوري ډوډی يې هضم كوي لكه نارنج، مالټه، كېله وغيرها) دا مريی تېرېدی پر دروازه د مسجد د منصور بن عمار قدس سره، منصور مذكوره د يو سړي لپاره سوال كاوه او دا يې ويل چه كه څوک دغه فقير ته څلور درهمه وركړه زه به هغه ته څلور دعاوي وكړم، نو هغه مريي هغه څلور درهمه چې ده ته بادار د فواكه لپاره وركړي وه وركړه، نو منصور رح ورته وويل ما الذي تريد ان ادعولک اولاً مريي ورته وويل چې زما بادار سخت طبيعت دی دعاء وكړه

چي ما ازاد کړي فدعا له، ثم قال منصور ما الذي تريد ثانيًا فقال چي ماته د څلورو درهمو عوض راکړي (يعني که بادار پوښتنه راڅخه وکړي) فدعاء له فقال منصور ما الذي تريد ثالثًا قال ان يتوب الله على سيدي (يعني چي په ده کي بعض بد عملونه سته) فدعاله ثم قال ما الذي تريد رابعًا؟ قال ان يغفر الله لي ولسيدي ولک والقوم (يعني الذين عندک او عند سيدي) فدعاله، نو مريي خالي لاس بادار ته ورغلی يعني فواکه يې نه راوړه، بادار ورته وويل چي ولي وځنډېدې؟ مريي ټوله قصه سر تر پايه ورته وکړه، بادار ورته وويل چي دعاء منصور درته وکړه اولاً؟ غلام ورته وويل چي دعاء داده چي ستا د مريي توبه زه خلاس سم، بادار ورته وويل انت حر، ته پر ما ازاد يې، بادار ورته وويل ای شيئ الثاني؟ غلام ورته وويل چي دوهمه دعاء دا وه چي خدای ج ما ته د څلورو درهمو عوض راکړي، بادار ورته وويل لک اربعة الاف درهم من عندي، بادار ورته وويل چي دريمه دعاء يې څه درته وکړه؟ غلام ورته وويل ان يتوب الله عليک (يعني چي خدای ج تاته توفيق د توبې درکړي) بادار ورته وويل تبت الى الله، بيا بادار ورته وويل چي څلورمه دعاء يې څه درته وکړه؟ مريي ورته وويل ان يغفر الله لي و سيدي ولک والقوم يعني الذين عندک او عند سيدي. بادار ورته وويل چي دا څلورم زما په قدرت کي نه ده بلکې دا د خدای ﷻ په اراده پوري اړه لري. مابښام چي هغه بادار د غلام بيده سو خوب يې ليدی چي يو قائل (يعني ملکه د الله عزوجل له خوا ورته وايي انت فعلت ما کان اليک اتری ان لا افعل ما فوضت الي فقد غفرت لک و للغلام و لمنصور وللقوم الحاضرين. انتهى الحكاية وفيها فوائد لاتخفى على ذوی العقول الصافية.

وَقَالَ فِرْعَوْنُ يٰهَامٰنُ ابْنِ لِيْ صَرْحًا لَّعَلِّيْٓ اَبْلُغُ الْاَسْبَابَ ۝

او وويل فرعون و خپل وزوير ته، ای هامان جوړه کړه ماته يوه مناره، او بلند ځای چي هر چاته شکاريږي د لېري، شايد زه به ورسيږم و لارو ته د لارو څخه د اسمان.

اَسْبَابَ السَّمٰوٰتِ فَاَطَّلِعَ اِلٰٓى اِلٰهِ مُوْسٰى

"اسباب السموات" بدل دی يا بيان دی د اسباب څخه يعني لارو ته له يوه اسمانه تر بل اسمانه پوري، زما به اطلاع سي.

**فائده:** هر شی چي سړی ورته رسوي هغه ته سبب وايي لکه څېنې و بام ته، سولاغه او مړانده د اوبو لپاره الی غیر ذالک.

**یوه سه:** چي حفص رح د قراء سبعهؤ یې په نصب سره وايي جواب د لعل یې بولي او نور قراء یې په رفع سره وايي عطف یې بولي پر ابلغ الی اله موسٰی، روح المعاني او مظهري او بیضاوي وايي چي دده لعین مراد داؤ چي یوه لوړه بناء دي جوړه سي هغه لکه رصد د اهل ریاضيؤ چي په هغه رصد کي احوال د ستورو معلومېږي چي اسباب سماویه دي چي هغه پر احادیث ارضیهؤ یعني پر نورو خبرو چي په مځکه کي پېښېږي دلالت کوي، تاچي دا معلومه کړي چي موسٰی ع رسول دی او که نه. دده لعین غرض داؤ چي خلګو ته وښیي چي موسٰی درواغ وايي چي د اله سمٰوات د خوا رسول یم ولي دی کله و اله السمٰوات ته پورته سوی دی لکه زه چي پورته سوم.

**وَإِنِّي لَأَظُنُّهُ كَاذِبًا**

او زما غالب ګمان دادی چي دی درواغ وايي، په دعوی کي د رسالت من الله.

**وَكَذَٰلِكَ زُيِّنَ لِفِرْعَوْنَ سُوءُ عَمَلِهِ وَصُدَّ عَنِ السَّبِيلِ**

او داغه رنګه، لکه فرعون ته دا ښائسته سوي وه چي صرح دي جوړه کړي او پر رب السموات دي علم راسي، ښائسته کړه سوی ؤ فرعون ته بد عمل دده (من دعوی الربوبية چي عقل سلیم اباء ځني کول او قتل د اولاد د بني اسرائیل او استخدام ددوی کمامر، یعني دده لعین په خیال کي دغه هر کار چي ده کاوه ښه ورتله. نو ځکه پر دغو کارو دادهؤ) دی بند کړل سوی ؤ له حق لاري څخه.

**یوه سه:** چي کوفي قراء او یعقوب د بصرې له قاریانو څخه (صد) په پېښ د صاد وايي مبني للمفعول یې بولي، او فاعل خو په حقیقت کي خدای ج دی. کریمه: یضل من یشاء ویهدي من یشاء، او نور قراء یې په زور صاد وايي چي مبني للفاعل سي، ضمیر مستتر راجع دی و فرعون ته. والمعنی صد فرعون الناس عن الهدی ودین الحق بمثل تلک التوهمات والشبهات.

**وَمَا كَيْدُ فِرْعَوْنَ إِلَّا فِي تَبَابٍ** ۳۷

او نه دی چم او حیله د فرعون په ابطال کي د امر د موسٰی مګر نه په تاوان کي دده او په خسران کي او په ضیاع کي.

وَقَالَ الَّذِيٓ اٰمَنَ يٰقَوۡمِ اتَّبِعُوۡنِ اَهۡدِكُمۡ سَبِيۡلَ الرَّشَادِ ۚ﴿۳۸﴾

او وویل هغه سړي چې ایمان یې راوړی ؤ یعني مؤمن آل فرعون، ای قومه زما متابعت وکړئ (بحذف الیاء في الموضعین والکسرة دلیل علیها اصله یاقومي اتبعوني) زه به تاسي ته دروښییم هغه لار چې تلونکي پر هغې لاري حق ته رسیږي او مقصود اصلي ته رسیږي، په دې عبارت ده اشاره ودې ته وکړه چې د فرعون لار د ضلال ده.

يٰقَوۡمِ اِنَّمَا هٰذِهِ الۡحَيٰوةُ الدُّنۡيَا مَتَاعٌ ۫ وَّاِنَّ الۡاٰخِرَةَ هِىَ دَارُ الۡقَرَارِ ﴿۳۹﴾

یا قومه زما نه دی دا ژوند په دنیا کي مګر متاع (ای شيئ یسیر چې خلک نفع پر اخلي لږ مدت وروسته قطع کیږي) او په تحقیق اخیرت چې دی سرای د قرار دی چې بیا زوال نه لري، له ابن مسعود رضی الله عنه څخه روایت دی چې رسول الله ﷺ پر بوریا بیده ؤ، نو چې راویښ سو نو مورږ ولیدی جسد مبارک دده چې د بوریا لښتو اثر پکښي کړی ؤ، نو ابن مسعود رضی الله عنه ورته وویل یا رسول الله که ته موږ ته امر وکړې موږ به پر بوریا سرپېره یو شی درته او اوړو مثلاً لکه سترنجي یا کوړیچه. فقال علیه السلام مالي وللدنیا وما انا والدنیا الا کراکب استظل تحت الشجرة ثم رجع وترکها. لکه یو سړی چې په سفر کي د ګرمی له کبله د یوې درختي تر سایې لاندي استراحت وکړي ماپښین څني ولاړ سي او درخته پرېږدي، نو مؤمن آل فرعون قوم ته زیاته کړه.

مَنۡ عَمِلَ سَيِّئَةً فَلَا يُجۡزٰٓى اِلَّا مِثۡلَهَا ۚ

که چا عمل وکړی د بد کار، نو عذاب نه ورکول کیږي مګر په اندازه د هغې ګناه (وهذا عدل من الله تعالی)

وَمَنۡ عَمِلَ صَالِحًا مِّنۡ ذَكَرٍ اَوۡ اُنۡثٰى وَهُوَ مُؤۡمِنٌ

او که چا عمل وکړی صالح (که قولي وي او که مالي وي او که بدني وي) که عمل کونکی نر وي او که ښځه، او په داسي حال کي چې دی مؤمن وي (قید بالایمان لان الایمان شرط في کل عمل صالح) ای لثوابه، ولي ثواب ورکونکی خو خدای ج دی فلا بد للایمان به مثلاً لکه یو سړی چې لمونځ په ښه ترتیب و تعدیل الارکان سره وکړي مګر بې او داسه یې وکړي ثواب یې نسته.

فَأُولَٰٓئِكَ يَدْخُلُونَ الْجَنَّةَ يُرْزَقُونَ فِيهَا بِغَيْرِ حِسَابٍ ۝

دغه کسان داخلېږي و جنت ته، او دوی ته رزق ورکول کېږي په جنت کې بې حسابه، يعني پر اندازه د اعمالو حسنهٔ بلکې اضعاف مضاعفه ورکول کېږي، وهذا فضل من الله ورحمته.

وَيَٰقَوْمِ مَا لِيٓ أَدْعُوكُمْ إِلَى النَّجَوٰةِ وَتَدْعُونَنِيٓ إِلَى النَّارِ ۝

حسين الكاشفي رح وايي: چي آل فرعون از سخنان خربيل كه نام مؤمن آل فرعون بود فهم گردند كه ايمان آورده است بموسىٰ زبان ملامت بكشادند كه شرم نه داري كه فرستش فرعون روی بديگری می آری، خربيل تكرار نداء كرد از روئ تنبيه تا شايد از خواب غفلت بيدار شوند وگفت و يا قوم آه "مالي" (ما الاستفهام للانكار والتوبيخ) تاسي زه بولم او دعوت دركوم ساتلو ته د اور څخه بالايمان والتوحيد "وتدعونني الى النار" او تاسي ماته دعوت راكوئ د اور، يعني و شرك ته چي سبب د دوږخ دی.

**فائده:** ځای د تعجب د مؤمن د آل فرعون او دده د توبيخ دعوت ددوی ده لره اورته يعني شرک ته، نه دعوت دده و دوی ته و نجات ته كما لا يخفىٰ.

تَدْعُونَنِي لِأَكْفُرَ بِاللَّهِ

(دا جمله بدل يا بيان ده د مخه تدعونني الى النار) تاسي دعوت راكوئ ماته چي زه كافر په خدای ج سم يعني خدای ته شريک ووايم.

**فائده:** دعاء لكه هدايت ګاهي متعدي په الى سره راځي او ګاهي په لام سره لكه په دې آيت كې.

**درويش وايي:** چي كفر چونكه ډېر اقسام درلوده نو په دې آيت كې توضيح د كفر وكړه.

وَأُشْرِكَ بِهِۦ مَا لَيْسَ لِي بِهِۦ عِلْمٌ

او زه شريک وګرځوم د خدای ج سره هغه شی چي نه دی ما لره په خدای سره د شريک نيولو هيڅ علم، لكه فرعون چي ځان رب اعلى بولي بلكې زما سره دليل قاطع سته چي شريک د خدای ج سره ممتنع دی.

وَأَنَا أَدْعُوكُمْ إِلَى الْعَزِيزِ الْغَفَّارِ

او زه تاسي بولم و هغه خدای ﷻ ته چي غالب او قادر دی پر انتقام د من کفر به یعني عذاب دی "الغفار" چي بخښونکی دی د من آمن به، نو هغه د ربوبیت د صفت شایان دی چي کمال قدرت او علم او اراة لري نه فرعون رزیل او بې قدرته یا بتان وغیرها.

لَا جَرَمَ أَنَّمَا تَدْعُونَنِي إِلَيْهِ لَيْسَ لَهُ دَعْوَةٌ فِي الدُّنْيَا وَلَا فِي الْآخِرَةِ

کلمه د لا رد دی د هغه شي چي قوم ده ته دعوت ورکاوه د عبادت د هغه چي بتان دي، او جرم فعل ماضي ده په معنی د حق. او فاعل يې ان مع جملة دی یعني حق د عدم دعوت ستاسي د خدایانو چي بتان او جمادات دي و عبادت ته خپل نه په دنیا کي او نه په آخرت کي لانها جمادات لا دعوة لهم او في الدنيا الى عبادتها او نه په آخرت کي چي راسئ موږ مو شفاعت کوو بلکې دغه بتان په قدرت د خدای ج بېزاري وکړي ددوی له عابدانو څخه کما جاء في موضع اخر من القرآن العزيز، نو دا شیان د الوهیت وړ نه دي.

**پوښتنه:** قوم فرعون خو دعوت د فرعون د ربوبیت ورکاوه، نو بتان دلته څرنګه راوړل سول؟

ځواب: لکه مخته چي تېره سوه فرعون پر خپل صورت مجسمې د بتانو تر اندازه ډېري جوړي کړي وې او په خلکو یې ویشلي وې چي تاسي دغو مجسمو ته سجدې کوئ ګویا لکه زما و شخص ته چي سجدې کوئ، ویدل علیه ذالک قول اللعين و انا ربكم الاعلى.

وَأَنَّ مَرَدَّنَا إِلَى اللَّهِ وَأَنَّ الْمُسْرِفِينَ هُمْ أَصْحَابُ النَّارِ

او زموږ رجوع و خدای ج ته ده (یعني بعد الموت په ورځ کي د قیامت، نو خدای پاک به جزاء ورکړي و هر چا ته بما يستحقه) او هغه کسان چي اسراف یعني تر حد د عبودیت تېری کوي و ضلالت او طغیان ته په سبب د شرک یا ویني تویول لکه فرعون چي د بني اسرائیلو د زامنو ویني تویولې، دوی ملګري او ملازم د اور دي یعني د دوږخ.

فَسَتَذْكُرُونَ مَآ أَقُولُ لَكُمْ ۚ وَأُفَوِّضُ أَمْرِيٓ إِلَى اللَّهِ ۚ

ژر دی چې یو بل ته ذکر وکړي، یعنې چې عذاب نازل سي نو به یو و بل ته وواېي چې کاشکې مو ایمان راوړی وای (او هغه ذکر ستاسي په ښه نه درځي).. بیت:

تو پیش از عقوبت درعفو کوب....... که سودی ندارد فغان زیر چوب

"ما اقول لکم" زه تاسي ته نصیحت کوم، او زه تفویض د خپل حال و خدای ته کوم چې ما له هر عذاب څخه ستاسي د خوا وساتي، دا خبره مؤمن آل فرعون هغه وخت وکړه چې قوم د فرعون ده ته پیش رو د عذاب ورکړی په سبب د مخالفت د دین د دوی.

إِنَّ اللَّهَ بَصِيرٌۢ بِالْعِبَادِ ﴿٤٤﴾

په تحقیق خدای خبر دی په حال د بندګانو که پر حق وي او که پر باطل وي. راوي وايي چې وروسته تر مذکوره خبرو او نصیحت مؤمن آل فرعون ددوی له منځه ووتی، نو دوی یې تعقیب وکړی چې عذاب ورکړي لکن قدرت یې نه کړی پر پیدا، کما قال الله عزوجل.

فَوَقَىٰهُ اللَّهُ

خدای دی وساتی له آل فرعون څخه. یعنې آل فرعون ده د قتل اراده وکړه دی ځنې وتښتېدی، فرعون چې خبر سو چې زما له اقاربو څخه یو څوک مسلمان ؤ او زما څخه یې ایمان پټ ساتلی ؤ، نو خلک یې پسې واستول چې دی ونسئ تا چې عذاب ورکړو. نو هغه یې په نیولو کې کامیابه نه سول، چنانچه الله ﷻ وایي:.

سَيِّـَٔاتِ مَا مَكَرُوا۟ ۖ وَحَاقَ بِـَٔالِ فِرْعَوْنَ سُوٓءُ الْعَذَابِ ﴿٤٥﴾

له عذابو څخه د هغه قوم چې اراده یې ورته کړې وه و مؤمن ته د آل فرعون، او احاطه وکړه پر آل فرعون یعنې قبطیانو باندې.

**پوښتنه:** فرعون یې ولې نه کړی ذکر یعنې چې داسې ویل سوي وای "بفرعون واله"؟

**ځواب:** د فرعون په عذاب کې راتلل خو اظهر من الشمس وه، ولې چې د قوم د عذاب سبب خو فرعون ؤ.

"سوء العذاب" بد عذاب چې په دنیا کې په دریاب کې غرق سوه او په اخرت کې به په دوزخ کې غرق وي، مظهري او روح المعاني یو بل تفسیر د "سوء

العذاب" هم راوړی دی چي پر آل فرعون چي سوء العذاب مسلط سو هغه کسان مراد دي چي فرعون په طلب پسي د مؤمن آل فرعون استولي وه، نو مؤمن چي له دوی څخه وتښتېدی غره ته ولاړی او هوړي پر لمانځه ودرېدل چي تول زر (۱۰۰۰) کسه وه، نو خدای ﷻ د سباع الوحوش پېره پر ودرول یعني پړانګان، لېوان وغیره، نو هغه کسان چي فرعون په دوی پسي استولي وه هغو چي دا صحنه ولیدل وبېرېدل او بېرته را ستانه سول فرعون ته یې د سترګو لیدلی حال ووایه، فرعون له دې سببه چي دا حال په خلګو کي نشر نه سي چي زما په سیاست کي به سل په سله کي خطر وګرځي هغه کسان یې ټول له قتل کړه انتهی قول المظهري وروح المعاني.

**درویش وایي:** چي دا قصه روح البیان هم راوړې ده او کشف الاسرار چي په فارسي ژبه تفسیر دی هم راوړې ده لکن په تفسیر کي د هغه آیت "فوقاه الله سیئات ما مکروه" او مظهري او روح المعاني په تفسیر کي د حاق بآل فرعون سوء العذاب دا تفسیر راوړی دی، نو دا خبره د مظهري او روح المعاني په تفسیر کي د وحاق بآل فرعون آه د منلو وړ نه ده، فتدبر.

## النَّارُ يُعْرَضُونَ عَلَيْهَا غُدُوًّا وَعَشِيًّا

دا یې د عالم برزخ حال دی، والمعنی اور دی چي پېش کړل کېږي پر فرعون او آل دده پر هغه اور باندي (ضمیر مؤنث راجع دی و اور ته چي لفظ د نار مؤنث سماعي دی، او روح البیان معنی د عرض دا بیان کړې ده، احراق د روحانو ددوی دی وتعذیبهم بها.

**پوښته:** چي "النار" مبتداء ده جمله یعرضون یې خبر دی، او ضمیر مؤنث یې رابط دی بینهما. او ټوله جمله مستأنفه ده د بیان د حال د آل په عالم برزخ کي یعني قبل یوم القیامة، ابن مسعود رضی الله عنه وایي چي ارواح د آل فرعون په اجوافو کي د تورو مرغانو دي چي په ورځ کي دوه واره پر اور پېشول کېږي، فیقال یا آل فرعون هذه مأواکم حتی تقوم الساعة، انتهی.

**پوښتنه:** حتی د غایة یې ولي راوړی؟

**ځواب:** د قیامت په ورځ د اهل فرعون بدنونه د روحانو سره یو ځای اور ته استول کېږي.

"غُدُوًّا وَّعَشِيًّا" په اول کي د ورځي او په اخير کي د ورځي، د ابن مسعود رضي الله عنه حديث عبد الرزاق او ابن ابی حاتم رحمه الله راوړی دی، او مقاتل، السدي او کلبي رحمه الله وايي چي د هر کافر دغه حال دی چي پر اور پيشېږي بکرة وعشيًا تر ورځي پوري د قيامت. ددې قول تائيد هغه حديث کوي چي بخاري او مسلم له عبدالله بن عمر رضي الله عنه څخه روايت کړی دی ان رسول الله ﷺ قال ان احدكم "مخاطب که څه هم حاضر کسان دي حکم عام دی" عرض عليه مقعده "ځای دده" بالغداة والعشي. ان كان من اهل الجنة فمن اهل الجنة "يعني مقام دده په جنت کي وربښوول کېږي" وان كان من اهل النار فمن اهل النار، فيقال له هذا مقعدک حتى يبعثک الله الى يوم القيامة.

**درويش وايي:** چي په دې حديث کي پر بقاء د مړي او پر عذاب القبر وقد دلت الاحاديث عليه، وانعقد عليه الاجماع لكن زمونږ پر دې ايمان دی او کيفيت يې د خدای ﷻ و علم ته سپارو، لان بعض الناس لکه مشرکی الهند خپل مړي وروسته تر مړيني په اور سوځوي او قبر نه لري، او بعض کافران لکه فرعون او قبطيان په اوبو کي غرق سوه غالبًا ماهيانو به خوړلي وي قبر خو يقينًا نه وو.

**تنبيه:** دا مسئله چي د عقائدو په کتابو کي په عذاب القبر سره شهرت لري بناء پر عرف د عربو ده چي دوی خپل مړي په قبرو کي دفن کوي.

**پوښتنه:** دا مسئله ولي په عذاب القبر سره مشهوره ده، او سره ددې چي په خبر کي راغلي دي "القبر روضة من رياض الجنان او حفرة من حفراة النيران"؟

**ځواب:** اكثر مدفون في القبور کي کافران دي الى يومنا هذا، والعلم عند الله.

وَيَوْمَ تَقُوْمُ السَّاعَةُ ۗ اَدْخِلُوْٓا اٰلَ فِرْعَوْنَ اَشَدَّ الْعَذَابِ ﴿٤٦﴾

هغه ورځ چي قيامت قائم سي و به ويل سي ملکو ته چي داخل کړئ آل فرعون و سخت عذاب ته.

**درويش وايي:** چي دا ترجمه پر هغه قرائت بناء ده چي "ادخلوا" په قطع د همزه له باب څخه د افعال وي يعني ادخلوا بکسر الخاء لکه اکثر قراء چي پر دغه قرائت دي او په مصاحف مطبوعه وو کي هم همدغه قرائت مروج دی، او پر قرائت د ابن كثير او ابو عمرو او ابن عامر رحمه الله چي ادخلوا په همزه د وصل وايي يعني په ضم د خاء

بې وايي، نو يې معنا داده چې داخل سئ يا آل فرعون (بحذف حرف النداء) وسخت عذاب ته، پر دواړه قرائت معنی د اشد العذاب ابن عباسؓ داسي بيان کړې ده يريد الوان العذاب (يعني رنګارنګ عذابونه) غير الذي عذبوا له منذ غرقوا يعني في عالم البرزخ، انتهى.

وَإِذْ يَتَحَاجُّونَ فِي النَّارِ

په ياد کړه يا محمدؐ خپل قوم ته هغه وخت چې دعوې وې د اهل النار چې کافرانو يو د بل سره په اور يعني په دوږخ کې چې په دې آيت کې تفصيل د خصوماتو ددوی خدای بيان کړی.

فَيَقُولُ الضُّعَفَاءُ لِلَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا إِنَّا كُنَّا لَكُمْ تَبَعًا

نو وايي به ضعيفان چې د رئيسانو په وينا دوی کفر مختاره کړی ؤ هغو کسانو ته چې متکبران وه په دنيا کې يعني چې د ضعيفانو رئيسان وه، موږ ؤ په دنيا کې تابعان په کفر او شرک کې.

**پوه سه:** چې تبع جمع د تابع ده لکه خدم چې جمع د خادم ده عند البصريين، او کوفيان وايي چې جمع خو ده لکن مفرد د لفظ څخه نه لري او جمع يې اتباع ده، او بعض مفسرين وايي چې تبع مصدر دی حمل يې مبالغةً دی لکه زيد عدل يا په حذف د مضاف يعني ذوی تبع.

فَهَلْ أَنْتُمْ مُغْنُونَ عَنَّا نَصِيبًا مِنَ النَّارِ ﴿٤٧﴾

آيا ستاسي به موږ ته فائده ورسېږي په دفع کې د يوې برخې د اور زموږ څخه؟ استفهام په معنی د امر دی يعني را څخه دفع يې کړئ.

**پوه سه:** چې مغنون مشتق دی له غناء څخه په معنی د فائدې، او نصيبًا منصوب دی چې قائم مقام د مصدر دی د مغنون کما في قوله تعالى "لن تغني عنهم اموالهم ولا اولادهم من الله شيئًا" يعني من عذاب الله شيئًا من الغناء.

قَالَ الَّذِينَ اسْتَكْبَرُوا إِنَّا كُلٌّ فِيهَا إِنَّ اللَّهَ قَدْ حَكَمَ بَيْنَ الْعِبَادِ ﴿٤٨﴾

وويل هغه کسانو چې کبر يې کړی ؤ يعني رئيسانو چې موږ او تاسي "كل" ای کل واحد منا ومنکم (فالتنوين عوض من المضاف اليه) "فيها" په اور کې يو

نو موږ څرنګه ستاسي څخه عذاب دفع کړو یعني که موږ توان او طاقت د دفع درلودای د خپل ځان څخه به مو دفع کړی وای "ان الله قد حکم بین العباد" دا هم مقوله ده د متبوعینو و تابعینو ته، والمعنی چي خدای حکم او فیصله کړې ده په منځ کي د بندګانو یعني مؤمنانو جنتو ته ولاړسئ او تابعین او متبوعین د کافرانو د دنیا دي اور ته ولاړ سي، ولا معقب لحکمه.

## وَقَالَ الَّذِينَ فِي النَّارِ لِخَزَنَةِ جَهَنَّمَ

او و به وایي هغه کسان چي په اور کي دي (یعني الکفر من کانوا) و ساتندویانو ته د جهنم.

**سوال:** اور چي مؤنث سماعي دی قریبًا ذکر سو، نو د څه حکمت لپاره یې ضمیر نه کړی ورته راجع یعني لخزنتها؟

**ځواب:** چونکه جهنم په شدت د عذاب شهرت درلودی، نو لپاره د تهویل د شان د عذاب د دوی یې جهنم ووایه او ضمیر یې نه کړی ورته راجع، ولي د لفظ د نار خو د دنیا په اور کي هم استعمال رواؤ، فلا تدل علی التهویل والتعظیم کما لایخفی.

## ادْعُوا رَبَّكُمْ يُخَفِّفْ عَنَّا يَوْمًا مِّنَ الْعَذَابِ ﴿٤٩﴾

تاسي خواست وکړئ و رب ته ستاسي چي سپک کړي زموږ څخه یو شی له عذاب څخه (نو یومًا مفعول مطلق دی د یخفف) او روح البیان یې ظرف بولي ای مقدار یوم من ایام الدنیا.

## قَالُوا أَوَلَمْ تَكُ تَأْتِيكُمْ رُسُلُكُم بِالْبَيِّنَاتِ

"قالوا" ای خزنة جهنم، آیا نه ؤ درغلی تاسي ته یعني په دنیا کي رسولان ستاسي متلبس په معجزاتو سره.

**بوه سه:** چي دا استفهام لپاره د توبیخ او سرزنش دی یعني تاسي په دنیا کي اوقات د دعاء او اسباب د اجابت ضائع کړي دي (یعني ایمان مو راوړی وای او خدای ته مو د خلاصون د عذاب النار خواست کړی وای خدای به قبول کړی وای اوس په دوږخ کي د خواست د قبلېدو وخت تېر سوی دی... بیت:

تو پیش از عقوبت در عفو کوب ...... که سودی نه دارد فغان زیر چوب

او داسي هم روا ده چي کلمه د واو دي عطف وي پر محذوف، وروسته تر همزه د استفهام کما هو القانون النحوي وقد مر في هذا التفسير مرارًا، والتقدير اما علمتم في الدنيا ما لحقكم في الآخرة (والمعطوف عليه المقدر) ولم تک تأتيکم بالبينات لپاره د انذار.

## قَالُوْا بَلٰى ۚ قَالُوْا فَادْعُوْا ۚ وَمَا دُعٰٓؤُا الْكٰفِرِيْنَ اِلَّا فِيْ ضَلٰلٍ ۝

هو راغلي وه "قالوا" ملکي ورته وو ايي د استهزاء په لهجه چي مقصود ځني اقناط (نا اميدي) د دوی د قبوله د خواستو د دوی "فادعوا" خواستونه کوئ له خدای څخه، نه دی خواست د کافرانو يعني په دوږخ کي مگر نه په ضائع والي کي دی يعني د قبول اميد قطع دی، بعض مفسرين وايي چي دا قول د خدای يعني "وما دعؤا الکافرين" او بعض مفسرين وايي چي دا هم قول د خزنة النار دی، نو پر دې تقدير يا دغه اخيري جمله حال ده د "فادعوا" له ضمير څخه يا جمله معترضه ده.

**درويش وايي:** چي ما په ترجمه کي د آيت داسي وويل (يعني په دوږخ کي) غرض مي دا ؤ چي په دعاء د کافر کي اختلاف ؤ د علماؤ، بعض علماء وايي چي د کافر دعاء مطلقًا نه قبلېږي يعني که په دنيا کي وي او که په اخرت کي، لکن مفتٰی به مذهب دا دی چي په دنيا کي قبلېږي، ولي چي ابليس چي کافر مطلق ؤ او رئيس الکافرين ؤ خدای ته يې خواست وکړی "رب انظرني" يعنی ما ته مهلت راکړه يعني ژر مي مه وژنه، قال الله تعالی "انک لمن المنظرين" يعني خدای يې خواست قبول کړی.

**پوه سه:** چي قصه د موسٰی او کومک ده او ده د قوم پر فرعون او د هغه پر قوم د مخه تېر سوه، په راتلونکي آيت کي خدای حال د رسولانو او د مؤمنانو عمومًا بيانوي، فقال.

## اِنَّا لَنَنْصُرُ رُسُلَنَا وَالَّذِيْنَ اٰمَنُوْا فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا

په تحقيق موږ مرسته د رسولانو خپل او د مؤمنانو وکړه په ژوند کي د دنيا.

الضحاک وايي بالحجة او سيد المفسرين عبدالله بن عباس رضي الله عنهما وايي ای بالغلبة والقهر. البيضاوي وايي چي د ابن عباس رض پر قول دا سوال واردېږي چي کاهي خو غلبه د کافرانو پر مؤمنانو په برخه سي لکه په احد کي، ولي هغه يو امتحان دی، اعتبار عاقبة الامر وغالب الامر لره دی.

**سوال:** په اوسنی زمانه کي خو غالب الامر غلبه کافرانو لره ده لکه امریکایان انګرېزان وغیرهم د نړی په کونج کونج کي؟

**ځواب:** آیة کریمه "وانتم الاعلون (یعني علی الکفار) ان کنتم مؤمنین" (ای حقًا بکمال الایمان یعني مؤمنان د حکم اعلی ځکه چي د خدای دوی مخالفت وکړي نو خدای دښمن پر مسلط کړي لکه په غزاء کي د احد چي علیه الصلوٰة والسلام پنځوس (۵۰) کسه په مشری د عبدالله پر یوې درې د پهرې لپاره مقرر کړي وه چي ددې درې له خوا ځکه دښمن رانه سي، او علیه الصلوٰة والسلام دوی ته ټینګ وصیت کړی ؤ چي که موږ پر کفارو غالبه سوو یا دوی پر موږ غالب سول تاسي به دا مرکز نه پرېږدئ تر څو چي ما سړی نه وي دراستولی، خیر جنګ شروع سو کافرانو د مکې شکست وخوړی حتی چي ددوی ښځي چي دوی له ځانه سره راوستلي وې په غره کي ځغاستلې پایڅې یې راپورته کړي وې، نو دې خلګو چي د کفارو دا شکست ولیدی سره ناري یې کړې یا قوم الغنیمة یعني کفارو خو شکست وکړی درځئ چي غنیمتونه جمع کړو، ددوی مشر یعني عبدالله ورته وویل چي ستاسي د علیه الصلوٰة والسلام وصیت هېر دی چي تاسي به مرکز نه پرېږدئ تر څو ما سړی نه وي دراستولی؟ اخیر څورلس کسه د عبدالله بن جبیر سره پاته سوه نور ټول په طلب د غنیمت میدان جنګ ته راښوه سول او د علیه الصلوٰة والسلام امر یې پرېښو، خالد بن ولید چي په هغه وخت کي یې ایمان نه ؤ راوړی د دوو سوو کسانو سره پر هغه دره راغلی هغه څوارلس نفره یې هوري شهیدان کړل او د تښتېدلو کفارو له زړونو ځکه رعب خدای و ایستی علیه الصلوٰة والسلام او مؤمنان یې و مابین ته کړه چي په نتیجه کي اوویا (۷۰) کسانو د شهادت جام نوش کړی او د علیه الصلوٰة والسلام سر مبارک مات سو او غاښ مبارک یې هم، دا ؤ مجمل بیان د غزوة الاحد چي مسلمانان مغلوبه سول.

او روح البیان نور هم ډېر مثالونه راوړي دي تاسي یې مطالعه کړئ.

**وَيَوْمَ يَقُوْمُ الْاَشْهَادُ ۝ يَوْمَ لَا يَنْفَعُ الظّٰلِمِيْنَ مَعْذِرَتُهُمْ**

او په هغه ورځ یعني په ورځ د قیامت (یوم الاشهاد یې په دې بولي چي کرام کاتبین یعني حفظة الاعمال ملکي شاهدي اداء کوي د رسولانو پر تبلیغ او د

کافرانو پر تکذیب) هغه ورځ چي فائده نه کوي و کافرانو ته عذر ددوی، ولي چي عذر ددوی باطل دی "یوم" بدل دی د یوم یقوم څخه.

**فائده:** بعض له قراء سبعه ؤ څخه تنفع په تا د تانیث وایي له دې سببه چي فاعل يې معذرتهم دي او هغه مؤنث دی او بعض قراء يې په ياء د غيبت وايي، ولې چي فاعل يې مؤنث حقيقي نه دی او بل فصل هم سته په منځ کي د فعل او فاعل.

## وَلَهُمُ اللَّعۡنَةُ وَلَهُمۡ سُوٓءُ الدَّارِ ۝

دوی لره دی لعنت (لېري والی د رحمت عامه څخه د خدای ﷻ، دا جمله حال دی من الظالمين) "ولهم سوء الدار" اضافت د صفت دی و موصوف ته ای الدار السوای يعني جهنم.

## وَلَقَدۡ ءَاتَيۡنَا مُوسَى الۡهُدَىٰ وَأَوۡرَثۡنَا بَنِيٓ إِسۡرَٰٓءِيلَ الۡكِتَٰبَ ۝

او په تحقيق موږ ورکړی ؤ موسیٰ ته هغه شی چي په هغه هدایت ؤ و دين حق ته پیدا کېدی، یعني التورات بعد اهلاک فرعون وقومه، او په میراث موږ پرېښو بني اسرائيلو ته کتاب يعني التورات (فاللام للعهد الذکري) يعني وروسته تر وفات د موسیٰ.

**پوهه:** چي اطلاق د هدیٰ چي مصدر دی پر تورات مبالغةً دی.

**فائده:** دا بیان متصل دی بقصة موسیٰ په منځ کي جمل معترضه دي.

## هُدًى وَذِكۡرَىٰ لِأُوْلِي الۡأَلۡبَٰبِ ۝

"هدًى و ذکریٰ" (دا دوه لفظه يا مفعول له دي د اورثنا ای لاجل الهداية والتذكرة يا حال دي له کتاب څخه حمل يې مبالغةً دی نحو زيد عدل، یا مجاز في الطرف دی ای هاديًا و مذكرًا)

**پوهه:** چي اولی جمع د ذو ده خلاف اللفظ، او الباب جمع د لب ده چي مغز ته وايي لکه د جوز مغز يا د بادام وغيرهما مغز، مراد ځني عقل سليم دی، علماء وايي چي د انسان مغز عقل سليم دی او بدن يې قشر دی يعني پوست او جامه يې قشر القشر ده، نو عقل سليم لکه مغز دی د سړي لپاره باید خلک تربیه د عقل وکړي په علوم حقه ؤ سره.

فَاصْبِرْ إِنَّ وَعْدَ اللَّهِ حَقٌّ وَاسْتَغْفِرْ لِذَنبِكَ

صبر وکړه یا محمد (ﷺ) علی اذی المشرکین، په تحقیق وعده د د خدای ستا سره په نصر او کومک "حق" حق ده لایحتمل الخلف لان الخلف في الوعد محال علی الله، او شاهد یې حال د موسیٰ او فرعون دی "واستغفر لذنبک" ته طلب د بخښې وکړه د خپلې ګناه لپاره.

**پوښتنه**: انبیا علیهم السلام خو له ګناه څخه معصوم دي، نو څرنګه نسبت د ګناه وعلیه الصلوة والسلام ته وکړل سو؟

**ځواب**: بعض مفسرین وایي لزلتک یعني هغه کار چې خلاف الاولی وي، فهذا من قبیل ما قالوا حسنات الابرار سیئات المقربین، او بعض مفسرین وایي لذنب امتک (بحذف المضاف) او صحیح داده چې دا امر تعبدي دی یعني په دې استغفار سره د علیه الصلوة والسلام دده درجه لوړیدله او بل ددې لپاره چې د استغفار ویل به سنت د امت لپاره هم وګرځي.

وَسَبِّحْ بِحَمْدِ رَبِّكَ بِالْعَشِيِّ وَالْإِبْكَارِ ﴿٥٥﴾

**پوه سه**: چې روح البیان ددې آیت ترجمه داسي کړې ده ای دم علی التسبیح متلبسًا ای مقرونًا بحمد ربک یعني سبحان الله وبحمده ، دی وایي والمقصود "بالعشي والابکار" دوام دی پر تسبیح او حمد في جمیع الاوقات بناء پر دې چې مراد له ابکار څخه اول د ورځې دی تر نصف النهار پوري او له عشي څخه مراد له نصف النهار څخه نیولې بیا تر اول د النهار د یوم ثاني فیدخل فیه کل الاوقات انتهی، او مظهري ترجمه داسي کړې ده ای صل شاکرًا لربک یعني که فرض وي او که نفل (یعني من قبیل ذکر الجزء چې تسبیح او حمد دی وارادة الکل چې لمونځ دی لان الصلوة مشتملة علی التسبیح والحمد) او الحسن وایي چې مراد صلوة العصر والصبح دی (تخصیص ددې دوو لمونځو چې یې وکړی لان العصر وقت الشغل في الاسواق والصبح وقت النوم والغفلة، یا له دې سببه چې ملائکة اللیل والنهار یعني حفظة کرام په دغو دوؤ وختو کي خپله وظیفه بدلوي) او ابن عباس وایي چې مراد ځني صلوة خمسة دي، انتهی.

إِنَّ الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِ اللَّهِ بِغَيْرِ سُلْطَانٍ أَتَاهُمْ

په تحقيق هغه كسان چي ناحقي بحث كوي په آياتو كي د اللهﷻ، يعني ينكرون القرآن يعني انه ليس من عندالله بل هو متقول "بغير سلطان" بيله كم حجته او دليل څخه چي دوى ته وركړل سوى له جانبه څخه د خداى.

إِنْ فِي صُدُورِهِمْ إِلَّا كِبْرٌ

ذكر محل دى چي صدور يعني سينه مراد څني حال دى اى القلب لان محله الصدر كما قالوا في تعريف القلب انه لحم صنوبري في وسط الصدر مائل الى الجانب الايسر "الا كبر" نه دى په زړونو كي ددوى مګر كبر (نو كلمه نافيه ده)

ابن عباسؓ وايي چي دوى نه دي باعثه كړي پر تكذيب ستا يا محمدﷺ مګر هغه شي چي په زړونو كي ددوى كبر او عظمت خپل سته. ستا څخه يعني ستا له نبوته انكار كوي له دې سببه چي دوى خپل ځانونه ستا له اتباع څخه شيطان په خيال لوړ وركړي دي.

مَّا هُم بِبَالِغِيهِ ۚ فَاسْتَعِذْ بِاللَّهِ ۖ إِنَّهُ هُوَ السَّمِيعُ الْبَصِيرُ ﴿٥٦﴾

مجاهدؒ وايي چي دوى و مقتضىٰ ته خپل د كبر نه سي رسېدلاى لان اللهﷻ يذلهم، دوى ذليلوي او تاته پر دوى نصرت دركوي، او ابن قتيبة وايي ان في صدورهم الا كبر على محمدﷺ وطمع في ان يغلبوه وماهم ببالغي ذالك الكبر ومآل التفسيرين واحد "فاستعذ بالله" نو ته پناه وغواړه له خداىؐ څخه له شره ددوى (يعني استعيذك اى بك من شرور هؤلاء المتكبرين علي "انه هو السميع البصير" په تحقيق خداىؐ خبر دى په اقوالو او افعالو سره ددوى، ابن ابى حاتم له ابى العاليةؒ څخه روايت كړى دى چي يهودان و عليه الصلوة والسلام ته راغله، نو بيان د دجال يې وكړى او و يې ويل چي دجال به زموږ له قوم څخه وي چي په اخيره زمانه كي به ظهور كوي او داسي او هسي كارنامې به اجراء كړي فانزل الله تعالى "ان الذين يجادلون" الى اخير الآية، فقال رسول اللهﷺ من جانب الله ان يتعوذوا من فتنة الدجال.

**درويش وايي:** چي نزول ددې آيت په باره كي د لعين دجال مظهريؒ په اوراقو راوړى دى كما هو دأبه، او روح البيان په اختصار سره دا قصه د دجال لعين راوړې

ده په عبارت د قیل، او تفسیر حسیني په بسط سره راوړې ده، او روح المعاني وايي چي اصح داده چي دا آيت نازل سوی دی په مشرکانو کي د مکې، يو دليل دادی چي دا سورت مکي دی که د یهودانو او دجال قصه وايي نو هغه په مدينه کي منځ ته راغلې ده، نو بايد مدني وي، نو پر دې تقدير چي په مشرکانو کي د مکې نازل سوی وي حاصل د آيت دادی چي د مکې د مشرکانو په زړونو کي کبر دی، دوی دا غواړي چي نبوت دي زموږ وای حسدًا و بغيًا کما يدل قوله تعالی في شانهم "لو لا نزل هذا القرآن علی رجل من القريتين عظيم" ددوی مراد په مکه کي مريد بن مغيرة وُ چي هغه مشر سړی وُ او ډېر سرمايه دار وُ، او په طائف کي عروة بن مسعود الثقفي وُ چي هغه د طائف سرمايه دار مشر سړی وُ، او دا آيت هم پر دې دلالت کوي چي مکي والا وه يعني قالوا لو کان (ای القرآن والتوحيد) خيرًا ما سبقونا اليه (يعني د محمد او دده د تابعانو په وړاندي والی نه وای کړی تر موږ و هغه ته) نو پر دې معنی د ماهم ببالغيه چي صفت د کبرؤ داده چي دوی نسي رسېدلای موجب ته د کبر چي د دوی ورته اراده وه چي دفع د آياتو قرآنيه به وکړو، يا به رياست پيدا کړو يا به نبوت موږ ته ورسېږي ...ع: اين خيال است و محال است و جنون

او زجاج وايي: ما يحملهم علی تکذيبک الا مافي صدورهم من الکبر عليک وماهم ببالغي مقتضی الکبر لان الله تعالی اذلهم، وروسته روح المعاني ويلي دي چي پر تقدير ددوی چي دا آيت په یهودانو کي نازل دی او مدني هم دی نو د یهودانو مقصد دا وُ چي ته يا محمد ﷺ هغه څوک نه يې چي موږ يې انتظار کاوه بلکي زموږ صاحب المسيح بن داؤد دی، ددوی مراد دجال وُ دوی و عليه الصلوة والسلام ته وويل چي الميسح بن داؤد سلطنت به بر او بحر ته ورسېږي او دده په امر به ويالې بهېږي، وهو آية من آيات الله فيرجع الينا (ای اليهود) الملک، ددې حکايت صاحب کشاف کړی دی، وروسته صاحب کشاف ويلي دي فسمی الله تمنيهم ذالک کبرًا، ونفي سبحانه تعالی ان يبلغوا تمناهم نو ددوی غرض په تعظيم کي د دجال دا وُ چي نفي دوی وکړې چي ته هغه نبي مبعوث في اخير الزمان چي زموږ انبياؤ موږ ته زېری راکړی دی نه يې، بلکي مبشر به المسيح بن داؤد دی يعني دجال عليه اللعنة.

لَخَلْقُ السَّمٰوٰتِ وَالْأَرْضِ أَكْبَرُ مِنْ خَلْقِ النَّاسِ وَلٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَعْلَمُونَ ﴿۵۷﴾

هرو مرو پيدا کول د اسمانو او د مځکې ډېر لوی دی تر پيدائښت د خلګو، خو ډېر د خلګو نه پوهېږي، نو چې پر دې کار باندي قدرت ثابت سو، نو پر کوچني کار خو په درجه اولی ثابت دی او دا دليل د ثبوت لپاره کافي دی، خو اکثره خلګ نه پوهېږي په دومره خبره ولي چي دوی غور نه کوي، خو ځيني داسي کسان هم سته چي غور او فکر خو کوي او پوهېږي هم او دا مني هم، نو پر دې ترتيب د قرآن کريم د اورېدونکو دوه قسمونه سوه، يو په قرآن پوهېدونکي او منونکي چي دې ته صاحب بصيرت او ايمان وايي، دويم نه پوهېدونکي او نه منونکي دا په مثل د ړندو او بد عملو دي.

وَمَا يَسْتَوِي الْأَعْمَىٰ وَالْبَصِيرُ وَالَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ وَلَا الْمُسِيءُ

نه دي سره برابر ړوند او ليدونکی، او داغه رنګه نه دي سره برابر هغه کسان چي ايمان يې راوړی وي او اعمال صالح يې کړي وي او مسئ يعني بد. والحاصل چي دوی نه دي سره برابر نو بايد دوی لره دا امتياز ځای وي، دوی لره بايد د تفاوت ځای وي چي دوی پکښي اوسېږي ولا تفاوت لهما في الدنيا فهو بعد الموت والبعث.

**سوال:** په ولا المسيئ کي يې لا ولي زيات کړی؟

**ځواب:** د ذکير د نفي سابق، ولي چي د نفي سابق او د مسئ تر منځ فصل په صله د الذين وعملوا الصالحات راغلی دی.

**سوال:** په ماقبل کي يې اعمٰی تر بصير دمخه کړی وُ، په وروسته آيت کي الذين آمنوا وعملو الصالحات دمخه کړی؟

**ځواب:** په سبب د مجاورة د البصير وهو من باب التفنن في العبارة الذي هو باب من البلاغة.

**سوال:** الذين آمنوا و عملوا الصالحات يې په صيغه د جمع راوړی او مسئ يې مفرد راوړی؟

**ځواب:** له مسئ څخه جنس مسئ مراد دی (نو الف لام د المسيئ لپاره د جنس دی)

**پوښتنه:** مراد له اعمٰی او مسيئ څخه خو يوه ډله ده چي کافران دي، او مراد له بصير او د الذين آمنوا آه څخه خو مؤمنان دي، نو د عطف څه فائده ده يعني چي يو

يو مقابل يې سره راوړي واى، يا بصير او اعمٰى يې راوړى واى او يا الذين آمنوا و عملوا الصالحات او مسيئ يې سره راوړي واى كافي به نه واى؟

**ځواب:** عطف يې په اعتبار د تغاير الوصفين دى، نحو زيد مسيئ الاخلاق وجواد، وعمرو حسن الاخلاق وبخيل، لان المقصود في الاولين اى العمى والبصيرة العلم لان العمى بالمعنى المذكور والبصيرة من صفات القلب، او مسيئ او الذين و عملوا الصالحات من اعمال الجوارح وهي الاعضاء والقلب، والحاصل ان الاعمٰى والمسئ لائق د حقارت او ذلت دي، والبصير والذين آمنوا و عملو الصالحات لائق د احسان دي، وهذا التفاوت يظهر في دار الآخرة يجر الاعمٰى والمسيئ الى النار دار البوار، والبصير والذين آمنوا وعملوا الصالحات ينقلون الى الجنة دار القرار.

**درويش وايي:** چي دا ؤ تحقيق د دې آيت حسب الوسع والطاقة والعلم عند الله.

قَلِيلًا مَّا تَتَذَكَّرُونَ ﴿٥٨﴾

اى زمانًا قليلاً، نو نصب يې بناء پر ظرفيت دى د تذكرون، يا معنى داده تذكرًا قليلاً نو نصب يې مبني دى چي مفعول مطلق دى.

إِنَّ السَّاعَةَ لَآتِيَةٌ لَّا رَيْبَ فِيهَا وَلَٰكِنَّ أَكْثَرَ النَّاسِ لَا يُؤْمِنُونَ ﴿٥٩﴾

په تحقيق قيامت راتلونكى دى (ساعة د قيامت له نومانو څخه يو نوم دى) ددې حكمت الهي لپاره چي د محسن او مسئ، كافر او مسلمان فرق وكړل سي ولي چي په دنيا كي هر چا ځان پر حق دين باله "لاريب فيها" هيڅ شک نسته په راتلو كي، ولي چي محال ده چي د يو شي اخبار چي خداى وكړى له هغه څخه دي خلاف وكړل سي.

"ولكن اكثر الناس لايؤمنون" لكن ډېر د خلكو پر راتګ د قيامت ايمان نه لري، كريمه: ان هى الا حيوة الدنيا نموت ونحيا.

وَقَالَ رَبُّكُمُ ادْعُونِي أَسْتَجِبْ لَكُمْ ۚ إِنَّ الَّذِينَ يَسْتَكْبِرُونَ عَنْ عِبَادَتِي سَيَدْخُلُونَ جَهَنَّمَ دَاخِرِينَ ﴿٦٠﴾

او وايي رب ستاسي چي ما وبلئ (يعني زما څخه غوښتنه كوئ) زه به ستاسي استجاب وكړم، په تحقيق هغه كسان چي تكبر كوي زما له عبادت څخه، نو ژر دى چي زه به داخل كړم دوى جهنم ته ذليل سوي.

**فائده:** بعض صوفيان وايي چي ترک د دعاء افضل دی دديږ سببه چي تسليم و قضا ته د خدای ښه کار دی. او هم دوی وايي چي دعاء و مسلمانانو ته ښه کار دی لکه د باران غوښتنه يا يو مصيبت پر مسلمانانو د کفارو له لاسه مسلط وي د هغه مصيبت دفع غوښتل، او که خالص د خپل ځان لپاره يې خواست کاوه هغه ښه کار نه دی لکه يو سړی چي ناجوړی وي خواست کوي چي خدايه ما جوړ کړې لکن دا خبره د صوفيانو مخالفه ده له کتاب الله څخه او له سنت نبوي څخه او له اجماع څخه د امت مرحومه.

احاديث نبوية في باب الدعاء (۱) له ابو هريره رضي الله عنه څخه روايت دی قال قال رسول الله ﷺ ليس شيئ اكرم على الله من الدعاء، رواه الترمذي وقال حسن غريب (۲) وعن انس رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ الدعاء مخ العبادة رواه الترمذي (۳) وعن ابن مسعود رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ: سلو الله من فضله فان لله ان يسئل (د خدای دا خوښه ده چي له ده څخه سوال وکړل سي) وافضل العبادة انتظار الفرج (او افضل د عبادت ای الدعاء انتظار دی د قبلېدو د سوال يعني ډېر تلوار دی په اجابت کي د سوال نه کوي، ولي چي قضاء الحاجت د رب العزة ده خو امر مربوط په خپل وخت پوري دی) رواه الترمذي (۴) وعن ابی هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ من لم يسأل الله يغضب عليه (والمراد في هذا الحديث انه من لم يسئل الله استكباراً غضب عليه، كريمه: ان الذين يستكبرون عبادتي سيدخلون جهنم داخرين.

**يوه سه:** چي دمخه تېره سوه چي د عبادت او د دعاء معنی يوه ده، فلا يرد ان المذكورة في الآية المتلوة العبادة دون الدعاء فلا يتم الدليل على الدعى المذكورة بهذه الآية فافهم (۵) له انس رضي الله عنه څخه روايت دی قال قال رسول الله ﷺ لا تعجزوا في الدعاء (ای عن الدعاء) فانه لن يهلک مع الدعاء احد، رواه ابن حبان والحاكم (۶) وعن ابی هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ الدعاء سلاح المؤمن وعماد الدين (ستن يا تنبه د دين ده) ونور السموات والارض، رواه الحاكم في المستدرک (۷) وعن ابن عمر رضي الله عنهما قال قال رسول الله ﷺ من فتح له منكم باب الدعاء (كه چا ته خلاصه سوه دروازه د دعاء يعني دعاء او خواستونه يې و خدای ته ډېر كول) فتح له ابواب الرحمة وقال سئل الله شيئاً احب اليه (يعني خدای ته) من ان يسئل الله العافية (ولي چي

عافيت عام او شامل لفظ دی د دنيا او اخرت سلامتيا لره) رواه الترمذي وفي رواية الحاكم في المستدرک فتحت له ابواب الجنة.

**فائده:** هغه حديثونه چي خدای وعده د قبلېدو د دعاء کړې ده (۱) يو خو هغه حديث د ابن عمرؓ دی چي آنفًا تېر سو.

(۲) وعن سلمان الفارسيؓ قال قال رسول اللهﷺ ان ربكم حيي كريم يستحيي من عبده اذا رفع يديه اليه ان يردهما صفرًا (يعني خالي له اجابت او رحمت څخه) رواه الترمذي و ابو داوٗد والبيهقي في الدعوات الكبير.

(۳) عن ابی سعيد الخدريؓ ان النبيﷺ قال ما من مسلم يدعو بدعوة ليس فيها اثم (چي ګناه نه وي پکښې لکه د حرام شي خواست کول) ولا قطيعة رحم (نه قطع د صله رحمي پکښې وي لکه يو څوک چي وايي چي مثلاً زما پر ورور ستا غضب نازل کړه) الا اعطاه الله بها (په هغه دعوت سره) احدی ثلاث (يو له درو خصلتو څخه) اما ان يجعل له دعوته (يا به ژر ورکړي هغه شی چي ده يې غوښتنه کړې وه) واما ان يدخرها له في الآخرة (يا به يې ثواب ذخيره کړي ده له په ورځ د اخيرت کي يعني ثواب او عوض بې هورې ورکړي) واما ان يصرف الله عنه من السوء مثلها (يعني يو ضرر چي ده ته متوجه وي هغه به ځني دفع کړي په سبب د دعاء د ده که څه هم عين مطلوب دده ور نه کړي) قالوا (ای الصحابةؓ) اذًا نكثر (موږ به هم دعاوي ډېري کوو) قالﷺ الله اكثر (د خدای ﷻ فضل او رحم هم ډېر دی) رواه احمد.

(۴) عن ابی هريرةؓ قال قال رسول اللهﷺ يستجاب للعبد مالم يدع باثم او قطيعة رحم (دروېش وايي: چي د دوارو مثال په ترجمه کي د حديث د ابی سعيد الخدريؓ تېر سو) مالم يستعجل (چي دعاء کونکی تلوار ونه کړي) قالوا يا رسول اللهﷺ ما الاستعجال؟ (د استعجال معنی څه ده) قالﷺ يقول قد دعوت وقد دعوت فلم ار يستجاب لي فيستحسر عند ذالک ويدع الدعاء (استعجال دادی چي داعي وايي چي ما يوه پلا دعاء وکړه بيا دي دعاء وکړه يعني د يو شي معين نو ما نه وليدی چي زما خواست خدای قبول کړی، نو دي باره ستړی سي له دعاء څخه ذی دعاء پرېږدي، رواه مسلم.

(۵) عن جابرؓ قال قال رسول اللهﷺ ما من احد (كلمه د من لپاره د استغراق

ده) يدعو بدعاء الا آتاه الله ما سئل او كف عنه من السوء مثله ما لم يدع باثم او قطيعة رحم، رواه الترمذي.

(٦) وعن ابن عمرؓ قال قال رسول اللهﷺ ان الدعاء ينفع مما نزل (يعني چي يو آفت يا مرض پر داعي نازل وي يعني هغه څني دفع کړي) ومما لم ينزل (چي يو آفت چي و داعي ته متوجه وي يعني هغه څني دفع کړي) فعليكم عباد الله بالدعاء (يعني پر تاسي لازم ده اى بندګانو د خداى دعاء کول) رواه الترمذي.

**فائده:** د څو کسانو خواست خداى عزوجل قبلوي، (۱) عن ابى هريرةؓ ده وويل قال رسول اللهﷺ درې خواستونه مستجابات لاشک فيهن (د خداىؒ په دربار کي قبول دي هيڅ شک نسته پکښي، دعوة الوالد (والد مور او پلار ته وايي، يعني ولد ته دعاء وکړي، ولد هم نر او ښځي دواړو ته وايي) ودعوة المسافر، او بله دعاء د مسافر چي يو چاته يې وکړي، ودعوة المظلوم، او بل خواست دى د هغه چا چي پر ده ظلم کړل سوى وي د يو چا له خوا څخه يعني چي ظالم ته ښېرا وکړي، رواه الترمذي و ابو داؤد و ابن ماجة.

(۲) او هم د ابو هريرةؓ څخه روايت دى چي ده وويل قال رسول اللهﷺ ثلاثة لايرد دعوتهم (۱) الصائم حين يفطر، روژياتي په دغه وخت کي چي روژه ماتوي او دعاء وکړي (۲) والامام العادل بادشاه چي عادل وي.

**درويش وايي:** چي په اوسني زمانه کي يعني (۱۴۳۲ھ) نوم دى الا ما شاء الله ودعوة المظلوم (مظلومان په نني زمانه کي ډېرخي ډېر دي يا د حکومت له خوا څخه يا د رعيتو له خوا څخه لکه سارقان ډنډه ماران اغوا کونکي وغير ذالک) (۳) عليه الصلوة والسلام زياته کړه چي ښېرا د مظلوم خداى پورته کوي لوړ تر وريځي ويفتح لها ابواب السماء (دروازې د اوو اسمانو، او خداىؒ و مظلوم ته وايي چي زه به ستا کومک کوم که څه هم بعد حين، يعني ستا کسات به له ظالمه اخلم که څه هم تر يو وخته پوري وځنډېږي، رواه الترمذي.

(۳) وعن ابى الدرداءؓ قال قال رسول اللهﷺ دعوة المرء المسلم لاخيه بظهر الغيب (پس شا يعني مخامخ نه وي، تا چي د چاپلوسى له جهته نه وي) مستجابة (قبوله ده) او هغه ملکي چي د دعاء کونکي سره ورسره دي هغه وايي آمين ولک بمثله (تا لره دي په مثل د ورور غائب د دعاء) رواه مسلم.

(۴) له ابن عباس رضي الله عنه څخه روايت دی چي هغه روايت کړی دی له نبي کريم ﷺ څخه چي پنځه خواستونه قبلېږي (۱) دعوة المظلوم حتى ينتصر (چي کسات يې څېژي) (۲) و دعوة الحاج حتى يصدر (چي دی رجوع کوي د کور پر خوا) (۳) دعوة المريض حتى يبرء (چي جوړ پېږي) (۴) و دعوة الاخ لاخيه بظهر الغيب.

**درويش وايي**: چي مراد له اخ څخه عام دی که نسبي وي او که ديني وي. (۵) ثم قال و اسرع الدعاء اجابة دعوة الغائب للغائب، رواه الترمذي و ابو داؤد.

فصل مهم في شرائط استجابة الدعاء.

منها: التجنب، پرهېز کول د حرام څخه د خورک په شي او څيښک په شي کي يعني د غلا مال به نه خوري يا شراب به نه څيښني او په کسب کي د خيانت مال يا حرامو تجارتو مال به نه خوري بلکي کسب به يې د شرائطو سره د فقهاء رحمهم الله برابر وي يعني کسب او تجارت به يې پر اسلامي معيار برابر وي.

**درويش وايي**: چي په اوسني زمانه کي هيڅ تجارت پر شرعي معيار نه دی الا ما شذ وندر، عن ابی هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ان الرجل يطيل السفر، ډېر سفر کوي، اشعث يبر سر به يې وي، اعبز، پښې به يې سپېرې وي، يمد يديه الى السماء، لاسونه به يې د اسمان پر خوا نيولي وي يعني خواست به کوي يا رب يا رب وايي، و مطعمه حرام د خوراک شی به يې حرام وي، وشربه حرام وملبسه حرام کالي د اغوستلو به يې حرام وي، و غذی بالحرام نفقه به يې حرامه وي، فانی يستجاب له؟ د ده دعاء به چېري قبلېږي، رواه مسلم.

ومنها: حضور القلب عند الدعاء عن ابی هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ ادعوا الله وانتم موقنون بالاجابة، تاسي خدای ج ته خواست کوئ په داسي حال کي چي ستاسي دي يقين وي په قبلېدو کي، ولي چي قادر پر هر شي او رحيم او کريم دی. واعلموا ان الله لايستجيب الدعاء من قلب لاه، يعني چي غافله وي، رواه الترمذي.

ومنها: الجد في الدعاء عن ابی هريرة رضي الله عنه قال قال رسول الله ﷺ اذا دعا احدكم فلا يقل اغفرلي ان شئت ولكن ليغرم، يعني په ډېر عجز او رغبت تامه دي خدای ج ته طلب فان الله لايتعاظمه شيئ عطاه پر خدای ج باندي درونډ نه تمامېږي يو شی چي چاته يې ورکوي، رواه مسلم.

**فائدة عظيمة:** په باره کې د سنت او په طريقه د اداب د دعـاء: عـن فضالة بن عبيد ﷺ قال بينما رسول الله ﷺ قاعداً (په دې دوران کې چې عليه الصلوة والسلام ناست ؤ، يو سړي راغلی لمونځ يې وکړی) وروسته يې وويل اللهم اغفرلي وارحمني، نو رسول الله ﷺ ورته وويل عجلت ايها المصلي (تلوار دې وکړی ای لمونځ کونکې، او ورته زياته يې کړه چې لمونځ دې وکړی او کښېنستې فاحمد الله بما هو اهله، وصل علي (او حمد د خدای ج ووايې پر داسې طريقه چې دی اهل دی او درود پر ما ووايه بيا دعاء وکړه، وروسته يو بل سړی راغلی، هغه چې لمونځ وکړی هغه حمد د خدای ج ووايه او درود يې پر عليه الصلوة والسلام ووايه، عليه الصلوة والسلام ورته وويل ايها المصلي ادع تجب (خواست وکړه چې خدای ﷻ يې قبلوي) رواه الترمذي، او له ابن مسعود ﷺ څخه هم ورته روايت موجود دی، په هغه کې دا قدر زيادت دی چې نبي ﷺ او ابوبکر او عمر ﷺ هم ورسره ناست وه.

وعن عمر بن الخطاب ﷺ ان الدعاء بين السماء والارض (يعني د قبول ځای ته چې اسمان دی نه پورته کېږي) لا يصعد منه شيئ حتى تصلي على نبيک، رواه الترمذي، وعن مالک بن يسار ﷺ قال قال رسول الله ﷺ اذا سئلتم الله فاسئلوه ببطون اكفكم (يعني د لاس په ورغوو سره) ولا تسئلوه بظهورها (او سوال مه کوئ له خدايه څخه د لاسو په شا) او ابن عباس ﷺ په دغه حديث کې زياته کړې ده، فاذا فرغتم فامسحوا بها وجوهكم (چې له دعاء څخه فارغه سو لاست بيا لاسونه پر مخ تېر کړئ) رواه ابو داؤد، وله حضرت عمر ﷺ څخه روايت دی چې عليه الصلوة والسلام به په دعاء لاسونه پورته کړي وه، کښېنته يې نه ايله کول تر هغو چې دواړه به يې پر مخ مبارک تېر نه کړه، رواه الترمذي، وعن عائشة ﷺ كان رسول الله ﷺ يستحب (خوښوی يې) الجوامع من الدعاء (مثلا اللهم اغفرلنا وللمؤمنين والمؤمنات وامثالها) ويدع ما سوى ذالک، رواه ابود داؤد. وعن انس ﷺ قال كان رسول الله ﷺ يرفع يديه في الدعاء حتى يرى بياض ابطيه (يعني عليه الصلوة والسلام چې به لاسونه پورته کړه په دعاء کې دومره به يې لاسونه لوړ و نيول چې سپين والی د تخرګو به يې ښکاره سو يعني چې قميص به يې نه ؤ اغوستی) وعن ابی بن كعب ﷺ ان رسول الله ﷺ اذا ذكر احداً فدعاه بدء بنفسه مثلاً اللهم اغفرلي ولفلان، وعن ابن عمر ﷺ انه يقول ان رفعكم ايديكم يعني في

الدعاء بدعة (يعني چي بعض خلکو به لاسونه تر سر لوړ نيول) ما زاد رسول اللهﷺ على هذا اعني الصدر، رواه احمد.

**سوال:** د انس رضی الله عنه په حديث کي تيره سوه چي رسول اللهﷺ به دومره لاسونه پورته کول په دعاء کي چي سپين والی آه، نو دا به تر ځيګر لوړ نه وه؟

**ځواب:** دا په حالاتو کي د استغراق د رسول اللهﷺ فرق دی يعني عمومي رفع اليدين د رسول اللهﷺ تر صدر پوري وه او په حال کي د استغراق في حب الله ځني لوړ سوه كما جاء في حديث انس رضی الله عنه.

**مسئله:** سنت په دعاء کي دا دی چي دواړه لاسونه دي پورته کوي او په منځ کي د دواړو لاسو دي فرجه وي وان قلت او يو لاس پر بل ايښول مكروه دی، او که چيري عذر وي او يا د بريخ وي فالاشارة بالمسبحة قائم مقام بسط اليدين.

اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الَّيْلَ لِتَسْكُنُوْا فِيْهِ وَالنَّهَارَ مُبْصِرًا ؕ

خدای ﷻ هغه ذات دی چي پيدا کړي يې ده تاسي لره شپه (نو جعل په معنی د خلق دی) تاچي تاسي ارام وکړئ په شپه کي، يعني په خوب سره او د ورځي د ستړيا ځخه ستړيخ سئ، دا بناء پر اغلب حالاتو د انسانانو دی نو دا سوال نه وارديږي چي په ډېرو ګرمو وطنو کي خلک د شپې کارونه او کسبونه کوي د ورځي استراحت کوي.

**پوښتنه:** چي مبصر خو صيغه د اسم فاعل ده نو ورځ خو ليدونکی نه ده؟

**ځواب:** نعم لکن اسناد د ابصار و ورځ ته مجاز دی مبالغةً والاصل والنهار مبصر فيه فتامل.

اِنَّ اللّٰهَ لَذُوْ فَضْلٍ عَلَى النَّاسِ وَلٰكِنَّ اَكْثَرَ النَّاسِ لَا يَشْكُرُوْنَ ۝

خاوند د لوی فضل دی (فالتنوين چي فضل للتعظيم) پر خلکو چي ددوی حاجاتو مراعات يې ساتلی دی (كما في خلق الليل والنهار) لکن ډېر کسان چي کافران دي شکر د نعمتو د خدای ﷻ نه وايي، ولي دوی منعم حقيقي نه پېژني حيث جعلوا له شركاء من الاصنام وهذا غاية الغفلة والجهل بالله.

**پوښتنه:** چي د ناس لفظ يې په دې آيت کي مکرر راوړی حکمت يې څه دی؟

**ځواب:** حکمت يې دا دی چي تخصيص راسي د کفران النعمة په اکثر الناس

پوري چي کافران دي، ولي چي مؤمنان شکر د نعمت د خدای ﷻ وايي ليعلمهم بان المنعم الحقيقي هو الله تعالى....ع: من از تو بدانم نه از عمر وزيد
**فائده:** دا جمله په معنی کي يعني که يې څه هم حرف عطف نه دی راوړی متصله په هغه آيت پوري هو الذي يريكم آياته الخ.

ذٰلِكُمُ اللّٰهُ رَبُّكُمْ خَالِقُ كُلِّ شَيْءٍ ۘ لَآ اِلٰهَ اِلَّا هُوَ ۚ فَاَنّٰى تُؤْفَكُوْنَ ۝

من الجواهر والاعراض وافعال العباد، دغه موصوف ذات په مذکوره افعالو سره چي مقتضي د الوهيت او ربوبيت دي، ذالکم مبتداء ده او لفظ الله يې خبر دی، ربکم يې خبر آخر دی، خالق کل شيئ يې خبر دی، نسته معبود بالحق ماسوی دده څخه ولي چي هيڅ څوک موصوف په دغو صفاتو سره چي مقتضی د الوهيت نسته نه په اسمانو کي او نه په مځکه کي "فانی تؤفکون" نو څرنګه (نو "انی" په معنی د کيف دی) تاسي مصروف سواست له عبادت څخه دده ذات والاصفات و عبادت ته د غير دده چي بتان دي يا ملکي دي.

كَذٰلِكَ يُؤْفَكُ الَّذِيْنَ كَانُوْا بِاٰيٰتِ اللّٰهِ يَجْحَدُوْنَ ۝

(کذالک، يعني کما افک کفار مکة) مصروف وه هغه کسان (يعني په امم ماضيه ؤ کي وه) او له اياتو څخه د خدای ج يې انکار کاوه (بلا حجت).

اَللّٰهُ الَّذِيْ جَعَلَ لَكُمُ الْاَرْضَ قَرَارًا وَّالسَّمَآءَ بِنَآءً

خدای ګرځولي ده مځکه (مفعول اول دی د جعل) قرارًا مصدر دی په معنی د مستقر دی (مفعول ثاني دی د جعل) او اسمان يې ګرځولی دی بام (اعراب يې پر هغه ډول دی لکه الارض قرارًا)
**پوه سه:** چي دا دويم دليل دی په نورو افعالو سره چي خاص په خدای ﷻ پوري دی.

وَّصَوَّرَكُمْ فَاَحْسَنَ صُوَرَكُمْ

(وصورکم) تاسي ته ای انسانانو خدای ج صورتونه درکړي دي، نو ډېر ښه صورت يې درکړی دی چي په بنی جنس کي د حيوان تر ټولو ښه صورت دی چي قد او قامت يې مستقيم دی چي د حيواناتو پر قد بالا دی، البشرة چي پوست مو په

وېښتانو پټ نه دی لکه د نورو حيواناتو، متناسب الاعضاء چې اعضاء د بدن مو وضع لائقه دي او د صنائع قدرت خدای ج درکړی دی لکه بنايي، مس ګري، زرګري وغيرها او خدای ج تاسي ته کسب د کمالاتو دينيه ؤ او دنيويه ؤ لکه علوم مختلفه النقلية والعقلية او د طياراتو او مېزائلو او نورو جنګي او نقلي آلاتو، ابن عباس رض وايي چې ابن آدم قائم دی (کمامر) معتدل الاعضاء دی، خوړک کوي او شی را اخلي په لاس، او نور حيوانات په خوله شی را اخلي، قال الله تعالى في موضع اخر: لقد خلقنا الانسان في احسن تقويم، صائب چې يو اديب شاعر د فارسي ژبې دی، داسي خواږه ابيات په شان کي د انسان ويلي دي:

اثار چار دفتر ومضون نه کتاب .... درنقطهٔ تو ساخته ايزد نهان همه

وزبهر خدمت تو فلکها چو بندگان .... ز اخلاص بسته اند کمر بوميان همه

پيش تو سر بخاک مذلت نهاده اند .... با آن علوم ومرتبه روحانيان همه

وَرَزَقَكُم مِّنَ الطَّيِّبَٰتِ ۚ ذَٰلِكُمُ اللَّهُ رَبُّكُمْ ۖ فَتَبَارَكَ اللَّهُ رَبُّ الْعَٰلَمِينَ ﴿٦٤﴾

تاسي ته يې په رزق درکړي خدای ج دا د لذيذو او خوندورو خوړو څخه.

**فائده:** لفظ الله مبتداء ده او مصول سره د صله يې خبر دی يعني الذي جعل لکم آه يې خبر دی، هذه الجملة مقررة للجملة السابقة.

**پوه سه:** چې (تبارک) لفظ ماضي دی ای علا رتبة الله چې رب او مالک تربيه کونکی دی د ټولو عالميانو، ولي چې ټوله ماسوى الله ذات اقدس ته دده محتاجه دي، او پاک ذات واجب الوجود دی منزه د فناء او عدم څخه دی.

هُوَ الْحَيُّ لَا إِلَٰهَ إِلَّا هُوَ فَادْعُوهُ مُخْلِصِينَ لَهُ الدِّينَ ۗ

هغه ژوندی دی دائم الحيوة دی باقتضاء ذاته الوجود، نسته معبود بالحق بېله ده (دا کلمه خبر د وهم دی د هو) تاسي عبادت دده کوئ او سوال د خپلو حاجاتو دده څخه کوئ، او خالص کړخوئ ده لره عبادت من الشرک والرياء کمامر آنفا.

**فائده:** کلمه د فاء لپاره د سببيت ده ولي ما ذکر من صفاته عزوجل موجبات دي د عبادت دده من دون شرک غيره جليا کان او خفيا ای الرياء.

اَلْحَمْدُ لِلَّهِ رَبِّ الْعَٰلَمِينَ ﴿٦٥﴾

جمله ثناء ؤ صفت خدای لره دي، بعض مفسرين وايي چې دد آيت معنی په

حذف د قول داده ای قابلين هذا القول، نو دا جمله هم حال ده لکه مخلصين له الدين د نادعوه، او فراء نحوي رح وايي چي ددې آيت سره امر مضمر دی من قال لا اله الا الله وروسته دې وايي الحمد لله رب العالمين يعني پر نعمت د ايمان دې حمد ووايي.

**پوه سه:** چي جوير رح له ابن عباس رض څخه داسي روايت کړی دی چي وليد بن المغيرة او شيبة بن ربيعة و آنحضرت ﷺ ته وويل يا محمد ارجع الى دين ابائک و اجدادک يعني بتانو ته سجده کوه. فانزل الله تعالى:

قُلْ اِنِّیْ نُهِیْتُ اَنْ اَعْبُدَ الَّذِیْنَ تَدْعُوْنَ مِنْ دُوْنِ اللّٰهِ

ته ورته ووايه چي زه نهي کړل سوی يم له جانبه د خدای ج چي عبادت وکړم چي تاسي يې عبادت کوئ ماسوی د خدای ج څخه يعني الاصنام.

لَمَّا جَآءَنِیَ الْبَیِّنٰتُ مِنْ رَّبِّیْ٘ وَ اُمِرْتُ اَنْ اُسْلِمَ لِرَبِّ الْعٰلَمِیْنَ ﴿۶۶﴾

هر کله چي راغلي يعني حجج او دلائل واضح چي قوي دي، نقليه چي قرآن کريم دی او عقليه چي نهي کونکی دی د عبادت څخه د بتانو چي دا بتان که يې څوک عبادت وکړي نفع يې نه ور رسېږي او که يې نه وکړي ضرر يې نه ور رسېږي لانها جمادات، او ماته امر سوی دی چي زه عبادت خالص وګرځوم و رب العالمين ته، چي دليل يې دادی.

هُوَ الَّذِیْ خَلَقَكُمْ مِّنْ تُرَابٍ ثُمَّ مِنْ نُّطْفَةٍ ثُمَّ مِنْ عَلَقَةٍ

تاسي جوړ کړل سوي ياست له خاورو څخه ای في ضمن خلق آدم من تراب، بيا له نطفې څخه يعني اولاد دده، بيا د ټوټې ټوټې وينو څخه

ثُمَّ یُخْرِجُكُمْ طِفْلًا ثُمَّ لِتَبْلُغُوْۤا اَشُدَّكُمْ ثُمَّ لِتَكُوْنُوْا شُیُوْخًا ۚ

(طفلا) ای اطفالا، بيا چي وګرځي سپين ږيري.

**سوال:** خبره خو د ډېري سره وه، نو طفلا يې ولي مفرد راوړی؟

**ځواب:** له طفل څخه مراد جنس دی چي يوه او ډېرو ته شامل دی يا په تأويل د کلو احد تاچي ورسېږي و زمانې ته د غاية قوة ډېرش يا پنځه ډېرش کاله.

وَ مِنْكُمْ مَّنْ یُّتَوَفّٰى مِنْ قَبْلُ وَ لِتَبْلُغُوْۤا اَجَلًا مُّسَمًّى وَّ لَعَلَّكُمْ تَعْقِلُوْنَ ﴿۶۷﴾

او بعض له تاسي څخه مري د مخه تر زمانې د اشد يا د شيخوخة (ولتبلغوا)

يعني دا دوې د عمر جاري به وي تاچي تاسي ورسېږي هغه وخت معين ته چي تر هغه نسي تېرېداى، والمراد اجل الحيوة "ولعلكم تعقلون" شايد تاسي ته به ددې دوراتو متالية ؤ څخه دلائل د قدرت د خداى ج حاصل سي او عبرت به واخلئ او خداى ج به په وحدانيت وپېژنئ.

هُوَ الَّذِي يُحْيِي وَيُمِيتُ ۖ فَإِذَا قَضَىٰ أَمْرًا فَإِنَّمَا يَقُولُ لَهُ كُن فَيَكُونُ ﴿٦٨﴾

او خداى ج هغه ذات مقتدر دى چي څوک ژوندى كوي په رحم كي د مور او څوک وژني په عند انقضاء الاجل، نو چي اراده وكړي خداى ج د يو كار (فانما يقول له كن فيكون) يعني من غير توقف على شيئ لكه د بندګانو كارونه چي پر اسبابو موقوف دي.

**پوهسه:** چي مفسرين وايي چي كن فيكون مثال د تاثير د قدرت د خداى عزوجل دى په مقدراتو كي عند تعلق ارادته بها وتصوير لسرعة ترتب المكونات على تكوينه، بېله دې چي د خداى ج له خوا دي امر وي ولي چي امر و معلوم ته خو محال دى او نه مأمور سته ولي چي مأمور هنوز په كتم العدم كي دى، او بعض مفسران وايي چي عادت د خداى ج په دې سره جاري دى چي په وخت د اردې د ايجاد د يو شي كن فيكون وايي.

**درويش وايي:** چي ددې آيت مزيد تحقيق په روح البيان كي مطالعه كړئ.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُجَادِلُونَ فِي آيَاتِ اللَّهِ أَنَّىٰ يُصْرَفُونَ ﴿٦٩﴾

ته نه ګورې يا محمد (ﷺ) يا علم نه لرې، استفهام لپاره د انكار پر حرف نفي داخل سو او نفي د نفي اثبات دى يعني ته نه ګورې يا علم لرې، چي ناحقه بحث كوي په آياتو كي د خداى ج يعني دوى وايي چي دا آيات الله چي قرآن مبارک دى من عند الله نه دى بلكې محمد (ﷺ) يې له ځانه جوړوي، او يا خلاف الرسول والمؤمنون خبري كوي د مؤمنانو په باره كي وايي ان هؤلاء لفي ضلال مبين حيث تركوا دين ابائهم بمتابعة محمد ﷺ وامثال ذالک (انى تصرفون) څرنګه مصروف سوه له حق څخه و باطل ته يعني استمروا على الاشراک، دا استفهام د توبيخ او تعجيب لپاره دى.

**فائده:** تكرير د ذم د مجادلين په دې سورة كي څلور ځايه راغلى دى، اما

لتعدد المجادل يعني ګاهي يوه ډله د مشرکانو وي ګاهي بله و هکذا يعني يكون المجادلين من اقوام مختلفة، او يا په سبب د مجال فيه يعني بعض په بعث بعد الموت کي بحث کوي او بعض په جنت او دوږخ کي بحث کوي و هکذا الى غير ذالک او يا تکرار صرف لپاره د تاکيد دی، والله اعلم.

الَّذِينَ كَذَّبُوا بِالْكِتٰبِ وَبِمَآ اَرْسَلْنَا بِهٖ رُسُلَنَا فَسَوْفَ يَعْلَمُوْنَ ۝

په حذف د مبتداء يعني هم الذين دوی يعني اصحاب د موصول اول هغه کسان دي چي دوی تکذيب کوي په کتاب سره، والمراد به القرآن او په هغه شي چي موږ را استولي په هغه رسولانو خپل، والمراد به التوحيد، نو ژر دی چي ددوی به علم راسي چي موږ پر باطل دين ؤ يعني الشرک او حق دين توحيد ؤ.

**پوه سه:** چي محمد بن سيرين رحمه الله په نقل د مظهري وايي چي آيت اولى په مشرکينو کي نازل سوی دی او دا آيت په قدريه ؤ کي نازل دی، نو مظهري د نظم څخه د قران خلاف بيان راوړی دی يعني د قدريه مذهب يې بيان کړی دی، يعني چي د قدريه مذهب دادی چي دوی له پل صراط څخه منکر دي او د ميزان څخه هم منکر دي او د شفاعت څخه هم منکر دي و غير ذالک، نو دوی مجوس دديې امت دي چي د هغو همدغه مذهب دی، يعني يکذبون ما ثبت بالکتاب والسنة چي هغه دادی چي خدای پاک خالق دی د ټولو اشياؤ من الخير والشر والجواهر والاعراض قادر على كل شيئ يغفر لمن يشاء ما يشاء من الصغائر والكبائر ويعذب من يشاء يفعل ما يشاء ويحكم ما يريد لا يجب عليه شيئ لا يسئل عما يفعل وهم يسئلون.

**درويش وايي:** چي دا ټولي خبري او بيان د مذهب د قدريه هم داغه دی لکه مظهري چي بيان کړی لکن خبره په دې کي ده چي قدريه يوه محدث ډله ده چي په وخت کي د نزول القرآن نه وه، نو څرنګه آيت د قرآن په دوی کي يې تأويل روا دی.

**سوال:** مخبر صادق ﷺ ويلي دي القدريه مجوس هذه الامة؟

**ځواب:** دا حديث خو ددې تقاضا نه کوي چي قدريه په وخت کي د نزول د قرآن کريم موجود وه بلکې دا اخبار بالغيب دی په قسم د معجزه د عليه الصلوة والسلام کما اخبر رسول الله ﷺ، کما جاء في الحديث المتفق عليه للبخاري و مسلم، وتفترق امتي على ۷۳ فرقة کلهم في النار الا الناجية، ولي دا ۷۳ ډلي خو



Scanned by CamScanner

په وخت کي د نزول القرآن موجودي نه وي كما لايخفى.

**إِذِ الْأَغْلَٰلُ فِىٓ أَعْنَٰقِهِمْ وَالسَّلَٰسِلُ يُسْحَبُونَ ۝ فِى الْحَمِيمِ**

**پوهه**: چي اغلال جمع د غل ده بالضم وهو مايقبد به هغه ځنځير ته وايي چي پر کافریې راوپیچي تو له اندامونه يې پكښي بند كړي او په غاړه كي یې ځنځير بند کړي، او اعناق جمع د عنق ده، غاړه په پښتو، گردن په فارسي چي دې مجموع ته بادشاهان ځنځير پيچ وايي، (والسلاسل) عطف على الاغلال.

**سوال**: کلمه د "اذ" لپاره د ماضي ده او يعلمون لفظًا او معنًا مستقبل ده والجمع بينهما لايجوز؟

**ځواب**: اذ وقت المسلم مستقبل دی يعني يوم القيامة تحقيقًا او ماضي دی تنزيلاً وتأويلاً، ولي چي قرآن چي په راتګ د يوم القيامة تصريح کړې ده نو لامحالة راتلونكى دى نو ګويا د ځخه دوی په خبروه، والحاصل ان سوف يعلمون بالنظر الى الاستقبال التحقيقي وكله اذ بالنظر الى المضي التأويلي فتدبر هداک الله تعالى الى درک دقائق القرآن الكريم.

**پوهه**: چي سلاسل جمع د سلسلة بالكسر، ځنځير ته وايي، او سحب په ډېر زور سره کشولو ته وايي، ځکه وريځي ته سحاب وايي ولي چي باد يې کشوي له يوه ځای ځخه و بل ځای ته (في الحميم) حميم تودو اوبو ته وايي في غاية الحرارة، او دا جمله حال ده له فاعل ځخه د يعلمون، والمعنى حال كونهم مسحوبين چي کشوي ملائكه د دوزخ پر مخانو يې ځنځيران تړلي و تودو اوبو ته چي په اور د دوزخ تودې سوي وي. داسي اوبه بې نهايت تودې وي. له دې ځخه يې تودوالى قياس کړه چي د دنيا په اور ایشول سوي اوبه څوک يې طاقت د حرارت نه لري، نو په اور د دوزخ چي د دنيا اور یې يو جزء دی، د دوزخ د اور ۷۰ جزء دي، نو هغه به څومره تودې وي؟

**سوال**: په آيت کريمه کي كلمه د في چي لپاره د ظرفيت ده نو ترجمه يې په الى وسوه حکمت د راوړلو د في ځه دی؟

**ځواب**: اشاره وه دې ته ده چي دغه تودې اوبه به چار چاپېره پر دوزخي راګرځېدلي وي لکه ظرف پر مظروف باندي.

ثُمَّ فِي النَّارِ يُسْجَرُونَ

وروسته په اور کي سوځي، قال مقاتل رح او ر په دوی سره بلول کیږي، کریمه: وقودها الناس والحجارة (له ناس څخه مراد دغه کافران دي) والمراد تعذیبهم بانواع العذاب تارة بالحمیم وتارة بالنار.

ثُمَّ قِيلَ لَهُمْ أَيْنَ مَا كُنتُمْ تُشْرِكُونَ مِن دُونِ اللَّهِ

وروسته وویل سي دوی ته یعني دوږخیانو ته پر طریقه د توبیخ او سرزنش چي چیري دي هغه شیان چي تاسي بلل شریکان د خدای په عبادت سره ماسوی له خدایه، چي مراد ځني بتان دي، یعني دا به مو هم ویل هؤلاء شفعائنا الی الله هغه اوس چیري دي.

**درویش وایي:** چي دا خبري د خدای ج به ملکي ورسره کوي لا بالذات لان کلام الله بالذات نعمة جلیلة.

قَالُوا ضَلُّوا عَنَّا

دوی وویل غائب دي دوی زموږ څخه موږ یې نه وینو.

**سوال:** په احادیثو شریفه ؤ کي راغلي دي چي کافران او د دوی اصنام به سره یو ځای وي په دوږخ کي نو دوی څرنګه وایي ضلوا عنا؟

**ځواب:** دا سوال او جواب د مخه تر دې دی چي کافران او بتان سره یو ځای کیږي یا معنی د آیت داده چي ضائع سو زموږ څخه هغه شی چي دوی یې طمع درلوده من الشفاعة عند الله.

بَل لَّمْ نَكُن نَّدْعُوا مِن قَبْلُ شَيْئًا ۚ كَذَٰلِكَ يُضِلُّ اللَّهُ الْكَافِرِينَ

مفسرین وایي چي دا انکار دی د دوی له شرک څخه مثل قولهم والله ربنا ماکنا مشرکین کما جاء في موضع آخر من القرآن، او بعض مفسران وایي چي معنا د آیت داده لم یکن ندعوا شیئًا ینفعنا او یدفع عنا المکروه یعني بالشفاعة الی الله في حقنا.

(کذالک) ای مثل اضلال الله هؤلاء المشرکین، یعني تو له کافران لا یهتدون الی شیئ چي د ده په نفع دي تمام سي.

**بوه سه:** چي مراد له اضلال څخه د خدای ج للکفار عدم ابتدائهم بالجبر والاکراه بدون اختیارهم کما یقول فرقة خبیثة الجبریة خذلهم الله تعالی.

ذٰلِكُمْ بِمَا كُنْتُمْ تَفْرَحُوْنَ فِى الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ وَبِمَا كُنْتُمْ تَمْرَحُوْنَ

دغه اضلال په سبب دد ې دی چي تاسي واست خوشالی به مو کولې په مځکه کي يعني تکبرًا (بغير الحق) ناحقه بې دليله صرف تقليدًا للاباء وهو الشرک في العبادة، او تاسي به خوشحالی کوئ په خپل دين باطل سره او توسع په نعمتو کي به درلوده يعني استدراجًا.

اُدْخُلُوْٓا اَبْوَابَ جَهَنَّمَ خٰلِدِيْنَ فِيْهَا ۚ فَبِئْسَ مَثْوَى الْمُتَكَبِّرِيْنَ

داخل سئ په دروازو کي د دوږخ، چي اووه دي چي پر کفارو باندي وېشل کېږي پر تفاوت د کفر ددوی، بد اقامت ځای دی دوږخ د متکبرينو لپاره چي له حق څخه انکار او تکبر کوي.

**سوال:** په وخت کي د دخول خو خلود نسته لان الخلود هو المكث الدائم؟

**ځواب:** په نحو کي دې ته حال مقدره وايي (والمعنى داخل سئ و دوږخ ته چي ستاسي حال پکښي مقدر دی في علم الله تعالى.

فَاصْبِرْ اِنَّ وَعْدَ اللّٰهِ حَقٌّ ۚ

ته صبر وکړه پر ازار د مشرکانو چي تا ته يې دررسوي، په تحقيق وعده د خدای حق ده (ستا سره د کولو او اهلاک د کافرانو) حق: واقع لامحالة لان الله لايخلف الميعاد لان خلاف الموعد مستحيل على الله لانه نقص وهو محال على الله.

فَاِمَّا نُرِيَنَّكَ

که مونږ په تا وينو،

**فائده:** اصل د اما ان ما ؤ، نون شرطيه يې په ما کي مدغم کړی او دا ما زائده بولي فائده يې تاکيد د جمله شرطيه ده ولذالک لحقه.

بَعْضَ الَّذِىْ نَعِدُهُمْ اَوْ نَتَوَفَّيَنَّكَ فَاِلَيْنَا يُرْجَعُوْنَ

ځيني هغه عذابونه چي وعده يې کوو له دوی سره (لکه قتل او اسر بندي کول کما وقع في بدر) او تا مړ کړي، مونږ ته ددوی راتګ دی يعني په اخرت کي فيجازيهم، او دا جواب دی د "نتوفينک" او جواب محذوف دی، والتقدير

فذالک المطلوب لک وللمؤمنين، مطلب دادی چي عليه الصلوة والسلام ته دا ډاډ
ګېرنه ورکوي په دوارو وعدو کي.

**وَلَقَدْ اَرْسَلْنَا رُسُلًا مِّنْ قَبْلِكَ مِنْهُمْ مَّنْ قَصَصْنَا عَلَيْكَ**

**پوهسه:** چي تنوين د رسلاً لپاره د تکثير (ای رسلاً کثيرةً من لدن آدم عليه السلام) بعض
د هغو قصي يې تاته ذکر سوي لکه نوح، ابراهيم، لوط، صالح، هود وغيرهم عليهم السلام، په
احاديثو شريفهؤ په اسناد صحيحهؤ سره د ابو لبابة روايت دی چي له نبي عليه السلام څخه
چا پوښتنه وکړه د عدد د انبياؤ عليهم السلام، ده مبارک جواب ورکړی مائة الف واربعة
وعشرون الف يعني (۱۲۴۰۰۰) فقيل کم الرسل منهم فقال (۳۱۳) جمًا غفيرًا، لکن
په قرآن کريم کي صرف (۲۷) رسولان ذکر سوي دي، والباقي والله اعلم.

**فائده:** په عدد کي د انبياء عليهم السلام په بل روايت کي دوه لکه څلورويشت زره راغلی
دی، نو ځکه فقهاء وايي چي سړی يعني مؤمن دي داسي وايي چي زه ټوله انبياء د
خدای ج منم يعني تعبير د عدد دې نه کوي.

**پوښتنه:** عدد د انبياء عليهم السلام خو ډېر بالا دی تر عدد د رسولانو کمامر، نو د عدد سره
د انبياء عليهم السلام يې جم غفير نه وو ايه او د عدد سره د رسولانو يې جم غفير وو ايه حکمت
يې څه دی؟

**ځواب:** رتبه د رسالت بالا ده تر رتبه د نبوت محضه، ولي چي په رسالت کي نوی
کتاب يا نوی شريعت شرط دی، مثلاً موسیٰ عليه السلام رسول ؤ کتاب يې تورات ؤ، وروسته په
بني اسرائيلو کي تخمينًا څلور زره نبيان راغلي دي چي د ټولو کتاب تورات ؤ، او
شريعت د موسیٰ عليه السلام ؤ وعلی هذا فقس منهم هذه الدقيقة فانها من سوانيح العصر.

**وَمِنْهُمْ مَّنْ لَّمْ نَقْصُصْ عَلَيْكَ**

وفي ذالک حکمة خفية لله عزوجل.

**وَمَا كَانَ لِرَسُوْلٍ اَنْ يَّاْتِيَ بِاٰيَةٍ اِلَّا بِاِذْنِ اللّٰهِ**

او نه دی رسول لره چي را دي وړي يوه معجزه (ای معجزة دالة علی رسالته)
مګر په اراده سره د خدای ج، په دې کي رد دی د قول د مشرکانو د مکې چي دوی و
عليه الصلوة والسلام ته وويل چي ته موږ ته داسي معجزه راوړه لکه معجزه د

موسیٰ ؑ چي لکړه به یې مار کېدل یا ید بیضاء، یا داسي معجزه راوړه لکه د عیسیٰ ؑ چي مورزاده ړوند یا پیس به دده په دعاء جوړېدی یا به یې د خټو مرغه جوړ کړی چي پر پوهه به یې کړه هغه به په هوا الوتی، او بعض مشرکانو د مکې به ویل چي موږ ته د صفا غر سره زر وګرځوه، یا به یې ویل چي د مکې مځکه غرو تنګه کړې ده، ته ستا خدای ته خواست وکړه چي دا غرونه لېري کړي الی غیر ذالک، چي دي ته مقترحات وایي.

فَإِذَا جَاءَ أَمْرُ اللَّهِ قُضِيَ بِالْحَقِّ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْمُبْطِلُونَ ﴿٧٨﴾

چي راسي قضاء د خدای ؑ په منځ کي د انبیاء او د امتیانو، نو فیصله به وسي په حق سره بنصر الانبیاء والمؤمنین وتعذیب الکافرین لکه د موسیٰ ؑ او بني اسرائیلو چي پر موسیٰ یې ایمان راوړی ؤ او د فرعون او دده د قوم قبط تر منځ چي خدای ﷻ فیصله وکړه چي فرعون او قوم دده چي قبطیان وه په قلزوم کي یې غرق کړه او موسیٰ ؑ او بني اسرائیلو ته یې نجات ورکړی، وامثال ذالک کثیرة.

"هنالک المبطلون" او تاوان وکړی په هغه ځای کي کفارو او معاندینو چي حق خدای عزوجل په معجزاتو د رسولانو ظاهر کړی.

اللَّهُ الَّذِي جَعَلَ لَكُمُ الْأَنْعَامَ لِتَرْكَبُوا مِنْهَا وَمِنْهَا تَأْكُلُونَ ﴿٧٩﴾

خدای هغه ذات مقتدر دی چي پیدا کړي یې دي ستاسي د نفع لپاره چارپایان چي مراد ځني اوښان، غوایي، پسونه او بوزې چي په هغو کي بعض صرف د خوراک لپاره دي یعني د سپرتیا قابل نه دي لکه پسونه او بوزې، او پر بعضو هم سپرېږئ او هم یې غوښي خورئ لکه غوایي او اوښان، لکن معتاد په عرف کي سپرتیا د اوښانو ده، او غالب غوښي خورک د غوایي، دا جمله د هغه ځایه سره تعلق لري هو الذي یحیی و یمیت.

وَلَكُمْ فِيهَا مَنَافِعُ

او په دې کي تاسي ته ګټي سته، یعني ستاسي د سپرتیا او د خورک څخه علاوه چي اوصاف د پسو دي او اوبار د اوښانو دي، او شعر یعني وجغونې د بزو دي، او قوبله کشي د غویو ده، یا شیدې د څلورو سرو دي او پوستکي د ټولو.

وَلِتَبْلُغُوْا عَلَيْهَا حَاجَةً فِيْ صُدُوْرِكُمْ وَعَلَيْهَا وَعَلَى الْفُلْكِ تُحْمَلُوْنَ ﴿۸۰﴾

او د دې لپاره چې يو حاجت چې ستاسي په زړو کې وي تاسي ځانونه ور رسوئ يعني په وخت کي د سفر للتجارة وغيرها، دا خاصه عاليه ده په اوښانو کي، دا عطف ده پر لتركبوا منها باندي، او پر دغو انعامو او پر کښتيو تاسي بارونه وړئ.

**پوه سه:** چي په بر (وچه) کي د حمل شي انعام دي چي عرفًا اوښان دي او په بحر کي کښتۍ دي.

**پوښتنه:** لائق د کښتۍ سره کلمه د في د ظرفيت وه، نو على الفلک ولي وويل سو؟

**ځواب:** لپاره د مناسبت د "وعليها" وويل سو.

وَيُرِيْكُمْ اٰيٰتِهٖ ۖ فَاَيَّ اٰيٰتِ اللّٰهِ تُنْكِرُوْنَ ﴿۸۱﴾

او په تاسي ويني، يعني خدایٔ دلائل چي دال دي پر وجود د صانع و كمال قدرته وفرط رحمته "فاى" يعني د کوم يوه له دلائلو ځخه د خدایٔ "تنكرون" الاستفهام في فایّ انکار دی پر انکار لكثرتها ولظهورها چي قابل د انکار خو نه دي الا عنادًا وتكبرًا وجهلاً بالجهل المركب.... بيت:

آن کس که نداند وبداند که نداند ...... درجهل مرکب ابد الدهر بماند

دا خو جهل مرکب ؤ، او د جهل بسيط مثال دا بيت دی:

وآنکس که نداند و بداند که نداند ...... او اسپ خود از گنبد فيروه جهاند

فتأمل في البيتين.

اَفَلَمْ يَسِيْرُوْا فِى الْاَرْضِ فَيَنْظُرُوْا كَيْفَ كَانَ عَاقِبَةُ الَّذِيْنَ مِنْ قَبْلِهِمْ ؕ

آيا سفر نه کوي کفار د مکې په ځمکه کي (يعني په هغه ځمکه کي چي اثار د مهلکه امم پکښي نمودار دي) تا چي دوی عبرت واخلي، نو دوی وګوري په نظر د عبرت چي څرنګه سوی دی اخير کار د دغو امتو (ای الهلاک بالاستيصال بسبب شركهم والانكار على رسلهم)

قانون نحوي: وروسته تر همزه د استفهام چي حرف عطف راسي پر ماقبل د همزه خو بشيْ عطف کېدای لفوات صدارت الاستفهام فهو على مقدر مناسب للمقام فالتقدير ه الم يحرجوا فلم يسيروا.

كَانُوْٓا اَكْثَرَ مِنْهُمْ وَاَشَدَّ قُوَّةً

وه اكثره لـه دوى څخـه، اى مـن كفـار مكـة (يعني من حيث العـدد والاموال والاولاد) او سخت وه په قوت كي يعني اجسام قويه يې درلوده تر اهل مكة.

وَّاٰثَارًا فِی الْاَرْضِ فَمَآ اَغْنٰی عَنْهُمْ مَّا كَانُوْا یَكْسِبُوْنَ ﴿۸۲﴾

او اثـار باقيـه يـې درلـوده پـه مځـكـه كـي مـن القـصـور المشيدة والمصانع وغيرها، نو فائده ونه كړه هغه دوى لره يعني په دفع كي د عذاب پر دوى، هغه شى چي دوى كسب كړى ؤ من الفلاح والقصور.

**پوهـه:** چي كلمه د ما اول نافيه ده يا استفهاميه انكاريه ده منصوب په اغني سره، والمآل واحد، او كلمـه د مـا ثانيـه موصـوله ده والعائد محذوف اى ما يكسبونه او ما مصدريه اى كسبهم ذالك.

فَلَمَّا جَآءَتْهُمْ رُسُلُهُمْ بِالْبَیِّنٰتِ فَرِحُوْا بِمَا عِنْدَهُمْ مِّنَ الْعِلْمِ

"فلما جاءتهم" عطف على ما اغنى "بالبينات" اى بالمعجزات والآيات الظاهرات، ترجمه: نو چي كله به راغلل دوى ته رسولان ددوى په ښكاره معجزاتو سره نو دوى به خوشاله سوه په هغه څه چي ددوى سره ؤ من العلم يعني ددوى په ګمان لـه حقيقة "كـل حزب بمـا لديهم فرحون" او د رسولانو علم چي توحيد د معبود ؤ او بعث بعد الموت او دخول الجنة او النار په ورځ كي د قيامت دوى ته مستحقر او دل ناپذيره معلومېدى كقول كفار مكة لن نبعث بعد الموت، وآلهتنا يشفعون لنا ان قام القيامة وغير ذالک من خرافاتهم، لكه يهودان چي وايي "لن يدخل الجنة الا من كان هودًا" او يا نصارى چي وايي "لن يدخل الجنة الا من كان نصارٰى" كما حكى الله عنهم في موضع آخر من القرآن، يا مراد د ما لديهم من العلم څخه مراد علم متعلق دى په امورو سره د دنيا يعني د دنيا په برابرولو كي ډېر رسيده خلک دي، كريمه "يعلمون ظاهرًا من الحيوة الدنيا وهم عن الآخرة هم غافلون فلما جاءتهم رسلهم الآية" چي د هغوى ديانات دوى ته معلوم هم وه، لكن د رسولانو خبري چي په طلب كي د دنيا ډېر حرص مه كوه او اتباع د شهوات د شيطان په ښوونه مه كوئ، نو دوى د هغو رسولانو خبري صرف نظر كړې او هنوز

به یې پسخند هم په واهه او د رسولانو خبري دوی ډېري بې ځایه خبري وګڼلې واعتقدوا انفع او ګټور دي او جلبونکی د منافع عاجله ؤ، او د رسولانو خبري صرف وعدې دي په جنت سره، هغه یې دروا غ بللې او یا علم د داسي شیانو ؤ چي چي هغه شیان په اخرت کي هیڅ په کار نه وه لکه علم طبعي، علم ریاضي، علم نجوم، علم سحر د اهل یونان او اهل هند وغیرهم.

**حکایت:** افلاطون د یونان و عیسیٰ ﷺ ته ورغلی لپاره د امتحان دده د نبوت نو افلاطون ورته وویل که فرضًا اسمانونه کماني وي او حوادث د دنیا یې غشي وي او رامي (ویشتونکی) خدای وي، او انسان هدف (یعني نښان) وي، فاین المفر؟ (ځای د تېښتي به چېري ؤ) فاجاب عیسیٰ ﷺ ورته جواب باجواب ورکړی ففروا الی الله (پناه په خدای ؏ وساتئ) نو د افلاطون یقین سو چي نبي خو دی لکن دا خبره یې وکړه چي تاسي یعني انبیاء خو د ناقصو خلکو لپاره رالېږل سوي یاست موږ خو کامل خلک یو ستاسي ښوونې ته ضرورت نه لرو.

**حکایت:** سقراط (چي یو غټ فیلسوف ؤ) ده چي واورېدل چي موسیٰ ﷺ په نبوت سره استول سوی دی، نو یو چا سقراط ته وویل چي کاشکي د موسیٰ ملاقات ته ورغلی وای، سقراط ورته وویل چي موږ خو پر هدایت خلک یو لا حاجة لنا الی رجل یهدینا.

وَحَاقَ بِهِم مَّا كَانُوا بِهِ يَسْتَهْزِءُونَ ۝

احاطه وکړه پر دوی، یعني پر هغه چا چي د ما جاء به الرسل څخه یې انکار کاوه، او فرحوا بما عندهم من العلم پر دغو کافرانو جزاء د جهل او د کفر د دوی ده او استهزاء د دوی یعني عذاب الهي پر نازل سو، وذالک معنی قوله تعالی.

فَلَمَّا رَأَوْا بَأْسَنَا قَالُوا آمَنَّا بِاللَّهِ وَحْدَهُ وَكَفَرْنَا بِمَا كُنَّا بِهِ مُشْرِكِينَ ۝

نو چي دوی ولیدی عذاب زموږ دوی وویل چي زموږ ایمان دی پر خدای ؏ چي واحد لاشریک دی او موږ بېزاره او انکار یو له هغو بتانو څخه چي موږ د خدای سره شریک وبلل.

فَلَمْ يَكُ يَنْفَعُهُمْ إِيْمَانُهُمْ لَمَّا رَاَوْا بَاْسَنَا ؕ

نو نهٔ چي ايمان دوی ته فائده وکړي او له عذاب الهي څخه دې خلاص کړي.

تو پيش از عقوبت درعفو کوب ......... که سودی نه دارد فغان زير چوب

هغه وخت نفع نه ورته کوي چي دوی زمونږ عذاب وليدی لامتناع قبوله حينئذ، له دې سببه خدای پاک وويل لم يک لان معناه لم يصح.

سُنَّتَ اللّٰهِ

دا عادت د خدای ج دی.

**فائده:** ''سنت الله'' منصوب دی علی المصدرية من فعل محذوف للتاکيد، والتقدير سن الله سنة ماضية في العباد ان الايمان عند نزول العذاب لاينفع وان العذاب نازل علی مکذبي الرسل حسب وعده انا لننصر رسلنا، او بعض مفسرين وايي چي منصوب دی علی الاغراء ای احذروا سنة الله.

الَّتِيْ قَدْ خَلَتْ فِيْ عِبَادِهٖ ۚ وَخَسِرَ هُنَالِكَ الْكٰفِرُوْنَ ۝

هغه عادت چي تېر سوی دی په بندګانو کي د خدای ج، يعني في الازمنة الماضية، او په ډېر لوی تاوان کي واقع سوه په دغه وخت کي چي دوی وليدله خپل نا اميدي چي دواړي يې خطا سوې.

**پوښتنه:** کافر خو هر وخت په خسران کي غرق دی. فما معنی قوله ''وخسر هنالک آه''؟

**ځواب:** الزجاج ر وايي: سلمنا ذالک لکن يتبين لهم خسرانهم اذا رؤ العذاب يعني د مخه تر نزول د عذاب دوی ته خپل خسران نه معلومېدی بلکې دوی ځانونه پر حق دين بلل چي عذاب يې وليدی په ځان پوه سوه چي موږ پر باطل دين وُ.

وفي الامالي: وما ايمان شخص حال باس ...... بمقبول لفقد الامتثال

وفي المثنوي المعنوي:

آن ندامت از نتيجه رنج بود .... نی ز عقل روشن چو نی گنج بود

چونکه شد رنج آن ندامت شد عدم .... می نيرزد خاک آن توبه ندم

**پوهه:** چي اول شد په معنی د عدم دی او دوهم شد په معنی د سوء دی، قال

الله تعالى "وليست التوبة للذين يعملون السيئات حتى اذا حضر احدهم الموت قال اني تبت الآن" قال البغوي "في تفسيره لاتقبل توبة عاص ولا ايمان كافر اذا يتقن بالموت انتهى، لكه چي فرعون چي د اوبو څپې پورته کړی نو په حال کي د غرق يې داسي وويل: لا اله الا الذي امنت به بنو اسرائيل، نو په دغسي اضطراري توبه يې نجات نه کړی پيدا، والله اعلم.

**پوه سه:** چي د البغوي "مراد ايمان يا توبه د عاصي په وخت کي د غرغرې دی، والا محققين د علم عقائدو وايي قرب الموت لايمنع من قبول التوبة من الكفر والعصيان، كذا في روح البيان.

**درويش وايي:** چي لله الحمد والمنة وعلى سيد رسله الصلوة والتحية وعلى اله وصحبه البررة په توفيق د خدای تفسير د سورة المؤمن په وخت کي د عصر ځلور بجې ۲۸ د صفر الخير د مياشتي سنه (۱۴۳۲) هجري قمري و پای ته ورسېدی، وارجوا رحمته تعالى ان يوفقني لاتمام التفسير الايوبي بالخير والعافية والصحة والسلامة انه تعالى على كل شيئ قدير وبالاجابة جدير.



سورة حم السجدة مكية وهي اربع وخمسون آية وست ركوعات · بسم الله الرحمن الرحيم

حٰمٓ ﴿١﴾ تَنزِيلٌ مِّنَ الرَّحْمَٰنِ الرَّحِيمِ ﴿٢﴾

**پوه سه:** چې که څه هم مظهري" په مختصره توګه د حٰمٓ په معنی کې او روح المعاني هم په مختصره توګه بحث کړی دی او اعراب یې بیان کړی دی، او روح البیان ډېر طویل بحث پکښې کړی دی. لکن درویش وایي چې زما په نېز د متشابهات قرآنیه ؤ څخه دی، نو پر حم وقف لازم دی او مفصل بیان د مقطعات قرآنیه ؤ په اول کې د سورة البقرة بیان ته سپارل سوی دی، فطالع هناک.

**پوه سه:** چې "تنزیل" خبر د محذوف مبتداء دی ای هذه السورة تنزیل آه.

كِتَٰبٌ فُصِّلَتْ ءَايَٰتُهُۥ قُرْءَانًا عَرَبِيًّا لِّقَوْمٍ يَعْلَمُونَ ﴿٣﴾

**پوه سه:** چې "کتاب" بدل دی له "تنزیل" څخه یا خبر آخر دی د مبتداء محذوفې چې ذکر سوه.

**فائده:** حمل د تنزیل پر مبتدا مذکور باندې یا مبالغة دی نحو زید عدل علی المشهور یا تنزیل په معنی د منزل دی چې مجاز في الظرف یې بولي یا په معنی د ذو تنزیل دی چې مجاز بالحذف یې بولي فافهم "فصلت آیاته" دا جمله صفت د کتاب ده، والمعنی بینت بالاحکام والقصص والامثلة، یا معنی دا ده بینت بالامر والنهي والحلال والحرام والمآل واحد "قرآنا عربیا" منصوب علی المدح بتقدیر اعني یا امدح او نحوه کما فصل في علم النحو یا منصوب حال دی له کتابًا څخه.

**سوال:** له نکره څخه حال خو نه دی روا چې پر ذی الحال مقدم وي لکه ابتدائیه د نکره چې نه ده روا بیله تقدیمه د خبر نحو في الدار رجل کما بین في النحو؟

**ځواب:** دا حکم هلته دی چې ذو الحال نکره محضه وي یا مبتداء مثلاً نکره محضه وي دلته خو ذو الحال چې کتاب دی مخصوص په صفت سره دی یعني فصلت، او داغه رنګه نکره مخصصة بالصفة ابتدائیة صحیح کما یقال رجل عالم في الدار کل ذالک مذکور في کتب علم النحو.

**درویش وایي:** چې پر هر تقدیر قرآنا عربیا امتنان دی پر اهل مکه بلکې پر

تولو عربو چې د قرآن فهم وتاسي ته اسانه دی لکونه بلغتهم.

**پوه سه:** چې "یعلمون" منزل منزلة اللازم دی یعني مفعول نه غواړي ای لقوم ذوی علم یعني لا لمن اعرض عنها عنادًا وتکبرًا او یا یې مفعول محذوف دی ای لقوم یعلمون معانیه ویفهمونه لکونه بلغتهم.

بَشِيرًا وَنَذِيرًا فَأَعْرَضَ أَكْثَرُهُمْ فَهُمْ لَا يَسْمَعُونَ ④

"بشیرًا" صفت اخرلی دی د قرآنا ای بشرًا لمن آمن به و عرف قدره و آمن بمن اتی به وهو النبي ﷺ والبشارة الیه بالجنة والوصول الیه تعالی "ونذیرًا" او بیرونکی دی قرآن لمن کذبه ولم یعرف قدره بنار جهنم "فاعرض اکثرهم" نو دوی روئ ګرداني وکړه اکثرو د اهل مکه، یا عربو له فکر وهلو څخه په دغه کتاب الله کي سره ددې چي د عربو په ژبه ؤ او قبول یې نه کړی، دا جمله عطف ده پر فصلت باندې "فهم لایسمعون" او دوی غوږ نه نسي تکبرًا و عنادًا، یا معنی داده لایقبلون او جمله د لایسمعون بیان د اعراض ده.

وَقَالُوا قُلُوبُنَا فِي أَكِنَّةٍ مِّمَّا تَدْعُونَا إِلَيْهِ

وویل کفارو د مکې (عطف دی پر اعرض) زموږ زړونه په پوښو کې دي (د اکنة جمع کنان ده) له هغه شي څخه چي ته موږ وربولې ای التوحید یعني زموږ زړونه په سبب د پردو نه پوهېږي چي ته موږ ته څه وایې، یعني وترک ما الفینا علیه آبائنا.

**فائده:** روح المعاني وایي چي تنکیر او تنوین د اکنة د تکثیر او تعظیم دی حیث قال ای اغطیة متکاثغة.

وَفِي آذَانِنَا وَقْرٌ وَمِن بَيْنِنَا وَبَيْنِكَ حِجَابٌ

او زموږ په غوږو کي ثقل دی یعني کاڼه یو ستا خبري نه په اورو، او زموږ او ستا تر منځ یوه پرده ده ډېره غلیظه یعني پنډه چي موږ منع کوي له تواصل څخه زموږ او ستا، ددې آیت معنی داده چي حجاب زموږ د خوا درشروع دی او ستا له خوا هم شروع دی نو مسافت مابیني ټوله نیولی دی فارغ ځای نسته، کذا في روح المعاني، دا ټوله تمثیلات دي د عدم الموافقة بیننا وبینک، ولي چي په حقیقت کي نه کنان سته نه کڼوالی سته او نه حقیقت حجاب غلیظ سته.

له عمر بن الخطاب رضي الله عنه څخه روایت دی چي قریش و رسول الله ﷺ ته راغله علیه الصلوٰة و السلام ورته وویل "ما یمنعکم من الاسلام" که چیري تاسي اسلام قبول کړی تاسي به د عربو سرداران وګرځئ، دوی ورته وویل چي موږ نه پوهیږو چي ته څه وایي، او نه څه اورو او زموږ پر زړونو غلیظي پردې اواري دي، او زموږ او ستا تر منځ یوه غلیظه پرده ستهٔ، فقال لهم النبي ﷺ زه تاسي رابولم دوو خویو ته (۱) ان تشهدوا ان لا اله الا الله وحده لاشریک له (۲) واني رسول الله، دوی چي شهادت ان لا اله الا الله واوریدی ولوا علی ادبارهم نفورًا (دوی پر شا ولاړه د نفرت له سببه) وقالوا اجعل الآلهة الهًا واحدًا (ټول خدایان په یوه کي حصر کوي) ان هذا لشیئ عجاب (په تحقیق دا خو یوه عجیبه خبره ده) وقال بعضهم لبعض چي درځئ صبر وکړئ پر خپلو خدایانو، ان هذا لشیئ یراد (دا توحید یو شی دی چي اراده کړه سوی دی یعني د محمد (ﷺ) له خوا څخه) موږ نه دی اوریدلی دا توحید د خدای په آخر ملت کي زموږ یعني زموږ په نیکه ګانو کي، ان هذا الا اختلاف (نه دی دغه توحید مګر درواغ دي) آیا نازل سو پر ده یعني پر محمد (ﷺ) ذکر یعني قرآن زموږ په مابین کي یعني په موږ کي مالداران خلک او مشران خلک سته، نو پرده چي نه دی سرمایه دار دی او نه سردار او مشر د قوم دی څرنګه قرآن نازل سو!؟ په عین دغه وخت کي چي دوی ولاړه جبرئیل علیه السلام راغلی فقال ان الله یقرئک السلام او وایي: الیس یزعم هؤلاء (یعني قریش) ان علی قلوبهم اکنة ان یفقهوه (ای القرآن) وفي اذانهم وقرًا افلیس قولک کیف واذا ذکرت ربک في القرآن وحده، ولوا علی ادبارهم نفورًا، نو که دوی نه اوریدلای نو ولي یې له توحید څخه نفرت کاوه، لکنهم کاذبون یسمعون ولاینتفعون بذالک کراهةً له (ای للقرآن والتوحید) نو جبرئیل علیه السلام چي ولاړی او دا بله ورځ سوه اوویا[۷۰] کسه د هغو خلګو راغله و نبي علیه السلام ته فقالوا یا محمد (ﷺ) اعرض علینا الاسلام فاعرض علیهم الاسلام، نو ټولو ایمان راوړی، فتبسم رسول الله ﷺ (یعني د خوشحالی څخه) وقال الحمد لله، او دوی ته یې وویل چي پرون تاسي ویل: ان قلوبنا في اکنة فما تدعونا الیه، وفي اذاننا وقر وقد اصبحتم الیوم مسلمین؟ فقالوا یا رسول الله کذبنا بالامس لو کان کذالک (یعني که زموږ غوږونه کاڼه وای او ستا خبري مو نه اوریدلای) ما اهتدینا ابدًا لکن الله صادق في التوحید المذکور في کتابه والعناد کاذبون (یعني في ان لله شرکاء) والله الغني ونحن الفقراء الیه.

**درویش وایي:** چې دا حدیث بتمامه امام مظهري په منیه کې د خپل تفسیر المظهري راوړی دی والله اعلم بالصواب، دا د خدای ﷻ د قدرت یوه نمونه ده او د رسول کریم ﷺ یوه لویه معجزه ده وبالله التوفیق.

په شپه د جمعې مبارکې په سدس اخیر کې (۲۶) تخمیناً د صفر الخیر نوشته سوه.

فَاعْمَلْ إِنَّنَا عَامِلُونَ ۝

"فاعمل" ای علی دینک، وقیل في ابطال امرنا "اننا عاملون" علی دیننا وهو الشرک، وقیل في ابطال امرک وهو التوحید. وقائل هذا القول هو ابوجهل ومن معه من قریش.

**درویش وایي:** چې هغه حدیث چې ما را نقل کړی له منیه څخه د مظهري چونکه مظهري یې سند نهٔ ذکر کړی نو فقیر په تلاش کې د سند متصل ؤ چونکه گفته اند: "که جوینده یابنده بود" په ورځ د جمعې د هغه تاریخ په دوران کې د تلاش چې په روح المعاني کې مې هغه حدیث په متصل سند سره پیدا کړی اخرجه ابو سهل السري من طریق عبد القدوس عن نافع بن الازرق عن ابن عمر عن عمر رض قال اقبلت قریش الی اخیر الحدیث المذکور مع الترجمة آنفًا.

قُلْ إِنَّمَا أَنَا بَشَرٌ مِّثْلُكُمْ يُوحَىٰ إِلَيَّ أَنَّمَا إِلَٰهُكُمْ إِلَٰهٌ وَاحِدٌ

وو ایه ته (یا محمد ﷺ في جوابهم) نه یم زه مگر بشریم په مثل ستاسي یعني په بشریت کې صرف ماته وحي کړل سوي دي یعني د خدای ﷻ له خوا څخه، الحسن رح وایي چې خدای پاک علیه الصلوة والسلام په تواضع سره امر کړی دی یعني زه خو ستاسي غوندي بشریم که وحي نه وای راغلي چې هغه دادي "انما الهکم واحد" په تحقیق معبود بالحق ستاسي یو ذات دی چې خالق ستاسي او د ټولو سفلیاتو او د علویاتو دی وبس، نو باید چې تاسي ماته غوږ ونسئ او زما دعوت قبول کړئ، او یا معنی د آیت دا ده چې زه نه ملکه یم او نه جني یم چې په سبب د عدم جنسیت تاسي زما څخه استفاده نه سئ کولای، نه زه تاسي و داسي شي ته رابولم چې عقل ابی څني کوي لکه مثلاً اجتماع النقیضین او ارتفاعهما، بلکې داسي دین ته مو رابولم چې عقل او نقل دواړه مساعدت کوي لولا التکبر وتقلید الآباء.

فَاسْتَقِيْمُوْٓا اِلَيْهِ وَاسْتَغْفِرُوْهُ ؕ وَوَيْلٌ لِّلْمُشْرِكِيْنَ ۝۶

نو تاسي و عبادت ته د واحد خداى او اطاعت ته ځانونه چمتو کړئ او بله خوا پرېږدئ يعني الشرک. او هم د هغه خداى ﷻ څخه طلب د بخښني و کړئ مما انتم عليه من الاشراک وسوء الاعمال وروسته خداى پر ژبه د رسول دوى ته تهديد ورکړى "وويل" دا کلمه د عذاب ده او مبتداء ده "للمشركين" دا يې خبر دى.

**سوال:** ويل خو نکره محضه ده، نو ابتداء به يې څرنګه صحيح وي؟

**ځواب:** په علم نحو کي وايي چي په دعاء يا ښېرا کي ابتدائيه د نکره صحيح دى لانها نكرة محضة صورة لكن مخصصة معنًى، وتحقيقه في شرح الجامي على الكافية في بيان قول القائل سلام عليكم چي مبتداء ده او خبر دى، قال الجامي اى سلام من قبلي عليكم فتدبر.

الَّذِيْنَ لَا يُؤْتُوْنَ الزَّكٰوةَ وَهُمْ بِالْاٰخِرَةِ هُمْ كٰفِرُوْنَ ۝۷

روح البيان يې ترجمه داسي کړې ده، لا يؤمنون بوجوهها ولا يؤنه، له دې څخه دا معلومه سوه چي د زکوة څخه معنى شرعي مراد ده، او روح المعاني يې ترجمه داسي کړې ده لبخلهم وعدم الاشفاق على الخلق وذالک من اعظم الرزائل (دا يو لوى له بدو کارو څخه دى، له دې عبارت څخه دا معلومېږي چي له زکوة څخه مراد معنى لغوي ده.

**پوه سه:** چي حمل د زکوة پر معناى شرعي قول د ابن السائب دى وروى عن قتادة والحسن والضحاک ومقاتل وقيل لايزكون انفسهم بالايمان والطاعة. او ابن جرير او نورو يارانو د حبر الامة ابن عباس اى لا يقولون لا اله الا الله ونقل ذالک عن الحكيم الترمذي وغيره فالمعنى حينئذ لا يطهرون انفسهم عن الشرک واختاره الطيبي. نو پر دې تقدير له زکوة څخه مراد معنى لغوي ده اعني التطهير وفي فقهاء وايي چي زکوة شرعي ته چي زکوة وايي په دې سبب چي نفس د مزکي له بخل څخه پاکوي او مال يې له خبث څخه پاکوي، وهو المعنى اللغوي للزكوة. او بيضاوي وايي چي د دې آيت څخه دا معلومېږي چي کفار مخاطبون بفروع الدين. له دې څخه دا معلومېږي چي بيضاوي له زکوة څخه معنى شرعي مراد بولي لانها من فروع الدين.

"وَهُمْ بِالْآخِرَةِ هُمْ كَافِرُونَ" او دوی په آخرت سره (يعني يوم القيامة وثوابها وعذابها) كافران دي.

**پوه سه:** چي "بالآخرة" متعلق دی په "كافرون" پوري، والتقدير لپاره د حصر دی د انكار پر زكوة د كافرانو او تكرار د "هم" لپاره تاكيد د حصر دی وجه يې داده چي ځوک چي امتناع د زكوة شرعي ځخه كوي هغه بناد دی پر عدم اعتقاد بالآخرة وثواب الزكوة فيها، نو دغه وركول دي د مال و فقير ته ضائع والی د مال بولي، ولي په دنيا كي خو نفع نسته كما هو الظاهر او اخرت دوی نه مني، بخلاف المؤمن ولي چي د هغه خو ايمان د ثواب د زكوة په ورځ د آخرت سته.

**فائدة في هذه الآية:** خدای منع د زكوة جفت راوړه د شرک سره لكه په دمخه آيت كي او د كفر سره لكه په دې آيت كي لان المال احب الاشياء الى الانفس نو وركول د زكوة ستر دليل دی پر ايمان د مزكي، نو په دې باعثه كول دي د مؤمنانو پر وركړه د زكوة او تهديد دی پر مانعينو د زكوة، ولذا قيل مبالغة: من لا زكوة له لا صلوة له.

إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا وَعَمِلُوا الصَّالِحَاتِ لَهُمْ أَجْرٌ غَيْرُ مَمْنُونٍ ۞

په تحقيق هغه كسان چي ايمان يې راوړی وي (يعني لا اله الا الله محمد رسول الله) او عملونه يې كړي وي خصلات الصالحات و اول الصالحات الفرائض ثم الواجب ثم السنة ثم النوافل قوليًا كان او عمليًا او ماليًا دوی لره اجر او ثواب سته غير ممنون، قال حبر الامة ابن عباس د ممنون په ترجمه كي غير مقطوع وقال مقاتل غير منقوص، وقيل ممنون له منة ځخه مشتق دی يعني لا يمكن عليهم، وقال مجاهد غير محسوب حساب به نه ورسره كېږي.

**پوه سه:** چي دا جمله معترضه ده تعريض دی پر مشركينو چي نصيب د دوی قطع دی حيث لم يزكوا انفسهم كما زكى المؤمنون (يعني د مشركينو حال نه دی ختم سوی كما سيأتي) له اسدي ځخه روايت دی چي روح المعاني او مظهري دواړو راوړی دی او روح البيان هم راوړی دی، او په كشف الاسرار كي هم راغلي دي نزلت الآية في المرضى (ناجوړيان) والزمنى (په پښو شل كسانو كي) والهرمى زاړه كسان چي له طاعت ځخه عاجزه سي يكتب لهم الاجر على حسب ما

یعملون في الصحة، عن عبد الله بن عمرؓ قال قال رسول الله ﷺ ان العبد اذا کان علی طریقة حسنة (بنده چي پر یوه ښه لار وي یعني ښه عمل کوي) ثم مرض قیل للملک الموکل به اکتب له مثل عمله اذا کان طلیقًا (چي دی جوړ وُ) تر هغو چي زه بیرته شفاء ورکوم، رواه البغوي في شرح السنة والتفسیر.

او د ابو موسیٰ الاشعري او د انس بن مالکؓ ورته روایت راغلی دی، مآل خو یې یو دی صرف په عبارت کي یې فرق سته بزیادة او نقصان، ابن مسعودؓ گفت که با رسول خدا نشسته بودیم که رسول خدا بر اسمان نگریست وتبسم کرد گفتمُ تبسم از چه وجه کردی وچه حال بر تو مکشوف شد؟ گفت عجب آید از بنده مؤمن که از بیماری بناله و جزع کند اگر بدانستی که اورا درآن بیماری چه کرامت هست و چه قربت است بدرگاه رب العزة عمر خود را درآن بیماری خواستی این ساعت که بر نگریستم دو فرشته فرود آمدند وبنده را که پیوسته درمحراب عبادت بود اورا طلب کردند درآن محراب اورا نیافتند، گفتند باری خدایا فلان بنده مؤمن که هر شبانه روزی حسنات وطاعات او مینوشتم چه شد، باری خداؑ گفت که درحبس بیماری محبوس کرده ام، ملائکه گفتند که اکنون که درحبس بیماری کردی هیچ عمل و طاعت وی نمی نوشتم، از حضرت رب العزة ﷻ فرمان آمد اکتبوا لعبدی العمل الذي کان یعمله في یومه ولیلته ولا تنقصوا منه شیئًا فعلي اجر ما حبسته وله اجر ما کان صحیحًا.

**درویش وایي:** چي جمله معترضه ختم سوه اوس بیرته د حال بیان پر خوا د کافرانو.

قُلْ أَئِنَّكُمْ لَتَكْفُرُونَ بِالَّذِي خَلَقَ الْأَرْضَ فِي يَوْمَيْنِ

دا جمله مستأنفه ده، گویا علیه الصلوة والسلام خدایؑ ته وویل چي که دوی یعني کفار که پر لم یستقیموا او پر لم یستغفروا ټینګ سوه، ترجمه: ووایه دوی ته آیا تاسي منکره کېږئ پر هغه ذات چي پیدا کړې یې ده ځمکه په دوو ورځو کي.

وَتَجْعَلُونَ لَهُ أَنْدَادًا ۚ ذَٰلِكَ رَبُّ الْعَالَمِينَ ﴿٩﴾

او گرځوئ هغه ذات لره شریکان، چي هغه د ټولو جهانو پالونکی دی.

وَجَعَلَ فِيهَا رَوَاسِيَ مِن فَوْقِهَا وَبَارَكَ فِيهَا وَقَدَّرَ فِيهَا أَقْوَاتَهَا فِي أَرْبَعَةِ أَيَّامٍ سَوَاءً لِّلسَّائِلِينَ ۝١٠

او پیدا کړي يې دي په ځمکه کي غرونه محکم يعني پر ځمکه سربېره او برکت يې اېښي دی په ځمکه کي او په اندازه کړې يې ده په ځمکه کي روزي دد يې په څلورو ورځو کي، لپاره د سوال کونکو.

**پوه سه:** چي د صحیح بخاري د حدیث سره سم له ابن عباس څخه روایت دی چي يهودان رسول الله ﷺ ته راغلل او د ځمکي او د اسمانو د پيدا ئښت پوښتنه يې وکړه، نو رسول الله ﷺ ورته وويل چي الله تعالی ځمکه په دوو ورځو کي يعني د يکشنبې او دوشنبې په ورځ پيدا کړه، او غرونه او په دې ځمکه کي چي څه معدنيات وغيره دي هغه يې د سه شنبې او چهار شنبې په ورځ پيدا کړه، يعني د اوبو چيني، ښارونه او ابادۍ ريګستانونه او ميدانونه، نو دا ټولي څلور ورځي سوې لکه په ايت کي چي ذکر دي، او بيا يې وفرمايل چي د پنجشنبې په ورځ يې اسمان جوړ کړی او د جمعې په ورځ يې ستوري، لمر، سپوږمۍ او ملائکې تخليق کړې، بيا يې آفتونه او مصيبتونه پيدا کړه چي پر هر شي راتلونکي دي، او بيا يې د آدم ﷺ تخليق وکړی، بيا يې وابليس ته د سجدې حکم وکړی نو چي هغه له سجدې څخه انکار وکړی نو له جنته يې وه ايستی (الحديث بطوله) ابن مديني او بيهقي وغيره دا د کعب احبار قول ګرځولی دی)

ثُمَّ اسْتَوَىٰ إِلَى السَّمَاءِ وَهِيَ دُخَانٌ فَقَالَ لَهَا وَلِلْأَرْضِ ائْتِيَا طَوْعًا أَوْ كَرْهًا قَالَتَا أَتَيْنَا طَائِعِينَ ۝١١

بيا يې اراده وکړه و پيدا کولو ته د اسمان، چي هغه دود ؤ نو وويل سوه هغه ته او ځمکي ته راسئ دواړه په خوښي يا په ناخوښي، نو دواړو وويل موږ راغو په خوښۍ سره.

**پوه سه:** چي اسمان او ځمکي ته خطاب او حکم کول، او د دوی په اطاعت او فرمانبردارۍ سره جواب ورکول د بعض مفسرينو په نيز مجاز دی چي ځمکه او اسمان د الله تعالی تابع او فرمانبردار د هر کار لپاره تيارسی دي، خو ځيني مفسرين بيا وايي چي په دې کي مجاز نسته ټوله پر خپل حقيقت بناء دي، الله تعالی په اسمان او ځمکه

کي شعور او ادارک په خطاب د پوهېدلو پيدا کړی ؤ او دوی ته يې د خبرو طاقت ورکړی ؤ چي جواب ورکړي، په بحر محيط کي دا نقل کوي او وايي چي دا تفسير احسن او ښه دی، بعض مفسرينو دا هم ويلي دي چي د ځمکي له خوا دا جواب د ځمکي هغه برخي ورکړی ؤ پر کوم ځمکه چي بيت الله تعمير سوه، او د اسمان هغې برخي جواب ورکړی ؤ په کوم کي چي بيت المعمور دی يعني بيت الله ته مخامخ برخه.

## فَقَضٰىهُنَّ سَبْعَ سَمٰوَاتٍ فِيْ يَوْمَيْنِ

يعني فخلقهن په خلق ابدي سره (يعني بېله کومي نقشې چي خدای ته دي پرته وه) او پر ډېر محکم شکل يې پيدا کړه، په دوو ورځي کي يوم الخميس والجمعة.

**فائده:** ضمير د "هن" راجع دی و سمأ ته چي د مخه ذکر سو په اعتبار د معنی چي سمأ اسم جنس دی يا ضمير مبهم دی "سبع سمٰوات" يې تميز دی، او پر اول تقدير حال دی.

**پوهسه:** چي جلال الدين المحلي ؒ وايي ففرغ منها (ای خلق السمٰوات) في اخير ساعة د جمعې د ورځي وفيها خلق آدم ؑ انتهی.

**درويش وايي:** چي له قول څخه د محليؒ دا فهمېږي چي خلق د آدم ؑ متصل په خلق پوري د اسمانو ؤ، لکن دا صحيح نه ده لان خلق آدم ؑ کان بعد زمان طويل من خلق السمٰوات والارض، کما يدل عليه قوله تعالی "واذ قال ربک للملائکة اني جاعل آه" وفي قصة خلق آدم ؑ تعجين طينته اربعين يومًا فلو صح خلق آدم ؑ في اخير ساعته من الجمعة فذالک اخير ساعة من الجمعة ولو کان بعد مدة مديدة، والتفصيل في تفسير المظهري ؒ والله اعلم.

## وَاَوْحٰى فِيْ كُلِّ سَمَآءٍ اَمْرَهَا

**پوهسه:** چي دا جمله عطف ده پر قضاهن باندي، ومعنی الآية خلق في کل سماء ما استعدت له واقتضته الحکمة ان يکون فيها لکه ملائکه، لمر، سپوږمی، ستوري وغير ذالک مما لايعلمه الا الله کما يقتضيه کلام قتادةؒ، او السديؒ ويلي دي چي عبادة عن التکوين والخلق کالامر، او دا امر تکويني مقيد دی په هغه قيد چي معطوف عليه يې مقيد ؤ يعني في يومين، او يا معنی د آيت

داده اوحی الی اهل کل سماء او امره وکلفهم بما یلیق بهم من التکالیف، فالوحي بالمعنی المشهور او و قید ته د في یومین هم ضرورت نشته.

وَزَيَّنَّا السَّمَآءَ الدُّنْيَا بِمَصَابِيْحَ ۖ

او موږ ښائسته کړی دی نژدې اسمان (چي د دنیا معنی ده یعني اول اسمان) په څراغانو سره چي ستوري دي.

**پوښتنه:** له دې آیت څخه خو داسي معلومېږي چي ستوري ټول په اول اسمان کي دي، نو داغسي ده او که څرنګه؟

**ځواب:** روح البیان وایي چي مراد له مصابیح څخه ټول ستوري دي چي په اسمانو کي خدای ﷻ پیدا کړي دي من الثوابت والسیارات، ولیس کلها في سماء الدنیا، لکن اهل الارض ته داسي معلومېږي لکه په اول اسمان کي چي وي، نو په دې سبب زینا السماء الدنیا وویل سو، روح البیان زیاته کړې ده فان کل واحد من السیارات السبع والکواکب الثوابت في الفلک الثامن.

**درویش وایي:** چي دا رایه د اهل هیئت هم ده، او مظهري له دې څخه سخت مخالف دی، دی وایي چي ټول ستوري په اول اسمان کي دي کما هو الظاهر من القرآن، لکن پر دې تقدیر د کسوف او خسوف او د هلال القمر او رفته رفته تر بدر پورې ډېر مشکل دي، لکن د دې مشکل د دفع لپاره مظهري د هغه آیت "کل في فلک یسبحون" ترجمه داسي کړې ده چي اسمان پر ځای ولاړ دی دا ستوري لکه ماهی چي په اوبو کي رفتار کوي دغسي پکښي روان دي، نو اشکال دفع دی، فتدبر.

وَحِفْظًا ۚ ذٰلِكَ تَقْدِيْرُ الْعَزِيْزِ الْعَلِيْمِ ﴿۱۲﴾

"حفظا" مفعول مطلق د فعل محذوف دی ای وحفظناها من الآفات یا له شیطانانو څخه چي خبري د ملکو به یې اورېدلې، او بعض مفسرین وایي چي مفعول له دی په معنی کي کانه قال وخصصنا السماء الدنیا زینة وحفظا.

**درویش وایي:** چي دا ډېر بعید احتمال دی.

"ذالک تقدیر العزیز العلیم" داغه مذکور في ماقبل کي صنع د خدای ﷻ ده چي غالب دی، مانع د تقدیر د ده څوک نسي کېدای او ښه خبر دی د مخلوق خپل په ټولو حالاتو.

فَإِنْ أَعْرَضُوا فَقُلْ أَنذَرْتُكُمْ صَاعِقَةً مِّثْلَ صَاعِقَةِ عَادٍ وَثَمُودَ ﴿١٣﴾

نو كه اعراض وكړي اهل مكه له ايمان څخه، ته ورته ووايه زه تاسي بېروم له عذاب شديد مهلك څخه، لكه عذاب مهلك د عاد او ثمود. چي عاد په باد صرصر هلاک سوه او ثمود په صيحه يعني په ناره د جبرئيل هلاک سوه.

**فائده:** صاعقة هر هغه عذاب ته وايي چي مهلک وي له هري نوع څخه چي وي.

**فائده:** تخصيص د عاد او ثمود چي يې وكړى له دې سببه چي قريش په رحلة الشتاء والصيف كي پر اثارو د دغو دوو قومو تېرېږي اثار د عذاب دده وىويني، حاصل د آيت دادى چي ستاسي په باره كي يا اهل مكة چي تمرد او سركښي كوئ او ايمان نه راوړئ بل څه نه دي ياته چي پر تاسي دي عذاب نازل سي لكه پر هغه متمردو اقوامو چي عاد او ثمود وه نازل سوى ؤ، ولي تاسي اى كفارو د مكي هغسي متمرد ياست.

**قانون كلي نحوي:** نومان د اقوامو او قبائلو په انصراف او عدم انصراف كي تابع د استعمال د عربو دي يعني كه د يو قوم نوم عربو منصرف استعمالاوه يعني كسره او تنوين يې وركول نو هغه قوم د جد اعلى ددوى مسمى سوى دى، نو يوازي علميت پكښي سته يعني يو سبب د عدم انصراف لري او په يوه سبب عدم انصراف نسي راتلاى كما تقرر في النحو، او كه په استعمال كي د عربو غير منصرف مستعمل ؤ نو په تأويل د قبيلة دوه سببه پكښي موجود دي علميت او تانيث، نو دا سبب دى چي عاد ته يې تنوين وركړى دى يعني منصرف دى، او ثمود ته يې په حالت كي د جر فتحه وركړې ده كما هو القانون النحوي ان غير المنصرف في حالة يكون مفتوحًا، فاحفظ هذا القانون يفيدک في مواضع من القرآن الكريم.

إِذْ جَاءَتْهُمُ الرُّسُلُ

چي راغله عاد او ثمود ته رسولان.

**سوال:** عاد او ثمود خو دوه قومه وه، نو ولي داسي نه وويل سوه چي اذ جاء هما يعني صيغه د تثنيې به يې راوړې وه؟

**ځواب:** هر قوم عاد او ثمود خو ډېر خلگ وه "الرسل" حال دى من صاعقة عاد و ثمود.

**سوال**: رسولان د عاد او ثمود خو دوه وه يعني هود او صالح عليهما السلام، نو جمع يې ولې راوړه؟

**ځواب**: مراد له جمع څخه جمع لغوي ده وهو شائع في كلام العرب.

**مِنۢ بَيۡنِ أَيۡدِيهِمۡ وَمِنۡ خَلۡفِهِمۡ أَلَّا تَعۡبُدُوٓاْ إِلَّا ٱللَّهَ**

يعني له ټولو جوانبو څخه، دا لفظ كنايه ده له كمال اهتمام څخه د رسل په تبليغ كې د دين و عاد او ثمود ته. ظاهره ترجمه يې داده د لاسو د خوا او د شا د خوا، يا معنى د آيت داده چې دوى يې وېرول له عذاب څخه د امم ماضيه ؤ، او د مستقبل عذاب څخه د قيامت. او دا هم احتمال شته چې مراد دي كثرة الانذار وي، والله اعلم بمراده في كتابه "الا تعبدوا" اصل يې ان لا ؤ، نو د ان نون يې په لام كې د لا مدغم كړى، ان مخفف د مثقل دى باضمار ضمير الشان، او د لا تعبدوا سره كلمه د باء مصدر ده اى بان لا تعبدوا "الا الله" چې تاسې به عبادت نه كوئ بېله يوه واحد لاشريک خداى يعني توحيد المعبود بالحق.

**قَالُواْ لَوۡ شَآءَ رَبُّنَا لَأَنزَلَ مَلَٰٓئِكَةٗ فَإِنَّا بِمَآ أُرۡسِلۡتُم بِهِۦ كَٰفِرُونَ ١٤**

دوى وويل (اى عاد و ثمود) كه اراده واى د خداى زموږ (مفعول د شاء محذوف دى اى ارسال الرسل) را نازلې كړې به يې واى ملكې په رسالت سره، نو موږ په هغه شي يعني التوحيد ستاسې په زعم منكر يو، ولې تاسې خو مثل زموږ ياست څه فضيلت پر موږ لرئ.

**درويش وايي**: چې و مشركانو ته د هر وخت عجب حماقت دى چې رسالت چې ډېره كښته رتبه ده تر الوهيت پر بشر چې رسول دى چې هغه مشرف دى پر بتانو يې روا نه باله. او الوهيت چې تر هغه لوړه درجه نسته پر بتانو چې جمادات دي لا تنفع ولا تضر دوى عقيده پر درلوده.... مصرع: اين خيالست و محال است و جنون.

بغوي له جابر بن عبد الله رضي الله عنه څخه روايت كړى دى چې يو جماعت د قريشو و ابوجهل ته وويل چې پر موږ حال د محمد پوشيده دى يعني چې دى شاعر دى، كاهن دى او كه ساحر دى (د دوى احتمال د نبي والي په دماغو كې نه ؤ، كه واى هغه احتمال به يې هم راوړى واى) نو كه موږ د اسې يو سړى تلاش كړى واى چې عالم په شعر، كهانت او سحر سره واى. نو هغه سړي به د محمد ﷺ سره خبرې كړې

وای بیا به هغه مورړ ته راغلی وای او دده صحیح حال به یې مورړ ته بیان کړی وای، نو عتبه بن ربیعه‌رض ووېل والله لقد سمعت شعر و کهانة و سحر وعلمت من ذالک علمًا وما یخفی علي ان کان کذالک، یعني که دی ډیو له دغو درو ډلو څخه، نو دوی اجازه ورکړه چي ورسه خبري ورسره وکړه حال یې معلوم کړه، نو عتبه مذکور د علیه الصلوة والسلام کور ته ورغلی نو علیه الصلوة والسلام له کوره ورته راووتی، نو عتبه ورته ووېل یا محمد انت خیر ام هاشم (ته خیر یې که هاشم، چي د علیه الصلوة والسلام لورړ نیکه ؤ) بیا یې ورته ووېل چي ته خیر یې که عبد المطلب چي د علیه الصلوة والسلام نیکه ؤ، بیا یې ورته ووېل چي ته خیر یې که عبدالله چي د علیه الصلوة والسلام پلار ؤ، بیا یې ورته ووېل چي نو ته ولي ښکنځل کوې زموږ خدایانو ته یعني دا وایي چي دا جمادات دي لاتنفع ولاتضر او زموږ پلرونه او نیکه ګان ګمرهان بولې، او که ته په دعوی کي د رسالت ریاست غواړې موږ به ستا سره قرار داد د ریاست وکړو تر څو چي ته ژوندی یې، او که شهوت دریاندي غالبه دی موږ به تاته لس ښځي په نکاح درکړو چي ستا خوښي وي من ای بنات قریش، او که ته مال غواړې چي تجارت په وکړې موږ قریش به تاته دومره نقود درکړو چي ته غني سې او ستا پس مانده ګان هم یعني زامن، عتبه چي خبري کولې رسول اللهﷺ خاموش ناست ؤ، نو کله چي د عتبه خبري خلاصي سوې نو علیه الصلوة والسلام په قرائت د قرآن داسي شروع وکړه، بِسْمِ اللّٰهِ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ. حٰمٓ (۱) تَنْزِيْلٌ مِّنَ الرَّحْمٰنِ الرَّحِيْمِ (۲) كِتٰبٌ فُصِّلَتْ اٰيٰتُهٗ قُرْاٰنًا عَرَبِيًّا لِّقَوْمٍ يَّعْلَمُوْنَ (۳) إلی قوله فَاِنْ اَعْرَضُوْا فَقُلْ اَنْذَرْتُكُمْ صٰعِقَةً مِّثْلَ صٰعِقَةِ عَادٍ وَّ ثَمُوْدَ. تر اخیره پوري، نو عتبه یې پر خوله مبارکه لاس ورکښېښنو، بیا یې خبري د صله رحمی سره وکړې، عتبه ولاړی کور ته ولم یخرج الی قریش مدة ابوجهل ووېل یا معشر قریش، ما نری عتبة الا سبنا الی محمد، یعني د خپل دین څخه اوښتی دی او میل یې محمد ته کړی دی، لکه چي محمد به ښه ډوډی ورکړې وي درځئ چي ورسو عتبه ته، خیر خو عتبه یې له کوره راویستی، ابو جهل ورته ووېل یا عتبه ما حبسک عنا الا انک صبوت الی محمد یعني ته مرتد سوې له خپل دین څخه و محمد ته، او دده ډوډی ډېر خوند درکړی دی، که ته یا عتبه په مال اړ یې موږ به تاته مال جمع کړو

چي ستا احتياج په دفع سي، او د محمد له ډوډی څخه مستغني سې، عتبه ته ډېر غضب ورغلی، او قسم يې واخستی که زه ابداً له محمد سره خبري وکړم يعني په دې باره کي چي تاسي زه ور استولی وم وقال عتبة والله لقد علمتم اني اكثر قريش مالاً ولكني اتيته يعني چي زما اراده وه هغه ته ولي خبري مي ورسره وکړې فاجابني بشيئ اشارة و تلاوت د سورة حم وکړه والله ما هو بشعر ولا كهانة ولا سحر او عتبه هغه د عليه الصلوة والسلام سورة ټوله قريش او ابوجهل ته ووايه الى قوله تعالى فان اعرضوا فقل اني انذرتكم صعقة مثل صعقة عاد و ثمود، ما يې پر خوله لاس ور ونيوی، او د صله رحمی. روی مي ورته شفيع کړی، عتبه دوی ته وويل لقد علمتم چي تاسي ښه خبر یاست چي محمد چي يو خبره وکړي هغه دروا غ نه کرځي، نخفت ان ينزل عليكم العذاب، زه وبېرېدم چي پر تاسي به عذاب نازل سي.

**فائده:** محمد بن کعب قرضي ؒ وايي چي ماته رسېدلې ده دا چي عتبه بن ربيعه كان سيداً حليماً.

**درويش وايي:** چي په بل روايت کي د محمد بن کعب قرضي ؒ داسي راغلي دي چي عتبه بن ربيعه قريشو ته وويل يا معشر قريش اطيعوني (زما په خوله وکړئ) خلوا مابين هذا الرجل (يعني محمد ﷺ) يعني کار مه په لرئ، و بين ما هو فيه يعنى دعوى الرسالة فاعتزلوه فوالله ليكونن لقوله الذي سمعته نباء (يو شان سته) نو که دی نور عرب د مابينه يوسي يعني قتل يې کړي نو تاسي دده له قتل څخه خلاص سواست د بل چا په وژلو سره، او که دی غالب سو پر نورو عربو، نو دده سلطنت ستاسي سلطنت دی لانه من قومكم قريش، او دده عزت ستاسي د قريشو عزت دی نو به تاسي نژدې د خلګو یاست وده ته لکونه قريش مثلکم، نو د ابو جهل ډلي و عتبه ته وويل: سحرك والله يا ابا الوليد (والله پر تا محمد سحر کړی دی، ابو الوليد د عتبه کنيت دئ) قالوا: په خپله غوږه ژبه سره عتبه ورته وويل چي دا خو زما شخصي رايه ده او نصيحت دی و تاسي ته فاصنعوا ما بدأ لكم (تاسي دده سره هر څه چي کوئ وه يې کړئ، انتهى).

**درويش وايي:** ومع هذا عتبة بن ربيعة ايمان را نه وړی، كريمه "يهدي من يشاء" او علماء ټوله وايي چي ايمان موهبي شی دی، والله اعلم بالصواب.

فَاَمَّا عَادٌ فَاسْتَكْبَرُوْا فِى الْاَرْضِ بِغَيْرِ الْحَقِّ

کلمة فاء لتفصیل، هر څه چي عادیان وه هغو تکبر شروع کړی پر اهل الارض باندي بېله حقه (د بلاد یمن) .. بیت:

تکبر عزازیل را خوار کرد ........ بزندان لعنت گرفتار کرد

علماء په یوه خوله وایي چي اول تکبر له ابلیس څخه صادر سوی دی چي خدای ؒ ده او ټولو ملکو ته امر وکړی چي ادم ؑ ته سجده وکړئ فسجد الملائکة کلهم اجمعون، او ابلیس منع وکړه، څرنګه چي خدای ؑ له ده څخه پوښتنه وکړه چي ولي دي سجده ونه کړه؟ ده په جواب کي ورته وویل: انا خیر منه خلقتني من نار وخلقته من طین.

**فائده:** تفصیل یې په عاد سره وکړی له دې سببه چي دوی تر ثمود دمخه وه.

وَقَالُوْا مَنْ اَشَدُّ مِنَّا قُوَّةً

او وویل (هغه وخت چي دوی وبېرول له عذاب څخه د خدای ؑ نو دوی په خپل قوت او شوکت خطاوتل. نو داسي یې وویل) څوک دی سخت تر موږ من حیث القوة (نو قوة تمیز دی له نسبت څخه چي دوی وکړی د اشد و ځانو ته یعني موږ دفع د عذاب په خپل قوت سره کوو) تاریخ وایي چي د میانه سړي قد اتلس (۱۸) ګزه وُ او یوه د دوی له غره څخه لویه ګاره جلا کړه هر ځای چي به یې زړه غوښتی هورې به یې وغورځول، قال الله تعالی ردًا علیهم.

اَوَلَمْ يَرَوْا اَنَّ اللّٰهَ الَّذِىْ خَلَقَهُمْ هُوَ اَشَدُّ مِنْهُمْ قُوَّةً ۗ وَكَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ۝

الاستفهام للانکار وکلمة الواو معطوف علی مقدر (کما هو القانون في النحو وقد مر مرارًا في هذا التفسیر، والتقدیر ههنا قالوا ذالک ولم یروا ای لم یعلموا) ترجمه: آیا نه ویني دوی چي په تحقیق هغه خدای ؑ چي دوی یې پیدا کړي دي هغه خدای ؑ قوي او اشد دی تر دوی په قوت او قدرت کي، او وه دوی په آیاتو یعني په معجزاتو سره زموږ چي انکار یې کاوه.

**فائده:** وکانوا عطف دی پر قالوا.

فَاَرْسَلْنَا عَلَيْهِمْ رِيْحًا صَرْصَرًا فِىْٓ اَيَّامٍ نَّحِسَاتٍ

موږ واستاوه (عطف دی پر کانوا) پر دوی باد "صرصرًا" یعني شدید الصوت

اوشديد البرد والضر البرد، چې عاديان به يې پورته کړه د اسمان پر خوا او پر سرو به يې ايله کړه، په هغه ورځو کې چې منحوسي وې ددوی په حق کې، الضحاکؒ وايي چې خدایؐ پر دوی درې کاله باران بند کړی او وچ باد به جاري وُ، وقيل کان الريح جاريًا في اخير الشوال له يوې چهار شنبې څخه تر چهار شنبې پورې په دوهمه چهار شنبه ټول له خلک هلاک سوه، وفي الحديث الصحيح ثموديان د پاسه باد يعني مشرقي باد هلاک کړه واهلکت عاد بالدبور، يعني د کښتني باد يعني غربي.

لِّنُذِيقَهُمْ عَذَابَ الْخِزْيِ فِي الْحَيٰوةِ الدُّنْيَاۖ

چې زه په دوی وڅکم يعني نازل کړم (يعني ليس المراد ذوق الفم) عذاب د سپکاوي، په دې ناقص يا نژدې ژوند کې

**پوه سه:** چې اضافت د عذاب و خزي ته اضافت د موصوف دی و صفت ته مثل رجل الحرب وحاتم الجود.

**فائده:** توصيف د عذاب په خزي سره مبالغة دی لکه زيد عدل وکذا في المثالين المذکورين، تدبر.

وَلَعَذَابُ الْاٰخِرَةِ اَخْزٰى وَهُمْ لَا يُنْصَرُوْنَ ﴿۱۶﴾

او هر آئينه عذاب د اخيرت ډېر د اهانت دی.

**فائده:** په آيت کريمه کې "اخزی" صفت وګرځاوه که څه هم اخزی خو کافر دی مجازًا مبالغةً "وهم لاينصرون" ددوی سره کومک نه کړل کيږي چې عذاب دې ځني دفع کړل سي.

وَاَمَّا ثَمُوْدُ فَهَدَيْنٰهُمْ

او هر څه چې ثمود وه موږ دوی ته هدايت وکړی يعني دلالت پر خير (چې ايمان دی او شر چې کفر او شرک دی) چې دې هدايت ته په اصطلاح کې ارائة الطريق وايي يعني رسول مؤيد بالمعجزت مو ور واستاوه.

فَاسْتَحَبُّوا الْعَمٰى عَلَى الْهُدٰى فَاَخَذَتْهُمْ صٰعِقَةُ الْعَذَابِ الْهُوْنِ

دوی مختاره کړی جهل او شرک پر هدايت او ايمان، نو دوی ونيول اواز مهلک بالاستيصال د اسمان له خوا څخه.

**یوه سه:** چې صاعقة په پښتو تکه بولي چې تېز اور دی چې له وريځې څخه راښوه سي، دلته هغه معنی مراد نه ده بلکې مراد ځني صوت مهلک دی د اسمان له خوا څخه.

**یوه سه:** چې اضافت د صاعقة و عذاب ته او توصیف د عذاب په هون سره مجاز دی لپاره د مبالغې.

بِمَا كَانُوا يَكْسِبُونَ ﴿۱۷﴾

یعني باختیار الکفر والضلالة علی الهدی والایمان، والباء للسببیة وکلمة ما موصولة والعائد محذوف ای بسبب شیئ یکسبونه.

وَنَجَّيْنَا الَّذِينَ آمَنُوا وَكَانُوا يَتَّقُونَ ﴿۱۸﴾

او موږ نجات ورکړی له صاعقه څخه و هغو کسانو ته چې ایمان یې راوړی وُ او د له خدای څخه بېرېدل.

وَيَوْمَ يُحْشَرُ أَعْدَاءُ اللَّهِ إِلَى النَّارِ فَهُمْ يُوزَعُونَ ﴿۱۹﴾

(ویوم) ای اذکر یا محمد و مکې والو ته هغه ورځ، چې جمع کړل کېږي دښمنان د خدای (چې کافران دي من ای نوع کانوا) و اور ته، نو دوی شړل کېږي اور ته او که په زوره د خزنة النار له خوا ورغورځول کېږي اور ته، او قتاده او سدي وايي چې یحبس اولهم علی اخرهم چې سره غونډ سي بیا دوږخ ته ور غورځول کېږي، بیضاوي وايي هي عبارة عن کثرة اهل النار.

**درویش وايي:** چې اهل النار په غایت الغایة کې د کثرة دي ولا یعلم کثرتهم الا الله تعالی، حتی غایة د یحشروا او یوزعوا.

حَتَّى إِذَا مَا جَاءُوهَا شَهِدَ عَلَيْهِمْ سَمْعُهُمْ

چې دوی ورسي یعني حاضر سي، شاهدي اداء کړي پر دوی او رېده د دوی یعني غوږونه

**یوه سه:** چې کلمه د ما زائده ده لپاره د تاکید اتصال الشهادة بالحضور.

**فائده:** اسماعهم یې نه دو وایه او سره د دې چې شاهدي خو غوږونه اداء کوي لان السمع في الاصل مصدر وان کان المراد به الاذن، شاهدي د غوږو په هغه شي چې

په دوی حرامي خبري اورېدل سوي وي لکه غيبت او بهتان چي څوک يې پر چا وايي او د بل سړي غوږونه يې اوري.

**وَاَبْصَارُهُمْ وَجُلُوْدُهُمْ بِمَا كَانُوْا يَعْمَلُوْنَ۝**

او سترګي ددوی (چي په شهوت يې و ښځي ته کتلي وي، ابصار يې جمع راوړی لان المراد به العين لا المعنى المصدري، قالوا النكتة للغار لا للقار. فتأمل) او پوستونه ددوی، يعني ظاهر بدن ددوی (چي ده لمس د حرام په کړی وي) کلمه د ما مصدريه ده اى بعملهم ويحتمل انتكون موصولة فالعائد الى ما محذوف اى بالذي يعملونه به.

**پوښته:** چي السدي" وايي چي مراد له جلود څخه فروج دي لکن ګناه خو يوازي پر فرج نه ده، فالظاهر العموم ليتناول اللمس الحرام ايضًا وقال مقاتل[رح] ينطق جوارحهم يعني مراد د شهادة څخه مطلق دی کما يدل عليه الحديث الصحيح الذي رواه مسلم عن انس[رض] چي مور د عليه الصلوة والسلام سره ناست وُ فضحک (ده خندل او وه يې ويل) هل تدرون ما اضحک؟ تاسي خبر ياست چي زه پر څه شي خاندم؟ صحابه کرامو[رض] ورته وويل الله ورسوله اعلم قال[ع] من مخاطبة العبد ربه يعني يوم القيامة (درويش وايي چي دا حديث د وحي خفي له جملې څخه دی) يقول: بنده وايي د خدای[ج] په نزد آيا ما تا ته پناه نه ده راکړې له ظلم څخه يعني په ورځ د قيامت، ظلم زه کوم پر بنده فيقول يعني الله[ج] بلى، هو ما تا ته پناه درکړې ده له ظلم څخه، نو بنده ورته وايي چي زه د چا شاهدي نه قبلوم الا شاهدًا مني يعني د کرام کاتبين شاهدي نه قبلوم، نو خدای پاک ورته وايي: كفى بنفسک اليوم عليک شهيدًا، فيختم على فيه، نو پر خوله يې مهر ور ولګوي يعني خبري نه سي کولای، ويقال لاركانه واعضائه انطقي خبري وکړئ فينطق باعماله، وروسته يې ژبه ايله سي يعني خبري شروع کړي، نو دی خپلو اعضاوُ ته ووايي بعدًا لکن وسحقًا فلكن انا فعل، د خدای[ج] له رحمت څخه لېري سئ او هلاک دي وي تاسي لره ما ستاسي د اور څخه د ساتلو لپاره د خدای[ج] سره بحث او خبري کولې يعني هغه د مخه خبري چي ذکر سوې.

**پوښتنه:** بېله ژبه نور اعضاء د انسان څرنګه خبري کولای سي؟

**ځواب:** ددې خبري جواب به په راتلونکي آيت کي راسي، او دا غه رنګه په صحيح

حديث کې چې روايت يې ابن مسعود رضي الله عنه کړی دی چې يوه ورځ موږ څو کسه د عليه الصلوة والسلام پر کاسه پرده وو، ناست وو او موږ تولو د کاسې تسبيح اورېدلې، او داغه رنګه په صحيح حديث کې چې روايت يې بخاري کړی دی راغلي دي عليه الصلوة والسلام وايي چې زه هغه ډبره اوس هم پېژنم چې زه غار حرا ته تلم (يعني قبل النبوة والوحي) دې ډبرې به وويل السلام عليک يا رسول الله، او داغه رنګه په صحيح حديث کې راغلي دي چې يوې ښځې د يهودانو په خيبر کې عليه الصلوة والسلام ته په مېلمنۍ د پخو غوښو راوړه او په ولي کې د پسه يې ډېر زهر اچولي وه، چې د عليه الصلوة والسلام د ولې غوښې خوښې وې، نو عليه الصلوة والسلام چې يوه يا دوې ګولې وخوړلې اصحابو رضي الله عنهم ته يې وويل چې لاس ونه پورته کړئ په غوښو کې زهر دي، بيا يې هغه ښځه راغوښتل چې تا په دې غوښو کې زهر اچولي وه؟ هغې ورته وويل چې چا درته وويل، عليه الصلوة والسلام ورته وويل چې د غه د پسه ولې راته وويل، نو هغې اقرار وکړی چې هو ما زهر وراچولي وه، دې وويل چې زما د زهر اچولو څخه مقصد دا وُ چې که دا سړی نبي په رښتيا وُ خو زهر تا وان نه ورته کوي او که نبي نه وُ د غمه به يې موږ يهودان خلاص سو يعني زهر به يې ووژني، الی اخير الحديث، او نور ورته حديثونه ډېر دي، وفيما اوردناه کفاية لاهل البصيرة، والحاصل چې په نېز د اهل السنة والجماعة د خبرو کولو لپاره بنية انساني شرط نه ده للحيات والعقل والقدرة، يعني مع الله تعالى.

وَقَالُوا لِجُلُودِهِمْ لِمَ شَهِدتُّمْ عَلَيْنَا ۖ قَالُوا أَنطَقَنَا اللَّهُ الَّذِي أَنطَقَ كُلَّ شَيْءٍ وَهُوَ خَلَقَكُمْ أَوَّلَ مَرَّةٍ وَإِلَيْهِ تُرْجَعُونَ ﴿٢١﴾

وويل دغه کسانو چې د دوږخ اچولو لپاره راجمع کېدل، تاسې ولې شاهدي اداء کړه پر موږ باندې بعداً لکن کما مر في حديث مسلم.

**درويش وايي**: چې هغه آيت چې ما وعده کړې وه چې د دې پوښتنې جواب به په راتلونکي آيت کې راسي، ترجمه: پوستو کو ورته وويل چې موږ پر نطق راوستلو هغه ذات چې الله دی چې ملکه (قدرت) د نطق او د خبرو يې و هر شي ته ورکړې ده.

**درويش وايي**: چې بخاري او مسلم او بغوي رحمهم الله له ابن مسعود رضي الله عنه څخه داسې روايت کړی دی چې سره جمع سوه په وړاندې د البيت الشريف دوه کسه د ثقيف د قبيلې خلک او يو قريشي يا دوه قريشان او يو د ثقيف د قبيلې (درويش وايي چې

دا ترديد شک د راوي دی) كثير شحم بطونهم (چي ډېري وي وازګي د نسو ددوی) قليل فقه قلوبهم (او لږ وه هوشياري د زړو ددوی) نو يوه ددې درو كسانو څخه وويل اترون ان يسمع الله ما نقول (ستاسي خيال دی چي خدای به اوري دا زموږ خبري) هغه بل ورته وويل يسمع ماجهرنا ولايسمع ما اخفينا (په زوره خبري اوري او نه يې اوري كه موږ كرار خبري سره كوو) هغه بل ورته وويل ان يسمع ماجهرنا فانه يسمع ما اخفينا (كه يې د جهر خبري اورېدلې نو ما اخفا هم اوري)

وَمَا كُنْتُمْ تَسْتَتِرُوْنَ اَنْ يَّشْهَدَ عَلَيْكُمْ سَمْعُكُمْ وَلَآ اَبْصَارُكُمْ وَلَا جُلُوْدُكُمْ

تاسي په وخت د فواحشو كولو ځانونه پټول يعني په دنيا كي (ان يشهد) په حذف د جر ای عن) پر تاسي به شاهدان وي ستاسي اورېدل او ستاسي ليدل او ستاسي پوستونه. يعني لكه د خلكو څخه چي مو ځانونه پټول په وخت كي د فواحشو كولو چي رسوا نه سم په خلكو كي. فالمعنى ماكنتم تظنون ان جوارحكم تشهد عليكم ای بالفواحش فلهذا له جوارحو څخه مو ځانونه نه پټول.

وَلٰكِنْ ظَنَنْتُمْ اَنَّ اللّٰهَ لَا يَعْلَمُ كَثِيْرًا مِّمَّا تَعْمَلُوْنَ

لكن دا مو ګمان و چي په تحقيق خدای ج علم نه لري پر ډېرو كارو چي تاسي يې عمل كاوه يعني هغه كارونه چي موږ يې په پرده وكړو نو هم له دې كبله مو فواحش په پرده كي كوله.

وَذٰلِكُمْ ظَنُّكُمُ الَّذِيْ ظَنَنْتُمْ بِرَبِّكُمْ اَرْدٰىكُمْ فَاَصْبَحْتُمْ مِّنَ الْخٰسِرِيْنَ

نو دغه ظن ستاسي (ذالكم مبتداء ده) چي تاسي يې كوئ (ارداكم) ای اهلككم (دا يې خبر دی او داسي هم ممكنه ده چي ظننتم بدل وي د اسم اشاره څخه او رداكم دې خبر وي) نو تاسي وګرځېداست چي په خسران كي د قيامت واقع سواست، په وروسته آيت كي خدای جل جلاله ددوی حال بيانوي.

فَاِنْ يَّصْبِرُوْا فَالنَّارُ مَثْوًى لَّهُمْ وَاِنْ يَّسْتَعْتِبُوْا فَمَا هُمْ مِّنَ الْمُعْتَبِيْنَ

كه ددوی صبر وكړي پر اور د دوږخ. نو اور ددوی كرار ګاه ده يعني لاخلاص لهم عنها. او كه ددوی طلب د رجوع وكړي و هغه شي ته چي ددوی خوښه وي او خدای جل جلاله

له ځانو ځخه راضي کړي يعني دنيا ته يې رد کړي او ايمان راوړي او اعمال صالحه وکړي، نو د دوی ځخه خواست د اجابت نه کول کېږي، ولې دا ايمان اضطراري دی.

وَقَيَّضْنَا لَهُمْ قُرَنَاءَ فَزَيَّنُوا لَهُم مَّا بَيْنَ أَيْدِيهِمْ وَمَا خَلْفَهُمْ

مور استولی دی دوی ته (يعني کفارو ته) (قرناء) جمع د قرين ده لکه کرماً جمع د کريم ده په معنی د مثل د دوی من الشياطين يا د قرين معنی خطايستونکی والمآل واحد، نو هغو قرناؤ و دوی ته ښائسته کړی هغه شی چې په مابين کې د لاسو د دوی دی يعني حاضر دی (يعني امور الدنيا واتباع الشهوات) او هغه چې تر دوی وروسته دي يعني انکار الآخرة والبعث بعد الموت.

وَحَقَّ عَلَيْهِمُ الْقَوْلُ فِي أُمَمٍ

او ثابته وګرځېدل پر دوی کلمه د عذاب د خدای (في امم) حال دی له ضمير مجرور ځخه د عليهم ای کائنين في جملة امم.

قَدْ خَلَتْ مِن قَبْلِهِم مِّنَ الْجِنِّ وَالْإِنسِ إِنَّهُمْ كَانُوا خَاسِرِينَ ﴿٢٥﴾

په تحقيق تېر سوي دي تر دوی د مخه (قد خلت آه، صفت دی د امم) له انسانانو او پېريانانو ځخه (من الجن والانس، دا هم صفت دی د امم) انهم کانوا خٰسرين. دا جمله علت ده د استحقاق د عذاب د دوی وخسرانهم د دوی دا دی چې مختاره کړي يې دي اسباب د عذاب يعني کفر او د نار پر اسبابو د رحمت من الايمان والطاعة چې اسباب د ځای د رحمت دي من الجنة ونعيمها.

وَقَالَ الَّذِينَ كَفَرُوا لَا تَسْمَعُوا لِهَٰذَا الْقُرْآنِ وَالْغَوْا فِيهِ

وويل هغه کسانو چې کفر يې کړی ؤ، چې د اهل مکه رئيسان وه و خپلو اتباعو ته يا معنی داده چې بعض د دوی و بل بعض ته وويل، غوږ مه نسئ و دې قرآن ته يعني په پټه مه ورته کښېنئ (والغوا فيه) اخرج ابن ابی حاتم رح عن ابن عباس رض کان النبي ﷺ وهو بمکة اذا قرأ القرآن يرفع صوته (په ډېر جهر سره به يې وايه) مشرکانو د مکې چې به د عليه الصلوة والسلام و قرائت ته غوږ نيولی ؤ، نو هغه به د دوی شړل او دا به يې ورته ويل لاتسمعوا لهذا القرآن وأتوا باللغو چې محمد دا قرآن وايي نو تاسي داسي فعل کوئ چې دده فکر سره مشوش سي، نو عليه

الصلوة والسلام چي به قرآن شروع کړی چا به شپیلکی کاوه او چا به چکچکي کولې چا به ایله ناري وهلې چا به غزلي ویلې، وعلی هذا فقس، نو مراد له الغو څخه ما لا اصل له، او ابو العالية رح وایي چي د لغو معنی داده په آیت کي چي دی قرائت شروع کړي تاسي دده عیبونه شروع کړئ یعني ناحقه عیبونه پوري غوټه کوئ مثلاً، یا شاعر یا کاهن یا ساحر یا مجنون یا مفتر.

**لَعَلَّكُمْ تَغْلِبُونَ ۝**

نو شاید دده پر قرائت به غالبه سئ، یا پر خودي محمد ﷺ به غالبه سئ چي باره به قرائت نه وایي په مسجد الحرام کي.

**فَلَنُذِيقَنَّ الَّذِينَ كَفَرُوا عَذَابًا شَدِيدًا**

نو موږ به دوی ته رسوو (یعني لیس المراد زوق الفم بلا الاصابة) عذاب سخت چي اندازه د هغه عذاب څوک نسي کولای.

**سوال:** کفار خو د مخه ذکر سوه، نو ضمیر یې ولي نه راجع کاوه؟

**ځواب:** لپاره د تسجیل د کفر پر دوی او لپاره د شمول د حکم د نورو کافرانو چي د کفار مکه کارونه کوي، وضع د ظاهر یې پر ځای د مضمر وکړه.

**وَلَنَجْزِيَنَّهُمْ أَسْوَأَ الَّذِي كَانُوا يَعْمَلُونَ ۝**

زه به دوی ته جزاء ورکړم د سیئاتو د عملو ددوی، نو د اسوء په معنی د تفضیل نه دی بلکي په معنی د صفت مشبه دی، او یا معنی داده چي زه به دوی ته جزاء د کفر ورکړم چي هغه ډېر لوی بد کارۇ چي دوی یې په دنیا کي عمل کاوه یعني نور معاصي یې هم کول لکن کفر لوی بد کارۇ، نو اسم تفضیل پر خپله معنا پاته دی، له ابن عباس رض څخه روایت دی عذابًا شدیدًا یوم بدر ده (چي په شمول د فرعون الامة ابو جهل او ویا کسه ووژل سول او اوویا په حصارت ونیول سول) واسوی الذي کانوا یعملون في الاخرة انتهی، چي دا تفسیر په اعتبار د واقعي د کفار د مکي دی یعني لاتسمعوا لهذا القرآن آه.

**ذَٰلِكَ جَزَاءُ أَعْدَاءِ اللَّهِ النَّارُ ۖ لَهُمْ فِيهَا دَارُ الْخُلْدِ ۖ**

(ذالک) ای الاسوء عذاب، مبتداء ده) جزاء او عذاب دی د دښمنانو د خدای ج دا خبر د ذالک دی (النار) عطف بیان دی د جزاء یا خبر د مبتداء محذوفي دی، دوی لره په آخرت کي ځای د اقامت ابدي سته.

جَزَآءًۢ بِمَا كَانُوْا بِاٰيٰتِنَا يَجْحَدُوْنَ ۝

(جزآء) مفعول د فعل مقدر دی ای يجزون او دا جمله تاکيد د ماسبق ده) په سبب دديے چې دوی وه په دنيا کې له آياتو څخه زموږ چې قرآن کريم دی انکار يې کاوه. يا معنی دا ده يلغون عند تلاوة القرآن.

**سوال**: په قرآن کريم کې خو جحود ذکر دی چې معنی يې انکار دی کما مر في التفسير الاول، نو اراده د يلغون آه څرنګه ځني روا ده؟

**ځواب**: ذکر سبب دی چې جحود دی مراد ځني مسبب دی چې لغو عند قرائة القرآن، وهذا مجاز شائع في العربية.

وَقَالَ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا رَبَّنَآ اَرِنَا الَّذَيْنِ اَضَلّٰنَا مِنَ الْجِنِّ وَالْاِنْسِ

او وويل هغه کسانو چې کفر يې کړی وُ، ای ربه زموږ په موږ وويني هغه کسان چې موږ يې ګمراهان کړي وُ، که د جن وي مراد ځني شيطانان دي او که د انس څخه وه چې مراد ددوی رئيسان دي چې دوی يې له اسلام راوړلو څخه منع کول له جبرًا.

**درويش وايي**: چې کفروا اګرچه ماضي ده او دا قول د کفارو خو په دوږخ کې دی و هغه مستقبل بعيد دی، بايد يقول الذين وای، لکن چونکه دا قول موعود د خدای عزوجل مستحق الوقوع لامحالة دی نو لکه ماضي دی، دا جمله عطف ده پر مضمون د کلام سابق ای عذبوا وقالوا يعني يقولون بعد مايلقون في النار.

نَجْعَلْهُمَا تَحْتَ اَقْدَامِنَا لِيَكُوْنَا مِنَ الْاَسْفَلِيْنَ ۝

چې موږ وګرځوو لاندې تر پښو زموږ يعني په اور کې يعني عذاب يې سخت وګرځي (ليکونا من الاسفلين) دوی وګرځيده. قال ابن عباس رضي الله عنه ليکونا اشد عذابًا منا، يعني په ثقل سره زموږ.

اِنَّ الَّذِيْنَ قَالُوْا رَبُّنَا اللّٰهُ ثُمَّ اسْتَقَامُوْا

په تحقيق کوم خلګو چې وويل چې رب زموږ الله دی (يعني د زړه په اخلاص سره اعترافًا او په خوله سره اقرارًا) "ثم استقاموا" يعني بيا پر ځانو لازم وګرځوي طريق مستقيم يعني په طاعاتو کې او په ترک کې د منهياتو، په روايت د ابی بکر الصديق رضي الله عنه راغلي دي چې ده د صحابه رضي الله عنهم څخه پوښتنه وکړه چې تاسې څه وايا ست په

تفسير كي د دغو دوو آياتو (ان الذين قالوا ربنا الله ثم استقاموا، والذين آمنوا ولم يلبسوا ايمانهم بظلم) نو صحابه كرامو رضي الله عنهم ورته وويل چي معنى يې دا ده الذين قالوا ربنا الله ثم عملوا بها واستقاموا على امره تعالى فلم يذنبوا ولم يلبسوا ايمانهم بظلم ثم لم يذنبوا اصلاً، قال ابوبكر رضي الله عنه لقد حملتموها على امر شديد (يعني دا دې دوو آيتو تاسي ډېر سخت او ګران تفسير وكړى) بلكي معنى يې دا ده الذين امنوا ولم يلبسوا ايمانهم بظلم يقول بشرك والذين قالوا ربنا الله ثم استقاموا يعني لم يرجع الى عبادة الاوثان، كذا في ازالة الخفاء للشيخ ولي الله المحدث الدهلوي.

وروى النسائي والبزار وابو يعلى وغيرهم عن انس رضي الله عنه قالوا قرء علينا رسول الله ﷺ هذه الآية ان الذين قالوا ربنا الله ثم استقاموا قد قالها ناس من الباس (د عذاب له سببه او له تكليفه) ثم كفروا اكثرهم فمن قالها يعني ربنا الله حتى يموت فهو ممن استقام علما، او كما قال رسول الله ﷺ.

**درويش وايي:** چي د ابوبكر رضي الله عنه تفسير او دا دې حديث نبوي تفسير اسهل او اشمل تفسير دى والله اعلم.

**پوه سه:** چي كلمه ثم لپاره د تراخي د استقامت په رتبه كي تر اقرار يعني ربنا الله، او مظهري رحمه الله وايي چي مراد له استقامت څخه الاعتدال وعدم الزيغ والانحراف عن الحق بوجه من الوجوه لا في الاعتقاد ولا في الاعمال، ومنه الصراط المستقيم في سورة الفاتحة اهدنا الصراط المستقيم اى الطريق السوي الذي يوصل سالكه الى المطلوب النية (چي تلونكى پر هغه لار مستقيم خامخا و مطلوب ته رسوي يعني رضى الرحمن والدخول الاولى في الجنان، نو استقامت لفظ مختصر دى لكن په معنى كي ټول له شرائع او احكام نغښتي دي من الاتيان بالمأمورات والاجتناب عن المنهيات على سبيل الدوام والثبات.

**درويش وايي:** چي دا سي استقامت په عصر حاضر كي يعني سنه (۱۴۳۲ هـ) بلكي تر دې ډېر دمخه هم نادر دى غاية الندرة الامن وفقه الله عزوجل، رزقنا الله الاستقامة المذكورة بمحض فضله وكرمه وذالک ليس على الله بعزيز.

**درويش وايي:** چي چونكه دا استقامة لفظ اخصر ؤ او معنى يې ټوله و دين اسلام ته شامل ده. لكه هغه حديث چي سفيان بن عبد الله الثقفي رضي الله عنه چي د عليه الصلوة والسلام

څخه پوښتنه وکړه چي يا رسول الله ﷺ ماته په اسلام کي يو داسي جامع خبره وکړه چي بيا سوال ونه کړم احداً وفي رواية غيرک، قال ﷺ قل امنت بالله ثم استقم.

**درويش وايي**: چي د ابوبكر الصديق ﷺ تفسير تاسي واورېدی، او عمر بن الخطاب ﷺ يې داسي تفسير کړی دی ان تستقم على الامر والنهي، او عثمان بن عفان ﷺ يې داسي تفسير کړی دی: اخلصوا العمل لله تعالى، او علي بن ابي طالب ﷺ وايي: ادوا الفرائض، او ابن عباس ﷺ يې داسي تفسير کړی دی: استقاموا على اداء الفرائض، او الحسن رح وايي استقاموا على امر الله فاعملوا بطاعته واجتنبوا معصية، او مجاهد رح او عكرمه رح وايي استقاموا على شهادة ان لا اله الا الله، او مقاتل رح وايي استقاموا على معرفة الله فلم يرتدوا.

**درويش وايي**: چي دا ټولي معاني سره نژدې دي، فتأمل فيها.

تَتَنَزَّلُ عَلَيْهِمُ الْمَلٰٓئِكَةُ اَلَّا تَخَافُوْا وَلَا تَحْزَنُوْا

نازلېږي پر دوی ملكي لپاره د بشارت، ابن عباس ﷺ وايي عند الموت وقال قتادة ومقاتل اذا قاموا من قبورهم، وقال وكيع بن الجراح رح البشرى يكون في ثلاثة مواطن، زيری په درو ځايو کي کېږي، عند الموت وفي القبر وعند البعث.

**پوه سه**: چي د الا اصل ان لا ؤ نون يې په لام کي مدغم کړی، نو ان مفسره دی د تتنزل عليهم، وترجمة الآية: يعني تاسي مه بېرېږئ د ما تقدمون عليه من امور الآخرة، كذا قال مجاهد رح، او غم مه کوئ پر ما خلفتم من المال والاولاد (ولي چي خدای ج وايي چي زه ستاسي خلف په هغو يعني د رزق او حفاظت لپاره، او عطاء بن ابي رباح رح وايي لا تخافوا عن العقاب ولا تحزنوا على صدور العصيان فان الله يعفوها لكم)

وَاَبْشِرُوْا بِالْجَنَّةِ الَّتِيْ كُنْتُمْ تُوْعَدُوْنَ ۝

او خوشحاله واوسئ په دخول د جنت هغه جنت چي ستاسي سره يې وعده کړهل سوې وه له جانبه څخه د خدای ج پر ژبه د رسولانو ؏، ابو نعيم له ثابت بناني رح څخه روايت کړی دی چي ده سورة حٰمٓ السجدة تلاوت کاوه دې ځای ته چي راورسېدی تتنزل عليهم الملائكة نو يې داسي وويل بلغنا، مورته رارسېدلي ده چي عبد مؤمن چي له قبره څخه راووزي يعني بالنفخة الثانية، نو هغه دوې ملكي چي په

ژوند کي دده سره ورسره وي هغه ملکي ده ته ووايي لاتخف ولا تحزن وابشر بالجنة التي كنت توعد . قال اى الراوي فيأمن من الله خوفه د خداى ؒ له پېرې ځخه بېغمه سي او سترګي يې خنکي سي چي کنايه ده په عربي ژبه کي.

## نَحْنُ اَوْلِيٰٓؤُكُمْ فِى الْحَيٰوةِ الدُّنْيَا وَفِى الْاٰخِرَةِ

اى موږ ستاسي دوستان ؤ او ستاسي سره درسره ؤ په دنيا کي چي د شیطانانو ځخه به مو ساتلاست او په زړو کي مو الهام د خير درته کاوه على رغم الشياطين چي په وسوسو به يې شر په زړو کي دراچاوه، او موږ ستاسي دوستان يو په اخرت کي يعني چي نه در ځخه جلا کېږو تر ځو چي تاسي جنت ته داخلېږئ.

## وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَشْتَهِيٓ اَنْفُسُكُمْ وَلَكُمْ فِيهَا مَا تَدَّعُوْنَ ۝

او تاسي لره په جنت کي هغه کرامات او لذات سته چي ستاسي زړونه په خوشحاله کېږي، او تاسي لره په جنت کي دعاء يعني تمنى او طلب يې کوئ.

## نُزُلًا مِّنْ غَفُوْرٍ رَّحِيْمٍ ۝

مهماني ده له جانبه ځخه د بخښونکي او مهربان خداى ؒ.

**فائده:** د نزلاً د لفظه دا معلومه سوه چي هغه دوى چي يې تمنّى درلوده نسبت و هغو نعمتو ته چي خداى ؒ دوى ته ورکړه دوى يې تصور هم نه ؤ کړى لکه مهماني د مهمان نواز سړي چي د مېلمه هيڅ طمع د داسي مهمانۍ نه وي.

**درويش وايي:** چي د نزلاً من غفور رحيم تر عنوان لاندي صائب اصفهاني ؒ چي يو نامورى محقق شاعر دى داسي وايي:

ازين چه سود که در گلستان وطن دارم .. مراکی عمر چو نرگس بخواب ميگذرد

بايزيد بسطامي ؒ وايي:

شربت كأسا بعد كأس.... فما نفذ الشراب ولا رويت

## وَمَنْ اَحْسَنُ قَوْلًا مِّمَّنْ دَعَآ اِلَى اللّٰهِ وَعَمِلَ صَالِحًا

(من) الاستفهام للانكار اى لا احد احسن (قولا) از جهت سخن تمييز من نسبتِ احسن الى من) او په خپله هم عمل صالح کوي يعني فيما بينه وبين ربه، يعني داسي و خداى ؒ ته نه وي لکه يو شاعر چي وايي:

واعظان چون جلوه درمحراب و ممبر ميکنند ...... چون بخلوت ميروند کاری ديگر ميکنند

وَقَالَ إِنَّنِي مِنَ الْمُسْلِمِينَ ﴿٣٣﴾

او دا هم ووايي چي زه د مسلمانانو څخه يم، دا ويل اشاره وده ته ده چي ايمان شرط دی د عمل صالح.

**فائده:** په دې کي رد دی على من يقول انا مسلم ان شاء الله تعالى، په علم كلام كي وايي چي دا ان شاء الله ويل كه د شک لپاره وي په خپل اسلام کي دا خو كفر دی، او که لپاره د ادب مع الله وي يعني حواله د ټولو کارو خدای ﷻ ته کوي يعني و مشيت ته د خدای ﷻ او يا لپاره د عاقبت الامر وي لا في الآن والحال او يا لپاره د تبرک بذکر الله وي، يا تزكيه د خپل نفس نه کوي نو پروا نه لري.

**فائده:** حکم د دې آيت هر هغه چاته شامل دی چي دغه خصال حميده پکښې وي، وان نزلت كه څه هم نازل دی په عليه الصلوة والسلام او په اصحابو ﷺ کي او يا په مؤذنانو کي، ولي چي مؤذنان هم خلګو ته دعوت د لمانځه ورکوي.

**پوښتنه:** دا سورة خو ټوله په اتفاق مکي دی، او اذان خو په مدينه منوره کي مشروع سوی دی؟

**ځواب:** ايت دي په مکه کي نازل وي او حکم دې متأخر تر نزول وي، قاله الحافظ ابن حجر ﷺ، او په قرآن كريم کي نور داغسي آيتونه هم سته، وقالت عائشة ﷺ نزلت الآية في المؤذنين واختاره المظهري ﷺ.

**فائده:** پوه سه چي دعوت و خدای ﷻ ته څو مرتبې لري (۱) اول مرتبه دعوة د انبياء عليهم السلام دی، دوی طريقه د دعوت الى الله يا اظهار د معجزاتو او براهينو عقليه هم و كفارو ته وايي، اخيري درجه د دعوت استعمال السيف دی يعني الجهاد في سبيل الله (۲) دويمه درجه دعوت د علماء دی فانهم يدعون الخلق الى الله بالدلائل العقلية والبراهين النقلية فقط يعني د توري د استعمال اجازه نه لري، حسين كاشفي ﷺ در تفسير حسيني ميگويد: امام فقيه ابو الليث السمرقندی ﷺ فرموده که مراد ازين ايت مذكوره علماء اند كه معالم دين بمردم آموزند و عمل صالح و ايشان آنست که هرچه دانند بآن خود هم عمل کنند، نه آنکه شاعر میگوید ... بيت:

واعظان چون جلوه درمحراب و ممبر ميكنند ..... چون بخلوت ميروند کاری ديگر ميکنند

يا محتسبان اند که قواعد امر بالمعروف ونهي عن المنكر را تمهيد دهند

وبمردم بیان نمایند، وعمل صالح ایشان آنست که صبر او تحمل وانچه بدیشان رسند از مکاره مردم صبر و تحمل کنند.
والعلماء ثلاثة اقسام (۱) عالم بالله وغیر عالم بامر الله یعني باحکامه (لکه عابد جاهل) (۲) عالم بامر الله و نهیه واحکامه غیر عالم بالله لکه عالم فاسق غیر عامل باوامره ونواهیه (۳) عالم بالله وعالم باحکامه لکه عالم عمل صالح، یعني یطابق حاله مقاله، فهذا القسم الثالث یصلح لدعوة الناس الی الله عزوجل (۳) مرتبة الدعوة بالسیف وهم الملوک المسلمین یجاهدون الکفار حتی یدخلون في دین الله وطاعته او یعطو الجزیة عن ید وهم صاغرون، والمرتبة الرابعة دعوة المؤذنین الخلق ای المسلمین الی الصلوة وهي اضعف مراتب الدعوة الی الله تعالی.
**درویش وایي:** چي مظهري رح د اضعف مرتبه د دعوة الی الله په تفصیل بیان کړي ده او روح البیان هم څه ناڅه تفصیل راوړی دی.
فصل في فصل الاذان: عن معاویة رض قال قال رسول الله ﷺ المؤذنون اطول الناس اعناقًا یوم القیامة رواه مسلم.
**درویش وایي:** چي طول د غاړي کنایه ده له ډېري خوشحالۍ څخه، وعن ابی سعید الخدري رض قال قال رسول الله ﷺ لایسمع مدی صوت المؤذن (نه اوري نهایت د اواز د مؤذن) جن ولا انس ولا شیئ الا شهد له یوم القیامة (یعني بالاسلام) رواه البخاري.
**درویش وایي:** چي والله اعلم چي دا حدیث خاص په هغه مؤذن پوري دی چي بېله توسطه د ګویا او لاؤډسپیکر د مؤذن اواز واوري کما هو المعتاد في زمن النبي ﷺ او یا عام دی، وعلی تقدیر العموم ففیه بشارة عظیمة للمؤذنین کما لایخفی، وعن ابی هریرة رض قال قال رسول الله ﷺ الامام ضامن (یعني د صحت او فساد او د شریعت غراء سره یا نه) والمؤذن موتمن (او مؤذن امین د خلګو په دخول د وخت د لمونځو) اللهم ارشد الائمة (ته هدایت وکړي و امامانو ته چي د قانون شرعي سره برابر لمونځونه و خلګو ورکړي) واغفر للمؤذنین (چي اذانونه پر وخت وکړي او فاسدي لهجې په اذانو کي استعمال نه کړي) رواه احمد والترمذي والشافعي رح وعن ابن عباس رض قال قالت رسول الله ﷺ من اذن سبع سنین، اووه کاله متواتر محتسبًا د ثواب نه په اجرت، که څه هم اجرت پر اذان متأخرینو د فقهاؤ روا بللی دی، کتب له برائة من النار، نوشته ده دده

لپاره کاغذ د خلاصون له اور ځخه، رواه الترمذي وابن ماجه وابوداؤد، وعن ابن عمر رض قال قال رسول الله ﷺ ثلاثة على كسبان الجنة (درې کسه به په لوړو ځايو کې په جنت کي ناست وي، (۱) هغه مريي ادي حق الله لکه پنځه وخته لمونځ، روژه وغيرهما من الفرائض التي في ذمته وحق مولاه، او د بادار حق اداء کوي چي خدمت دی په راستي سره (۲) ورجل ام قومًا وهم به راضون او هغه امام د مسجد د يو قوم دی چي د وی په راضي وي (داسې نه دی چي صاحب جاه وي يا د حکومت له خوا پر قوم مسلط وي چي قوم په راضي نه وي لکن دی د زور له لارې د دوی امامت د لاسه نه ورکوي.

**فائده:** دا حکم هلته دی چي په امام کي عيب شرعي وي، مثلاً بېره يې تر مقدار شرعي ډېره کوچنۍ کړې وي، يا سرتور سر لمونځ ورکوي الى غيرها من عيوب الائمة (۳) رجل ينادى بالصلوة الخمس کل يوم وليلة يعني بلا اجر کما في حديث ابن عباس رض وقد مر، رواه الترمذي، وعن ابي هريرة رض قال قال رسول الله ﷺ المؤذن يغفر مدى صوته ويشهد له کل رطب ويابس وشاهد الصلوة (حاضر و لمانځه ته د جماعت) يکتب له (۲۵) صلوة ويکفر عنه ما بينهما (او د ده ته بخښل کېږي په مابين کي د دوو لمونځو د جماعت من المعاصي) رواه احمد وابو داؤد و ابن ماجه وعن سهل بن سعد رض قال قال رسول الله ﷺ ثنتان لا تردان او قلما تردان (شک د راوي دی الدعاء عند النداء، يوه دعاء په وخت کي د آذان او بل دعاء په وخت کي د جنګ د مسلمانانو او کافران يلتحم بعضهم بعضًا چي يو د بل غوښې سره تو يو وي، وعن ابن عمر رض ان رسول الله ﷺ قال من اذن ثنتى عشرة (۱۲) کاله و جبت له الجنة وکتب له بتأذينه في کل يوم ستون حسنة وبکل اقامة ثلاثون حسنة وعن عمر بن الخطاب رض انه قال لو اطقت الآذان مع الخلافة لاذنت (کما طاقت درلودای د اذان سره د مشاغل د خلافت د خلکو ما به اذان کولای، وروى حديث ابن عمر رض المتقدم ابن ماجه وعن ابن عمر رض قال کنا تؤمر بالدعاء عند اذان المغرب (د امر کېدلو يعني د رسول الله ﷺ په دعاء سره عند اذان المغرب اى عند تمام اذان المغرب رواه البيهقي في الدعوات.

**فصل في جواب الاذان:** عن عبد الله بن عمر بن العاص رض قال قال رسول الله ﷺ اذا سمعتم المؤذن فقولوا مثل ما يقول، هغه د ده کلمې ورسره وواياست، ثم صلوا علىّ (بيا پر ما درود وواياست) فانه من صل علي صلي الله عليه بها عشرًا (که څوک په دغه

کي پر ما درود ووایه خدای ج به پرده لس رحمتونه نازل کړي ثم صلوا الله لي الوسيلة (يعني اعط سيدنا محمدًا الوسيلة) فانهما منزلة في الجنة (چي وسيله يوه درجه عاليه ده په جنت کي) لا تنبغي الا لعبد من عباد الله وارجوا ان اكون هو (چي نه ښايي دغه درجه مګر ويوه چاته د بندګانو د خدای ﷻ او دا اميد لرم چي هغه به زه يم) فمن سأل لي الوسيلة حلت عليه شفاعتي (زما شفاعت به هغه ته ورسيږي)

**درویش وايي:** چي جامع دعا بعد تمام الاذان دا د الله رب هذه الدعوة التامة (يعني الدعوة عند الاذان الى الصلوة) والصلوة القائمة (اى الصلوة الدائمة الى يوم القيامة) آت محمدًا الوسيلة والفضيلة والدرجة الرفيعة وابعثه مقامًا محمودًا الذي وعدته (چي مقام د شفاعت کبرى دى دا د ځان لپاره دعاء ده) وارزقنا شفاعته يوم القيامة كما قال رسول الله ﷺ اذا قال المؤذن الله اكبر الله اكبر الى اخير الحديث، يعني يقول مثل ما قال المؤذن وحين يقول (يعني المؤذن) حي على الصلوة (دوه واره) وحى على الفلاح (دوه واره) يقول (السامع) لاحول ولاقوة الا بالله دخل الجنة رواه مسلم، وعن عبدالله بن عمر رض قال رجل يا رسول الله ان المؤذنين يفضلوننا (مؤذنان په ثواب کي تر موږ بالا سول) فقال رسول الله ﷺ قل كما يقولون فاذا انتهيت (چي ته پای ته ورسېدې) فسل تعط (سوال يعني د خدای ج چي قبلېږي)

**درویش وايي:** چي وفي اجابة المؤذن احاديث اخر صحيحة تركناها لحال الطول وفيما ذكرناه كفاية.

## وَلَا تَسْتَوِى الْحَسَنَةُ وَلَا السَّيِّئَةُ ط

نه دي سره برابر حسنه ښه خصلت او نه بد خصلت يعني في الجزاء وحسن العافية.

**فائده:** لا ثانيه زائد دى لپاره د تاکيد د نفي يعني تر هغو پوري چي انسان لره ممکن وي بايد خصلت حسنه مختاره کړي تر خصلت سيئه مثلاً صبر دى پر غضب مختاره کړي، والحلم على الجهل والعفو على الانتقام والسخاء على البخل والشجاعة على الجبن والعفة (عن الزناء) على العنت پر زنا، او بعض مفسرين وايي چي معنى د ايت دا ده چي نه دي برابر افراد د خصلت حسنه في الثواب والاجر بل بعضها فوق بعض كالفرائض والواجبات والسنن والمستحبات النوافل او دغه نه دي برابر جزئيات د خصلت سيئه په بدوالي لکه کبائر ګنهونه على تفاوت درجاتها

والصغائر. مثلاً که د يو چا له خوا څخه تاته بد ورسېدل فادفعها باحسن الحسنات فالحسنة ان تعفوا عنه والاحسن في هذه ان تحسن اليه يعني مع العفو.

**فائده:** ولا تستوي آه جمله مستأنفه ده چي راوړل سوي ده لپاره د ښو کارو في المعاملة الجارية بين العباد، وروسته تر دې محاسن د اعمال جارية بين العبد وربه عزوجل يې بيان کړه يعني په دمخه ايتو کي. حکمت الهي په داوسني ايت الهي کي ترغيب ورکول و عليه الصلوة والسلام چي صبر دي کوي پر اذيت د کافرانو ده لره او مقابله د اسائة د دوی دی په احسان سره کوي لکن معهذا حکم مذکور عام دی.

## اِدْفَعْ بِالَّتِيْ هِيَ اَحْسَنُ

ته دفع کوه په هغه خصلت سره چي احسن وي يعني اسائة که د يو چا له خوا څخه تاته ورسېږي. دا جمله استيناف ده د جواب د يو سائل چي کيف افعل فاجيب، ادفع آه د دې بيان څخه چي دروېش وکړی د دې غرض لپاره چي مراد الحسنة والسيئة امرين معينين لان العموم انسب ببلاغة القرآن. وروی عن علي رضي الله عنه الحسنة حب الرسول وآله عليهم الصلوة والسلام والسيئة بعضهم. او د عباس رضي الله عنه روايت دی الحسنة لا اله الا الله والسيئة الشرک، وقال الضحاک الحلم والفحش وقيل المدارات والغلظة قيل غير ذالک لکن روح المعاني وايي لايخفی ان بعض المروي يکاد لاتصح ارادته ههنا نو شايد چي هغه دي د من روی عنه څخه په صحيح سند دي نه وي ثابته والله اعلم.

## فَاِذَا الَّذِيْ بَيْنَكَ وَبَيْنَهٗ عَدَاوَةٌ كَاَنَّهٗ وَلِيٌّ حَمِيْمٌ ﴿۳۴﴾

کلمه د اذا لپاره د مفاجات ده، اضيف الی الجملة يعني نابيره به پيدا سي چي ته په ادفع بالتي هي احسن سره عمل وکړي يعني وبه ګرځي هغه څوک چي ستا او دده تر منځ عداوت وُ.

**پوه سه:** چي "الذي" مبتداء ده او "كَاَنَّهٗ وَلِيٌّ" يې خبر دی، والمعنی دوست مهربان غمخوار ستا.

**پوه سه:** چي دا نتيجه د ادفع بالتي هي احسن ان يعني فعلت ذالک صار عدوک وليًا حميمًا. په حديث کي راغلي دي چي دا آيت په ابی سفيان بن حرب رضي الله عنه کي نازل سوی دی

لانه كان عدواً اظاهر العداوة النبي ﷺ وللمسلمين وجه د عداوت دده هلته شدت پیدا کړی چي رسول الله ﷺ ام حبيبة بنت ابی سفیان رضي الله عنها په نکاح کړه، وروسته چي ابو سفيان رضي الله عنه ایمان راوړی صار وليًا بالاسلام وحميمًا بالقرابة و المصاهرة مع النبي ﷺ.

**درويش وايي:** چي دا شان نزول روح البیان په تفصیل سره او روح المعاني په اختصار سره راوړی دی او روایت یې د مقاتل بن حبان رضي الله عنه څخه هم ثابت دی. مظهري وايي وليس بسديد لان الآية مكية و اسلام ابی سفیان کان بعد الفتح.

**درويش وايي:** چي د مجموع سورة فصلت مكي والي خو مسلم دی ولا نسلم كون هذه الآية بخصوصة مكية تدبر غاية التدبر هداک الله والله اعلم بالحال.

**وَمَا يُلَقّٰهَآ اِلَّا الَّذِيْنَ صَبَرُوْاۚ وَمَا يُلَقّٰهَآ اِلَّا ذُوْ حَظٍّ عَظِيْمٍ ﴿۳۵﴾**

(وما يلقها) جملة معترضة. والمعنى نه ور کول کېږي دا خصلت يعني مقابلة الاسابة بالاحسان، مګر نه هغه کسانو ته چي صبر یې کړی پر مخالفت د نفس او د هوی. او نه ور کول کېږي دا خصلت چي مقابله د اسائة دي په احسان سره ده کړی مګر هغو کسانو ته چي لویه برخه ورکړل سوې وي. روح المعاني وايي ذو نصيب عظيم من خصال الخير و كمال النفس كما روى عن ابن عباس رضي الله عنه. او قتاده رحمه الله وايي ذو حظ عظيم من الثواب. او بعض وايي الحظ العظيم الجنة پر دې اخیر روایة دا آیت وعد من الله عزوجل وعلى الاول هو مدح.

**وَاِمَّا يَنْزَغَنَّكَ مِنَ الشَّيْطٰنِ نَزْغٌ فَاسْتَعِذْ بِاللّٰهِ**

دا جمله عطف ده پر ادفع بالتي آه باندي. د اما اصل ان ما ؤ، نون د ان شرطیه یې په ما زائده کي مدغم کړی.

**پوه سه:** چي نزغ شبه د نخس ده چي په پښتو یې چخول بولي، او مراد ځني دلته وسوسه د شيطان ده او شیطان سړی باعثه کوي پر معصيت باندي. په قاموس کي راغلي دي نزعه كمنعه (يعني پر صیغه د منع دی) طعن فيه (عیب یې پر و وایه) ونزغ بينهم افسد واغرى و وسوس (يعني د فلاني قوم په مابين کي فساد وکړی او یو پر بل یې ورواچول) او وسوسه یې ورواچول وهو فعل الشیطان. والمعنى که چېري شیطان وسوسه در واچول په زړه کي او ته یې باعثه کړې پر انتقام د من اسا لک څخه یعني مقابلة د اسائة په اسانه وکړه په احسان یې مه کوه.

(فاستعذ بالله) ته پناه په خدای ؓ سره وغواره په شر سره د شيطان (يعني قل اعوذ بالله من الشيطان الرجيم) يعني د شيطان اطاعت مه کوه.

**پوه سه:** چي دا جمله جواب د شرط دی يعني په اما ينزغنک کي، او جواب دا امر چي فاستعذ بالله دی محذوف دی (يعني يدفع الله عنک ذالک النزع)

اِنَّهٗ هُوَ السَّمِيْعُ الْعَلِيْمُ ۝

خدای ؓ اورېدونکی دی ستا د استعاذې، يعني ستا پر استعاذه علم لري، او خبر دی ستا په نيت سره چي نيت دي مقابله د اسائة په احسان سره.

وَمِنْ اٰيٰتِهِ الَّيْلُ وَالنَّهَارُ وَالشَّمْسُ وَالْقَمَرُ

د خدای ؓ د قدرت له علاماتو څخه دي شپه او ورځ، په دې معنی چي شپه يې تاريکه پيدا کړې ده او ورځ يې روښانه. اول د ارام لپاره او دويم د کسب او تجارت لپاره، او يا دا معنی چي کاهي شپه اوږده وي لکه په ژمي کي او کاهي ورځ اوږده وي لکه په دوبي کي.

(والشمس والقمر) او داغه رنګه لمر او سپوږمی د صانع عالم قادر مقتدر چي لرونکی د صفاتو کاملهٔ دی او دليل پر توحيد د خالق دی.

**درويش وايي:** چي شمس او قمر خو لوی نښانې د قدرت دي تر دوی کښته شيان هم علامې او دلائل د توحيد د خدای ﷻ دي، سعدي شيرازي ؒ وايي:

**برگ درختان سبز درنظر هوشيار .... هر ورقی دفتريست معرفت کردگار**

لَا تَسْجُدُوْا لِلشَّمْسِ وَلَا لِلْقَمَرِ وَاسْجُدُوْا لِلّٰهِ الَّذِيْ خَلَقَهُنَّ

تاسي سجدې مه کوئ د لمر او سپوږمی. لانهما مخلوقتان تاسي غوندي ايها الساجدون لهما، او سجده کوئ د هغه ذات چي دا څلور شيان يې پيدا کړي دي يعني والنهار والشمس والقمر.

اِنْ كُنْتُمْ اِيَّاهُ تَعْبُدُوْنَ ۝

که تاسي د خدای ؓ عبادت کوئ. ولي چي سجده عبادت دی او لائق د عبادت رب العزة دی وبس.

**فائده:** دغه ځای د سجدهٔ تلاوت دی په نېز د امام شافعي ؒ ولي چي امر چي

واسجدوا دې پورې مقترن دی، وهو مروي عن ابن مسعود رضي الله عنه وابن عمر رضي الله عنه فقيه ابو جعفر الطحاوي الحنفي رحمه الله په خپل سند سره روايت کړی دی د عبد الرحمن بن يزيد څخه چې عبد الله بن مسعود رضي الله عنه كان يسجدوا في الآية الاولى من سورة حم واخرج بسنده عن ابن عمر رضي الله عنه مثله.

## فَإِنِ اسْتَكْبَرُوا فَالَّذِينَ عِندَ رَبِّكَ

که دوی کبر وکړی له امتثال څخه يعني عن السجود لله.

**پوهه:** چې دا شرط دی د جزاء په ځای کې د علت د جزاء د رولی دی يعني ولا يضروه چې مضمون دد دې آيت دی (فالذين عند ربک) فالمعنى لان الذين.

**پوهه:** چې مراد د الذين آه او د عنديت څخه مراد عنديت مکاني نه دی بلکې درجات د قرب الی الله دی وهم الانبياء والملائكة والاولياء.

## يُسَبِّحُونَ لَهُ بِالَّيْلِ وَالنَّهَارِ وَهُمْ لَا يَسْأَمُونَ

دوی تسبيح وايي على الدوام د خدای ﷻ د شپې او د ورځې او ملال او ستړيا دست و ګريوان نه ګرځي بلکې لذت او خوند ورکوي، او امام اعظم رحمه الله دا ځای د سجده تلاوت بولي، وهو المروي عن ابن عباس رضي الله عنه.

**پوهه:** چې امام الطحاوي الحنفي رحمه الله د مجاهد څخه او هغه د ابن عباس رضي الله عنه انه كان يسجد في الآية الآخرة، وروى عن ابن سيرين مثله.

**پوښتنه:** امام الطحاوي رحمه الله سجده تلاوت په اول آيت کې راوړي وه کمار نو دا به دده په قول کې تناقض نه وي؟

**ځواب:** د فقيه ابو جعفر الطحاوي رحمه الله چې حنفيان وايي چې دی اعلم الناس دی بمذهب ابي حنيفة رحمه الله په شرح کې د معاني الآثار چې دده تصنيف دی عادت دا دی چې د هر مذهب دلائل اولاً راوړي دي وروسته د امام اعظم رحمه الله مذهب راوړی، او د هغه ترجيح بيانوي، او دلائل يې هم بيانوي لکه د دغې سجود د حم وروسته تر د پرو حديثو امام طحاوي داسې ويلي دي ان السجود في الآية الاخيرة مقتضى النظر بيا د هغه د پر دلائل راوړي دي.

**فائده:** امام الائمة و سراج الشريعة ابو حنيفة رحمه الله د احتياط څخه کار اخستی دی. دی وايي چې که سجده په واسجدوا کې وي، نو تاخير تر اخيرې آيت اخيرې

آیت پورې ځنډول خو یې جائز دی لان سورة السجدة غیر لازمة عند الفور بلکه وخت متسع فراخه دی او که سجده تلاوت په نېږد لایسمئون وي لم یکن السجود قبله یعني عند واسجدوا خو قبل الوقت د جواز نه لري او کفایت نه کوي.

**درویش وایي:** انظروا ایها الاعداء لمذهب الامام چې د امام اعظم[3] څومره فراخ نظر دی عبد الله بن المبارک په خپل قصیده کي وایي لقد زان البلاد من علیها، امام المسلمین ابو حنیفة فما بالمغرقین له نظیر، ولا بالمغربین ولا بکوفة الی اخیر العقیدة.

## وَمِنْ اٰيٰتِهٖٓ اَنَّكَ تَرَى الْاَرْضَ خَاشِعَةً

او بعض له دلائلو څخه د قدرت د خدای[2]، ای دلائل قدرته تعالی (انک) ایها المخاطب غیر المعین. ته وینې مځکه سپېره ګرد الوده بلا نبات خشوع د مځکي (مستعار له تذلل څخه و خدای[3] ته ومنه الخشوع في الصلوة)

## فَاِذَآ اَنْزَلْنَا عَلَيْهَا الْمَآءَ اهْتَزَّتْ وَرَبَتْ

نو چي کله مونږ نازلي کړو (و اوروو) پر مځکه اوبه (اهتزت) ای تحرکت (وربت) او راپورته سي او سره وپړسېږي لخروج النبات عنها.

## اِنَّ الَّذِيْٓ اَحْيَاهَا لَمُحْيِ الْمَوْتٰى ۭ اِنَّهٗ عَلٰى كُلِّ شَيْءٍ قَدِيْرٌ

په تحقیق هغه څوک چي ژوند یې ورکړ، ای احیاها بنباتها بحذف المضاف، دغه ذات مقتدر چي احیاء د مځکي په نبات سره هرآئینه ژوندی کونکی دی د مړو له قبرو څخه یعني په ورځ د قیامت عند النفخة الثانیة، په تحقیق دا خالق پر هر شي د احیاء او اماتة قادر دی.

## اِنَّ الَّذِيْنَ يُلْحِدُوْنَ فِيْٓ اٰيٰتِنَا لَا يَخْفَوْنَ عَلَيْنَا ۭ

په تحقیق هغه کسان چي کج روی کوي په آیات قرآنیه ؤ کي یعني غلط او باطل تأویلونه په کوي د خپل خواهشاتو سره یې برابروي، وهذا هو مراد ابن عباس[رض] بقوله یضعون کلامه تعالی غیر موضعه انتهی، اصل معنی د الحد مال عن الاستقامة ومن هذا یقال للحد القبر لحد لانه مائل من الاستقامة الی جانب (لایخفون علینا) نه دی پټ زمونږ څخه یعني دوی دي په امن کي د انتقام او جزاء بیغمه نه کښېني.

**پوه سه:** چي په یوه قرائت کي یلحدون په فتح د یاء راغلی دی یعني من باب المجرد

او مشهور قرائت يې يُلحدون دى بضم الياء من باب الافعال وهما بمعنى واحد، وقال قتادة رح: الالحاد التكذيب، وقال مجاهد يلغون في اثناء قرائة القرآن من جانب النبي ﷺ يا په لوى لوى نارو سره يا په چكچكو سره يا د خولې په شپېلكي سره كمامر من قوله تعالى: وقال الذين كفروا لاتسمعوا لهذا القرآن والغو فيه.

**درويش وايي:** چي اول تفسير عام دى چي وټولو تفاسيرو ته شامل دى يعني يلحد في الآيات القرآنية بالتكذيب كابي جهل وغيره، يا بالنار كمامر في الآية المتلوة آنفًا، يا په تغير د لفظ قرآني، يا په تأويل باطل سره مخالف د تأويل څخه د سلف الصالحين كالفرقة المجسمة يعني خداى ج جسم بولي، نو دوى د ترجمه د آياتو متشابهه وُ پر ظاهر كوي، مثلاً الرحمن على العرش استوى، يدالله فوق ايديهم كل شيئ هالک الا وجهه، الى غير ذالک من الآيات الدالة بحسب الظاهر على الجسمية يا اهل اهوا كالمعتزلة والكرامية والروافض والخوارج والكرامية وغيرها من فرق الضلال.

**حكايت:** په زمانه كي د حاتم الاصم رح چي د يو عارف باللهنوم دى يو كفن كښ، يعني چي چا به مړى ښخ كړى د شپې به دى ورغلى د مړي كفن به يې څني راټول كړى چي په عربي يې نباش بولي، نو دا كفن كښ د حاتم رح د تبليغ و مجلس ته راغلى، نو د هغه وعظ تأثير پر وكړى او د حاتم رح پر لاس يې توبه وكښل او خپل حال يې هم ورته بيان كړى يعني چي زه كفن كښ وم، نو حاتم رح ورته وويل: كم نبشت، د څو كسانو مړو كفنونه به دي كښلي وي؟ نباش ورته وويل د اووزرو (۷۰۰۰) حاتم رح ورته وويل په څو كاله كي؟ نباش ورته وويل په شل كاله كي، حاتم رح بېهوشه سو، څه وخت چي پر هوش راغلى، نباش ته يې وويل قبور المسلمين ام الكافرين؟ قال قبور المسلمين فغشى على حاتم رح ثانيًا فلما افاق قال لنباش، د څو قبرو والاؤ مخان د قبلې څخه چپ وه، او د څو قبرو والاؤ مخ پر قبلهؤ؟ نباش ورته وويل چي د اووزرو څخه د درو سوو (۳۰۰) كسانو مخ و قبلې ته ؤ، د نورو ټولو مخ د قبلې څخه چپ ؤ. فغشى على حاتم رح ثالثًا لانه علامة كون الميت مات على غير ملة الاسلام.

**سوال:** سبب د بېهوشي د حاتم رح څه ؤ؟

**ځواب:** الخوف من الله تعالى لان خوف احد بحسب مقامه من معرفة الله عزوجل، دا ؤ د لا يخفون علينا په مناسبت حكايت:

اَفَمَنْ يُّلْقٰى فِى النَّارِ خَيْرٌ اَمْ مَّنْ يَّاْتِيْٓ اٰمِنًا

قانون کلي: الهمزة للانكار والفاء للعطف على مقدر مناسب للمقام، تقديره ايفتخرن هؤلاء الكفار ويتعجبون باموالهم فمن يلقى آه. ومعنى الانكار چي دوى بايد دا فخر نه کولاى. اخرج ابن مردوية عن ابن عباس رضي الله عنهما افمن يلقى في النار هو ابو جهل. (ام من يأتي امنًا) هو ابو بكر الصديق رضي الله عنه وقيل نزل هذه الآية في ابى جهل وعمار بن ياسر رضي الله عنه من فقراء المؤمنين، وقيل من يأتي آمنًا هو حمزة رضي الله عنه وقيل عثمان رضي الله عنه.

**درويش وايي:** چي دا ټول د مثال پر ډول ذکر سوي دي، ولهذا قال المظهري ابو جهل وامثالهم. وقال البرسوي رحمه الله وهم الكفرة بانواعهم، ترجمه: آيا هغه څوک چي واچول سي په اور کي بهتر دى او که هغه څوک چي راسي په ورځ د قيامت په حال کي د امن له عذاب الهي څخه.

**پوښتنه:** د دې دوو ډلو په باره کي خداى جل جلاله متقابل عبارت نه وو ايي، يعني داسي عبارت: افمن يلقى في النار خير ام من يدخل الجنة، حکمت يې څه دى؟

**ځواب:** په نظم جليل کي اغتناء ده په شان کي د مؤمنانو لان من العذاب اعم من دخول الجنة لانه يبقى احتمال ان يعذب زمنًا قليلاً ثم يدخل الجنة او بل دا چي امن له عذاب څخه اهم دى من دخول الجنة، هم دا سبب دى چي په اوله ډله کي کفار دي د القاء لفظ يې وويل سو چي دال پر قسر دى يعني بې اختياره يې و نار ور غورځوي. او په دويمه ډله کي اتيان وو ايه الدال على انه بالاختيار والرضاء مع الامن.

يَوْمَ الْقِيٰمَةِ ۭ اِعْمَلُوْا مَا شِئْتُمْ ۙ اِنَّهٗ بِمَا تَعْمَلُوْنَ بَصِيْرٌ ۝

عمل کوئ اى کافرانو چي ستاسي خوښه وي يعني من الكفر والمعاصي. په تحقيق خداى جل جلاله په عملو ستاسي خبر دى.

**پوښتنه:** چي دا امر تهديد شديد دى امر تکليف او اباحة نه دى. او کلمه د ما مصدريه يا موصوله ده، والعائد اليه محذوف اى ما تعملونه.

اِنَّ الَّذِيْنَ كَفَرُوْا بِالذِّكْرِ لَمَّا جَاۗءَهُمْ ۚ وَاِنَّهٗ لَكِتٰبٌ عَزِيْزٌ ۝

په تحقيق هغه کسان چي کفر او انکار يې په قرآن وکړى څه وخت چي دوى ته نازل سو. په تحقيق قرآن مبارک عزيز دى. ابن عباس رضي الله عنهما وايي اى کريم على الله

تعالى، او قتاده رح وايي اعزه الله تعالى (عزت او غلبه خدای ۴ ورکړې ده) لايجد الباطل اليه سبيلاً كما قال الله تعالى.

**لَّا يَأْتِيهِ الْبَاطِلُ مِن بَيْنِ يَدَيْهِ وَلَا مِنْ خَلْفِهِ**

نه راځي ده لره باطل د مخ له خوا ده ته او نه د شا له خوا څخه، او روح المعاني د عزيز ترجمه په لا يوجد له نظير سره کړې ده، او يا منيع دی لاتتأتی لاحد معارضة، کريمه "لو كنتم في ريب مما نزلنا على عبدنا (يعني محمد ﷺ) فأتوا بسورة من مثله" وقيل غالب دی على الكتب السماوية كلها لفسخها به.

**پوه سه:** چي لايأتيه الباطل آه دا جمله بل صفت دی د کتاب، او ما بين يديه وما خلفه كناية عن جميع الجهات يعني د هيڅ جهت باطل لار نه ورته لري يعني من حيث الصيغة ولا من حيث الجملة ولا من حيث الفصاحة ولا من حيث البلاغة ولا من حيث امثاله ولا من حيث القصص من الانبياء، والامم الماضية، نو دا تمثيل دی چي قرآن مبارک يې مشابه کړی د يو شخص سره چي پر هغه د هر جهته څخه پهره ولاړه وي چي دښمنان و هغه ته لار نسي پيدا کولای لكونه في حصن حصين، ددې کنايه ژوندی مثال په عربي کي الصباح والمساء دی چي کنايه د ټولو ازمنة ماضية او حاليه او مستقبله ؤ څخه ده.

امام قشيري رح فرموده كه قرآن عزيز است كه كلام رب العزة كه ملک عزيز (جبرئيل ۴) بر رسول عزيز آورد (يعني محمد ﷺ) براىٔ امت عزيز كه كنتم خير امة اخرجت للناس، شاهد اوست طبعی است كه نامه دوست براىٔ دوستان عزيز و گرامی ميباشد ... بيت:

زنام و نامه تو يافتم عز و كرامت .... هزار جان گرامی فدای خامه ونامت

قتاده او السدي رح وايي چي له باطل څخه مراد شيطان دی چي دی طاقت نه لري چي قرآن ته دي تغيير بالزيادة فيه او النقصان منه.

**پوه سه:** چي مراد له شيطان څخه شياطين الجن والانس دواړه مراد دي، چنانچه روافضو په قرآن کي لس اجزاء نور بالا کړي دي، دوی وايي چي دا اجزاء صحابه كرامو ﷺ په وخت کي د جمع القرآن طرح کړي ؤ لكن كامياب نه سول يعني نمونه د هغه قرآن چي دوی جمع کړی ؤ يعني څلوېښت جزء په ټوله نړۍ کي نسته، او دوی

زيات کړي وه بعض الفاظ په بعض آيتو کي کما في قوله تعالى انما انت منذر ولكل قوم علي، دا لفظ دوی زيات کړی دی، وسيعلم الذين ظلموا آل محمد ای منقلب ينقلبون آل محمد دوی ورسره زيات کړی دی، دا خو دوی عمل وکړی چي په قرآن کي به دا زموږ زيادت د همېشه لپاره پاته وي لکن کامياب نه سول، دا عمل يې خدای[۳] و شېلي ته د بطلان واچاوه، قال الزجاج معناه انه محفوظ من ان ينقص منه فياتيه الباطل من بين يديه، او يزاد فيه فيأتيه الباطل من خلفه، وقال مقاتل[۳] لايأتيه الباطل ای التكذيب من الكتب التي تقدمه ولايجيئ بعده كتاب يبطله او ينسخه، دليل كل التفاسير ان الله عزوجل وعد رسولهﷺ حفظ القرآن والله لايخلف الميعاد، كريمه: انا انزلنا اليک الذکر وانا له لحافظون.

## تَنْزِيْلٌ مِّنْ حَكِيْمٍ حَمِيْدٍ۝

خبر د مبتداء محذوفي دی ای هو تنزيل يا حمل يې مبالغةً عدل يا تنزيل په معنی د منزل دی له جانبه څخه د کامل الحکمة خدای[۳] (نو تنوين لپاره د تعظيم دی) او محمود دی چي ټول مخلوقات يې حمد وايي يا په لسان حال سره يا په مقابل سره ومع ذالک هو تعالى حميد في ذاته لايحتاج الي حمد احد من الخلق.

**درويش وايي:** چي چونکي کفارو د مکې به و آنحضرتﷺ ته خفت انگيز الفاظ استعمالول، ګاهي به يې ويل چي شاعر دی، ګاهي به يې ويل چي کاهن دی و امثال ذالک نو د عليه الصلوة والسلام د تسلي لپاره خدای ﷻ دا آيت نازل کړی.

## مَا يُقَالُ لَكَ اِلَّا مَا قَدْ قِيْلَ لِلرُّسُلِ مِنْ قَبْلِكَ ؕ

تاته نه دي ويل سوي مګر هغه الفاظ چي ويل سوي وه ورسولانو ته تر تا د مخه من الالفاظ القبيحة کما مرت، نو ته صبر وکړه لکه هغو انبياؤ عليهم السلام چي صبر کړی ؤ او ته خان په غم کي مه اچوه لان العاقبة لانبياء، او بعض مفسرين وايي معنی د آيت داده ما اوحی اليک الامثل ما اوحی الى الرسل من قبلک من التوحيد واصول الدين ای المعتقدات والوعد للمؤمنين والوعيد للكافرين والاحتمال الاول هو الارجح.

## اِنَّ رَبَّكَ لَذُوْ مَغْفِرَةٍ وَّذُوْ عِقَابٍ اَلِيْمٍ۝

په تحقيق سره ستا خدای خاوند د مغفرت دی يعني للمؤمنين، او ورکونکی د عذاب درد دهنده کافرانو لره.

**درویش وايي:** چي په دې کې ضمنًا اشاره ودې ته ده چي تر تا د مخه رسولانو ته والمؤمنين بهم خدای کومک ورکړی وُ پر اعداء ددوی او تاته به هم خدای کومک درکړي عنقريب، او انتقام به د اعداؤ څخه ستا واخلي وقد صبر رسول الله ﷺ ونصره الله على اعدائه كما في يوم بدر وغير ذالک.

شان نزول: کفارو د مکې د تعنت او ضد د لاري و عليه الصلوة والسلام ته وويل چي ولې ستا کتاب په عربي ژبه دی ولي په لغت سرد عجمو نه دی لکه تورات او انجيل، نو دا آيت نازل سو.

## وَلَوۡ جَعَلۡنَٰهُ قُرۡءَانًا أَعۡجَمِيّٗا لَّقَالُواْ لَوۡلَا فُصِّلَتۡ ءَايَٰتُهُۥٓۖ

ضمير راجع دی و ذکر ته يعني دغه قرآن چي ته يې په عربي دوی ته وايي، نو که موږ ګرځولی وای قرآن نازل پر تا د عجمو په لغت سره، نو دوی ای اهل مکة به ويلای (لولا فصلت آياته) ای بينت آياته يعني بلغة العرب حتى چي موږ به په پوهېدای، دا جمله متصل ده په اول پوري د سورة په مدح کي د قرآن اعنى کتاب فصلت آياته الخ.

## ءَا۬عۡجَمِيّٞ وَعَرَبِيّٞۗ

يعني انکارًا به کفارو د مکې ويلای چي کتاب عجمي دی او رسول عربي دی، قال مقاتل رح وذالک ان رسول الله ﷺ ورتلی به يسار چي مريی وُ د عامر الحضرمي وكان يهوديًا عجميًا چي کنيت يې ابو فکيهة وُ، فقال المشركون يعني اهل مكة انما يعلمه بشر يعني الغلام المذكور چي يسار يې نوم وُ نو د يسار مالک يعني عامر الحضرمي او ورته وه يې ويل چي ته محمد ته قرآن وربنيې؟ يسار ورته وويل چي دی ما ته تعليم د اسلام کوي، فانزل الله تعالى هذه الآية.

## قُلۡ هُوَ لِلَّذِينَ ءَامَنُواْ هُدٗى وَشِفَآءٞۚ

ووايه هغه ای القرآن العربي د هغو کسانو لپاره چي ايمان يې راوړی وي هدايت دی د ضلالة څخه او شفاء عظيم دی، التنوين للتعظيم ای شفاء عظيم لما في صدور الناس من الجهل ورزائل اوصاف القلب والنفس كالكبر والعناد والبخل وغيرها وقيل شفاء من الامراض والاوجاع الظاهرة والجسدية.

**فائده**: علماء د حقيقت او تصوف وايي چي په قرآن كريم كي شپږ آياتونه د شفاء د امراض ظاهره او باطنهٔ موجود دي، كه څوك دغه شپږ آيته په خوله ووايي يا يې پر كاغذ نوشته كړي او به يې و څيښي په عقيده كامله سره خداى ﷻ به دده مرض دفع كړي.

**درويش وايي**: چي آيات الشفاء دادي لكن زه حافظ د قرآن نه يم ترتيب يې نه دى را معلوم لكن ضروري هم نه دى (و ننزل من القرآن ما هو شفاء و رحمة للمؤمنين، شفاء للناس، شفاء لما في الصدور، ويشفي صدور قوم مؤمنين، واذا مرضت فهو يشفين، قل هو الذي آمنوا هدًى و شفاء).

**وَالَّذِيْنَ لَا يُؤْمِنُوْنَ فِيْٓ اٰذَانِهِمْ وَقْرٌ وَّهُوَ عَلَيْهِمْ عَمًىؕ**

او هغه كسان چي پر قرآن ايمان نه لري، موصول مبتدا ده، په غوږو كي يې ثقل دى يعني چي په سمع د قبول يې نه اوري. كه څه هم ظاهرًا كاڼه نه دي دا يې خبر دى. او دا قرآن پر دوى باندي ظلمت دى يعني شبهة او مشتبه دي، قال قتادة ؒ چي كفار مكه عموا عن القرآن وصموا عنه فلا ينتفعون به.

**اُولٰٓئِكَ يُنَادَوْنَ مِنْ مَّكَانٍ بَعِيْدٍ۠**

دوى ته ناري وهل كيږي له لېري ځاى څخه، دا يو مثال دى د كفارو د مكي في عدم قبولهم عدم استماعهم للقرآن بمن صاح به من مسافة بعيدة.

**وَلَقَدْ اٰتَيْنَا مُوْسَى الْكِتٰبَ فَاخْتُلِفَ فِيْهِؕ**

لام موطئه د قسم دى موږ وركړى ؤ موسٰى ؑ ته كتاب يعني التورات (فاختلف فيه) جواب د قسم محذوف دى يعني اختلف قوم موسٰى بالتصديق والتكذيب يعني بعض ايمان پر راوړى او بعض يې تكذيب وكړى كما اختلف قريش قوم محمد ﷺ.

**وَلَوْلَا كَلِمَةٌ سَبَقَتْ مِنْ رَّبِّكَ لَقُضِيَ بَيْنَهُمْؕ**

كه نه واى يو خبره چي خداى ؑ په لوح محفوظ كي د مخه ليكلې وه چي هغه خبره داده چي زه تاخير د عذاب كوم و مكذبينو ته يعني مهلت وركوم يعني الى يوم القيامة يا الى اجل معلوم، ددوى تر مابين به فيصله او قضاوت كړه سوى واى يعني ژر به مي عذاب وركړى واى.

وَإِنَّهُمْ لَفِي شَكٍّ مِّنْهُ مُرِيبٍ ﴿٤٥﴾

(وانهم) اى المكذبين په شک كې دي (د منه ضمير يا راجع و تورات ته دی يا قرآن ته) چې دوی يې په اضطراب كې اچولي وه يعني قوم موسىٰ ؑ يا قريش مكة.

مَنْ عَمِلَ صَالِحًا فَلِنَفْسِهِ وَمَنْ أَسَاءَ فَعَلَيْهَا وَمَا رَبُّكَ بِظَلَّامٍ لِّلْعَبِيدِ ﴿٤٦﴾

كه څوک عمل صالح وكړي لپاره د فائدې د خپل ځان يې كړی دی، كلمه د لام د نفع ده، او كه څوک بد عمل وكړي ضرر يې چې عذاب الهي دی و ده ته راجع دی، نو كلمه د على لپاره د ضرر ده، او نه دی ستا رب يا محمد (ﷺ) ظلم كونكى پر بندګانو، يعني عمل د محسنين نه ضائع كوي بلكې ثواب يې وركوي، او په عمل كې د بد كارانو په عملو كې زياتوب نه كوي.

**پوښتنه**: ظلام خو صيغه د مبالغې ده، نو د نفي څخه د ظلام به احتمال د نفس ظلم پر خدای جل جلاله متوهم نه وي؟

**ځواب**: مظهري ؒ وايي چې صيغه د مبالغې تعريضًا على الكفار راوړه بانهم هم الظالمون المبالغون في الظلم، والله سبحانه لا يتصور منه الظلم اصلاً، او بعض مفسرين وايي چې اصل كلام داسې ؤ و ماربک بظالم ثم نقل مع النفي الى صيغة المبالغة، فكانت المبالغة راجعة الى النفي على معنى ان الظلم منفي عنه تعالى نفيًا مؤكدًا مضاعفًا، او بعض مفسرين وايي چې صيغه د مبالغې په اعتبار د كثرت د عبيد او بندګانو ده، لا باعتبار كثرة الظلم حتى چې احتمال د نفس ظلم پر خدای ؑ متوهم سي ويؤيد هذا التوجيه قوله تعالى ولا يظلم ربک احدًا، وفي الحديث القدسي اني حرمت الظلم على نفسي و على عبادي الا فلا تظالموا.

**درويش وايي**: بحمده تعالى وحسن توفيقه لهذا العبد الضعيف تفسير د (۲۴) جزء په شپه د چهار شنبې پر اول د ربيع الاول سنه (۱۴۳۲هـ) پای ته ورسېدی، فلله الحمد والمنة وعلى سيد رسله الصلوة والتحية وعلى آله واصحابه الكملة.

كه عاصي او ګنهګار يم .... د قرآن عظيم خدمتګار يم

روز محشر هر كه آيد تصوير جانان در بغل .... من نيز حاضر ميشوم تفسير آن در بغل

نه قاضي يم نه مفتي نه مجتهد يم .... د تفاسيرو د قرآن څخه خوشه چين يم

# د تفسیر ایوبي د مضامینو فهرست

تفسیر ایوبي حنفي د نصیراحمد احمدي لخوا سکین او pdf سو.



تفسير ايوبي حنفى١٥ ټوک

د نصيراحمد احمدي لخوا

سکین او pdf سو.

تاريخ ١٧-١٠-١٣٩٨

واتساپ- ٠٧۴٩٨۴٩۵۶٩

د دعا محتاج احمدي!